هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝

# تفهیم القرآن

ابوالاعلیٰ مودودی

## دریم جلد

دَ سورة الكهف نه دَ سورة الروم پورے

— پښتو ترجمه —

پروفیسر شفیق الرحمٰن

تخت بهائی

ناشر ............ حافظ عبید اللہ ناظم جماعت اسلامی سرکل تخت بھائی

خورونکے ......... مکتبہ جماعت اسلامی سرکل تخت بھائی ضلع مردان

پریس ........... A.A پرنٹرز بال گنج لاہور

کتابت کونکے ......... نثار احمد محلہ جنگی پیښور ټیلیفون، ۲۱۹۱۰۳

اولنی چھاپ ........... ۲۰ اگست ۱۹۹۳ء

تعداد ............ ۱۰۰۰ (یو زر)

هدیه ...... 270/- [redacted]

## د ملاویدو پته

- و دفتر جماعت اسلامی رشید مارکیټ تخت بھائی ضلع مردان
- و خټک بک سیلرز پټ بابا روډ تخت بھائی ضلع مردان
- و جمیل بکسیلرز مین بازار درګئی ملاکنډ ایجنسی
- و جمیل بکسیلرز مین بازار بټ خیله ملاکنډ ایجنسی
- و نور محمد ایډووکیټ البدر سټیل ورکس بټ خیله ملاکنډ ایجنسی
- و البدر بکسیلرز ائیرپورټ روډ مینګوره سوات
- و مکتبه دعوة القرآن والحدیث نیو روډ مینګوره سوات
- و الفضل نیوز ایجنسی نزد فلائنګ کوچ اډه دیر خاص
- و مولانا احمد غفور صاحب حواء بک ډپو بازار تیمرګره
- و فضل مولا صاحب الفضل میډیکوز دیوانه بابا روډ سواړے بازار بونیر
- و مکتبه تطهیر افکار ډهکی منورشاه قصه خوانی بازار پیښور
- و پیر سردار شاه بازار پبئ ضلع نوشهره
- و حاجی زرین خان امیر جماعت اسلامی ضلع صوابی (مقام ډاګئ)
- و عبدالغفور عابدی صاحب معرفت محمد اسحاق کونسلر فرنیچر کالونی بنارس چوک کراچی
- و ډاکټر نورالحق، حق کلینک ډی/258 بلاک نمبر ۲ میټروویل سائټ کراچی
- و د دفترونه د تحریک محنت پشاور، نوشهره، مردان، صوابی۔

# دَمضمونونو فهرست


| دَشمارے نمبر | دَسورۃ نوم | دَسورۃ نمبر | صفحه |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱ | الکهف | ۱۸ | ۵ |
| ۲ | مریم | ۱۹ | ۵۱ |
| ۳ | طٰهٰ | ۲۰ | ۸۳ |
| ۴ | الانبیآء | ۲۱ | ۱۴۱ |
| ۵ | الحج | ۲۲ | ۱۹۵ |
| ۶ | المؤمنون | ۲۳ | ۲۵۷ |
| ۷ | النور | ۲۴ | ۳۰۵ |
| ۸ | الفرقان | ۲۵ | ۳۴۹ |
| ۹ | الشعراء | ۲۶ | ۴۷۳ |
| ۱۰ | النمل | ۲۷ | ۵۵۱ |
| ۱۱ | القصص | ۲۸ | ۶۰۹ |
| ۱۲ | العنکبوت | ۲۹ | ۶۷۱ |
| ۱۳ | الروم | ۳۰ | ۷۲۳ |
| ۱۴ | ضمیمه ۱ | | ۷۶۹ |
| ۱۵ | ضمیمه ۲ | | ۷۷۱ |
| ۱۶ | دَ موضوعاتو فهرست | | ۷۷۳ |

# دَارض القرآن دَتصويرونو فهرست اودَنقشو فهرست

۱ دَحضرت موسٰی اودَخضر عليهما السلام دَ قيصے نقشه ۳۴
۲ دَ ذوالقرنين دَ قيصے نقشه ۴۳
۳ دَخانه کعبے نقشه ۲۱۸
۴ دَ بنی المُصطلق دَ غزا نقشه ۳۰۹
۵ دَ العلاء غر
۶ دَ مدائن صالح غر ۵۲۲
۷ دَ مدائن صالح يوشو ثمودی عمارتونه
۸ په مدين کښے دَ ثمودی طرز يو عمارت
۹ په پيترا کښے دَ نبطی طرز يو عمارت
۱۰ په مدائن صالح کښے ثمودی عمارتونه
۱۱ دَ مدائن صالح ثمودی عمارتونه
۱۲ په مدائن صالح کښے هغه کوهے چه دَهغے نه به دَحضرت صالح اُوښه اُوبه څکلے
۱۳ په پيترا کښے دَ ثمودی طرز عمارتونه
۱۴ په مدين کښے دَ ثمودی طرز يو عمارت
۱۵ په پيترا کښے دَ نبطی طرز يو عمارت ۵۲۴
۱۶ دَ کوه طور په لمن کښے دَ سينټ کيتهرائن خانقاه ۵۵۸
۱۷ هغه ځائے چه دَهغے نه حضرت موسٰی عليه السلام ته دَ کلامِ الٰهی آواز راتلو ۵۵۸
۱۸ دَ کوهِ طور په لمن کښے دَ سينټ کيتهرائن دَخانقاه هغه ځائے چه حلته موسٰی عليه السلام ته په جاره کښے نکيدلے وُو د په نظر راتلو۔ ۵۵۸
۱۹ هغه کوهے چه حلته په موسٰی عليه السلام چيلو له اوبه ورکولے۔ ۶۲۷
۲۰ دَ مداين وادی ۶۲۷

# الکهف

**نوم** دَدے سورۃ نوم دَ اولے رکوع دَ نهم آیت إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ نه اخستلے شوے دے دَدے نوم مطلب دا دے چه هغه سورۃ چه په هغے کښے لفظ کهف راغلے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** دَدے ځائے نه هغه سورتونه شروع کیږی چه هغه دَ مکّی ژوند په دریم دَور کښے نازل شوی دی. مکّی ژوند مونږه په څلورو لویو لویو حصّو کښے تقسیم کړے دے چه تفصیل ئے دَ سورۃ انعام په دیباچه کښے تیر شوے دے. دَ دے تقسیم په لحاظ سره دریم دَور تقریباً دَ ۵ سنه نبوی دَ اول نه شروع کیږی او قریب قریب دَ ۱۰ سنه نبوی پورے چلیږی. په نورو دَ وړو نو کښے به اکثر قریشو دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغه دَ تحریک او دَ هغه دَ ډلے دَ دبا دهلو دَ پاره تو قے او خندا اغانے کولے، اعتراضونه به ئے کول، الزامونه به ئے لګول، مسلمانان به ئے یرَول، لالچ او طمع به ئے ورکوله او مخالفه پروپیګنډه به ئے کوله. لیکن په دے دریم دَور کښے هغوی ظلمونه شروع کړل، مسلمانان به ئے ټکول، معاشی دبا وَئے پرے راوستو، اَنْ تر دے پورے چه ډیر مسلمانانو ملک پریښودو او حبشے ته لاړل، او کوم مسلمانان چه پاتے شو هغوی او نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغه خاندان ئے په شعبِ ابی طالب کښے رابند کړل، لین دین او تلل راتلل ئے ورسره مکمل طور پریښودل. بیا هم په دغه دَور کښے دوه کسان — ابوطالب او اُم المؤمنین حضرت خدیجه رض — داسے وُو چه دَ هغوی دَ ذاتی اثر دَ وجے نه دَ قریشو دوه لوئ لوئ خاندانونه دَ نبی صلی الله علیه وسلم په شاه ولاړ وُو. په ۱۰ سنه نبوی کښے چه دا دواړه کسان دَ دُنیا نه لاړل نو دا دَور ختم شو او څلورم دَور شروع شو. په مسلمانانو باندے په مکّه کښے ژوند تیرول تنګ کړے شو، اَن تر دے پورے چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ تولو مسلمانانو سره دَ مکّے نه هجرت اُوکړو.

کہ سورۃ کهف په مضمون باندے چه سړے غور اُوکړی نو دا اندازه معلومیږی چه دا به دَ دریم دَور په شروع کښے نازل شوے وی چه سخت ظلمونه شروع شوی وُو خو لا حبشے ته هجرت نهٔ وُو شوے. په دغه وخت کښے چه کوم مسلمانانو باندے ظلمونه کیدل هغوی ته دَ اصحابِ کهف قیصه واورَوله شوه چه دَ هغوی حوصلے اُوچتے شی او دا ورته معلومه شی چه دَدے نه مخکښے مؤمنانو دَ خپل ایمان دَ بچ کولو دَ پاره څه څه کړی دی.

**موضوع او مضمون** دَ مکے مشرکانو دَ اهلِ کتابو په مشوره سره دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه دَ امتحان اخستلو په غرض درے تپوسونه کړی وُو، دا سورۃ دَ هغے دریو تپوسونو په جواب کښے نازل شوے دے تپوسونه دا دی:

اصحاب کهف څوک وو؟ د خضر د قیصې حقیقت څه دے؟ او د ذوالقرنین قیصه څه ده؟ دا درے واړه قیصې د عیسایانو او د یهودیانو د تاریخ سره تعلق لري. په حجاز کښې د دے قیصو هیڅ شهرت نه وو. په دے وجه اهلِ کتابو د امتحان په غرض دا قیصې غوره کړے وے چه دا خبره ښکاره شي آیا د محمد صلی الله علیه وسلم سره واقعي د علم څه غیبي ذریعه شته او که نه. خو الله تعالیٰ یوا ځے دا نه چه د خپل نبي په ژبه ئے د دغه سوالونو پوره جواب ورکړو، بلکه دغه درے واړه قیصې ئے د هغه حالت سره اولګولے کوم چه په دغه وخت کښې په مکه کښې د کفر او د اسلام په منځ کښې وو:

۱- د اصحاب کهفو په حقله ئے اووئیل چه هغوی هم د هغه توحید قائل وو کوم چه دا قرآن پیش کوي، او د هغوی حال د مکې د یو موټي مظلومو مسلمانانو د حال نه او د هغوی د قوم عمل د قریشو د کافرانو د عمل نه هیڅ مختلف نه وو. بیا ئے د دے قیصې نه مؤمنانو ته دا سبق ورکړو چه که چرے د کافرانو غلبه زیاته وي او یو مؤمن ته په ظالمانو خلقو کښې د ساه اخستلو مهلت نه وي، خو بیا هم هغه له پکار دي چه باطل ته سر ټیټ نه کړي بلکه په الله بروسه اوکړي. په دے سلسله کښې ئے د مکې کافرانو ته دا هم اووئیل چه د اصحاب کهفو قیصه د آخرت د عقیدے د صحیح والي یو ثبوت دے. لکه څنګه چه خدائ تعالیٰ د ډیرے مودے پورے اصحاب کهف د مرګ په خوب ساتلي اوده کړل او بیا ئے راپاسول نو دغه شان د مرګ نه روستو بیا راپاسول هم د هغه د قدرت نه څه لرے خبره نه ده چه تاسو ترې انکار کوئ.

۲- د اصحاب کهفو د قیصې نه روستو په هغه ظلمونو او سپکو سپورو خبرو باندې خبرے اترے شروع کړے شوے کومے چه به د مکې سردارانو او مالدارانو د خپل کلي په مسلمانانو پورے کولے. په دے سلسله کښې یو طرفته نبي صلی الله علیه وسلم ته هدایت اوکړے شو چه مه د دے ظالمانو سره څه مصالحت کوه او مه د خپلو غریبو ملګرو په مقابله کښې دے لویو لویو خلقو له څه اهمیت ورکوه. بل طرفته د مکے سردارانو ته نصیحت اوکړے شو چه د وړو شو ورځو په ژوند باندې مه خوشحالیږئ بلکه د هغه ښېګڼو طلبګار شئ چه هغه همیشه او پائیداره دي.

۳- په دے سلسله کښې د خضر او د موسیٰ قیصه څه په دا انداز سره واورولے شوه چه په هغې کښې د کافرانو د پوښتنو جواب هم وو او د مؤمنانو د پاره پکښې تسلّي هم وه. په دے قیصه کښې چه په اصل کښې کوم سبق ورکړے شوے دے هغه دا دے چه د الله د مشیت کارخانه

له په روایاتو کښې راځي چه دویم پوښتنه د روح په حقله وه چه د هغې جواب د سورة بني اسرائیل په لسم رکوع کښې ورکړے شوے دے. لیکن د سورة کهف او د سورة بني اسرائیل د نازلیدو په زمانه کښې ډیر ګلونه فرق دے، او په سورة کهف کښې د دوو په ځائے درے قیصې بیان کړے شوي دي، په دے وجه زمونږ دا خیال دے چه دویم پوښتنه په اصل کښې د خضر د قیصې په حقله وه او د روح په حقله نه وه. په خپله په قرآن کښې هم یو داسے اشاره شته چه د هغې نه زمونږ د خیال تائید کیږي (وګورئ حاشیه نمبر ۶۱).

په کومو مصلحتونو بانډې روانده هغه چونکه ستا سو نظر نه پټ دی نو په دے وجه تا سو په هر کار حیرانیږئ چه دا ولے اوشو؟ دا څه اوشو؟ دا خولوئ غضب اوشو، حالانکه که پرده اوچته کړے شوه نو تاسو ته به پخپله معلومه شی چه دا د لته څه کیږی دا ټیک کیږی او په ظاهره چه په کوم څیز کښے خرابوالے ښکاری، آخر هغه هم د هغه ښیګړے د پاره وی ۴- د دے نه روستو د ذوالقرنین قیصه کیږی او په هغے کښے تپوس کونکو ته دا سبق ورکړے کیږی چه تاسو خو په دے حنړلو ورو ورو سروا روبانډې د خوشحالئ نه پرسیږئ، حالانکه ذوالقرنین دومره لوئ بادشاه او یو دا سے زبردست فاتح، او د لویو لویو ذریعو مالک وو خو بیا هم هغه خپل حقیقت نه وو هیر کړے او خپل خالق ته بہ ئے همیشه د منتے سر ښکته لولو- دا رنګے تاسو دا وایئ چه ستاسو دا و رے ورے ښکلے او باغچے به همیشه وی لیکن هغه د دُنیا د تولو نه زیات محکم دیوال جوړ کړو او بیائے هم دا یقین وو چه اصل د بروسے لائق الله تعالیٰ دے نه چه دا دیوال -چه ترڅو پورے د الله مرضی وی تر هغے پورے به دا دیوال دشمنان منع کوی، اوکله چه د هغه مرضی بدله شوه نو په دے دیوال کښے به د چاودو نه سیوا بل هیڅ نهٔ وی-

د غه شان کافرانو چه کوم آزمینتی تپوسونه کړی وو هغه ئے واپس د هغوئ د حالاتو سره اونکول او په آخره کښے ئے بیا هم هغه خبری دوباره بیان کړے کومے چه په شروع کښے شوے وے، یعنی دا چه توحید او آخرت سراسر حق دی او ستاسو ښیګړه په دے کښے ده چه دا اومنئ، د دے مطابق خپله اصلاح اوکړئ او په دنیا کښے په دے خیال ژوند تیر کړئ چه الله ته به د هرے خبرے جواب ورکوئ -که دا سے مو ونه کړل نو ستاسو ژوند به خراب شی او ټول عملونه به مو عبث لاړ شی-

## آیاتها ۱۱۰ سُوْرَةُ الْكَهْفِ مَكِّيَّةٌ رکوعاتها ۱۲

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ۝١
قَيِّمًا لِّيُنْذِرَ بَاْسًا شَدِيْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ
يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ۝٢ مَّاكِثِيْنَ فِيْهِ اَبَدًا ۝٣ وَّ
يُنْذِرَ الَّذِيْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۝٤ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا
لِاٰبَآئِهِمْ ۭ كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۭ اِنْ يَّقُوْلُوْنَ اِلَّا كَذِبًا ۝٥

تعریف د الله دپاره ده چه په خپل بنده باندې ئې دا کتاب نازل کړو او په ده کښې ئې هیڅ کوږوالے اُونۀ ساتۀ.[1] ټیک ټیک صحیح خبره کوُنکے کتاب، د پاره د دې چه د خدائے د سخت عذاب نه خلق خبردار کړي، او نیک عمله مؤمنانو له زیرے ورکړي چه د هغوئ دپاره ښۀ اجر دے چه هغوئ به په کښې همیشه اُوسیږي، او هغه خلق وېروي چه وائي چه الله ځان له ځوئے نیولے دے.[2] د دې خبرې نۀ د هغوئ سره څۀ علم شته او نۀ د هغوئ د پلار نیکۀ سره وو.[3] غټه خبره ده چه د هغوئ د خولو نه وځي - هغوئ خالص دروغ وائي.

له یعنی نۀ په دې کښې څۀ تاؤ راتاؤ خبره شته چه سرے پرې پوه نشي، او نۀ پکښې د حق او د صداقت د نیغې لارې نه په دې ډول څۀ داسې خبره شته چه هغه د یو راستباز انسان دپاره د منلو نۀ وي.

له یعنی چه خدائے ته د اولاد نسبت کوي. په دې کښې عیسایان هم شامل دي او یهودیان هم او د عربو مشرکان هم.

له یعنی د هغوئ دا خبره چه فلانے د خدائے ځوئے دے، یا خدائے پاک فلانے په ځوئ والئ نیولے دے، څۀ په دې بنیاد باندې نۀ ده چه گنې هغوئ ته د دې علم دے، بلکه خالص په خپله عقیده کښې خوښېدلي دي او د خپلې ځانه ئې حکم لګولے دے او دا ورته ښیځ پته نه لګېږي چه هغوئ څومره سخته د ګمراهۍ خبره کوي او د الله ربّ العالمین په حق کښې څومره لویه گستاخي کوي او څومره د دروغجنتیا الزام لګوي.

فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلَىٰٓ اٰثَارِهِمْ اِنْ لَّمْ يُؤْمِنُوْا بِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَسَفًا ۝۶ اِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْاَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ اَيُّهُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۝۷ وَاِنَّا لَجٰعِلُوْنَ مَا عَلَيْهَا صَعِيْدًا جُرُزًا ۝۸

بنه، نوله محمده[4]. شاید چه ته به دوئ پسے د ډیر غم د لاسه خپل ځان ضایع کړے که چرے دوئ په دے تعلیم باندِ ایمان را نوړي.[5] حقیقت دا دے چه دا کوم څیزونه په دے زمکه باندِ دی دا مونږه د دے زمکے بنائیست جوړ کړے دی د پاره د دے چه دا خلق وّآزمایو چه څوک پکښے بهتر عمل کونکے دے.[6] آخر به مونږه د دے ټولو څیزونو نه یو هوار میدان جوړه وو۔

[4] د اهغے حالت ته اشاره ده چه په هغے کښے په هغه وخت کښے نبی صلی الله علیه وسلم مبتلا وّو. د دے نه صفا معلومیږی چه نبیؐ سره غم د هغے تکلیفونو نه وّو کوم چه هغه ته او د هغه ملګرو ته ورکړے کیدل، بلکه د کوم څیز فکر چه د هغه سره په زړهٔ کښے دننه وّو هغه دا وّو چه هغه خپل قوم د ګمراهئ او د بد اخلاقئ نه ایستل غوښتل او هغوئ په هیڅ حالت کښے د هغے نه وتلو ته تیار نهٔ وّو. د هغه یقین وّو چه د دے ګمراهئ لازمی نتیجه تباهی ده او عذاب الهی دے. د دے نه د هغوئ د بچ کولو د پاره به نبیؐ خپلے ورځے شپے یو کولے. لیکن د هغه قوم په دے خبره ټینګ ولاړ وّو چه د خدائے عذاب وراشی. نبی صلی الله علیه وسلم خپله دا حالت په دے طریقه بیانوی چه "زما او ستاسو مثال د هغه سړی پشان دے چه هغه د رنړا د پاره وّور بل کړو، خو پتنګان ورله د سوزیدو د پاره راځی. هغه سړے دا کوشش کوی چه دا په هغه طریقه د وّور نه بچ شی، خو پتنګان د هغه یوه خبره نهٔ منی. هم دغسے حال زما دے چه زهٔ تاسو لستوڼو نه راکاږم او تاسو په وّور کښے ځان ورغورزوئ." (بخاری مسلم. دا رنګے د تقابل د پاره وګوره الشعرآء، آیت ۳)

په دے آیت کښے خو په ظاهره دومره خبره شوی ده چه شاید ته به په دوئ پسے خپل ځان ضایع کړے، خو په دے کښے په یو باریک انداز سره هغه له دا تسلی هم ورکړے شوی ده چه د هغوئ د ایمان راوړلو ذمه واری په تا باندِ نهٔ ده، نو ولے ته خپل ځان په غم کښے ویلی کوے؟ ستا کار خو بس زیرے ورکول او یرول دی خلق مؤمنان کول ستا کار نهٔ دے. ته بس د تبلیغ خپل فرض ادا کړه چه څوک اُومنی هغه ته زیرے ورکړه او چه څوک اُونهٔ منی هغه د بد انجام نه خبردار کړه.

[5] اول نے آیت نبی صلی الله علیه وسلم ته وّو او دا دواړه آیتونه کافرانو ته دی. نبی صلی الله علیه وسلم له د تسلّئ ورکولو نه روستو اُوس منکرینو ته دا اّ وَروی چه دا کوم څیزونه د زمکے په مخ تاسو ښئ او چه ستاسو ورسره ډیره مینه ده، دا یو عارضی بنائیست دے، او دا څیزونه صرف ستاسو آزمینت د پاره دی. تاسو په دے دوکه کښے پراته یئ چه دا هرڅه مونږه ستاسو د عیش د پاره پیدا کړی دی، په دے وجه تاسو د مزو چرچو نه بغیر بل مقصد ته توجه نهٔ کوئ،

أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيْمِ كَانُوْا مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا ﴿٩﴾
إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوْا رَبَّنَا اٰتِنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً

آیا تهٔ ګمان کوې چه غار والا[۷] او لیکلې شوې تختې والا[۸] زمونږ په نښو کښې یوه ډېره عجیبه نښه وه؟[۹]
کله چه هغه یو څو ځوانانو په غار کښې پناه واخستله او ووئیل چه "اے پروردګاره، په مونږ خپل خاص رحمت وکړه

او په دے وجه تاسو دَ پوهه کونکی په خبره باندې غور هم نهٔ کړوئ. خو حقیقت دا دے چه دا دَ عیش سامان نهٔ دے بلکه دا دَ امتحان وسائل دی، په دے وسائلو کښې تاسو ته کتلے کیږی چه په تاسو کښې څوک خپل اصل حیثیت هیره وی او دَ دنیا په دے مزو کښې اخته کیږی او څوک خپل اصل مقام (دَ رب بندګی) یاد لری او صحیح پاتے کیږی. په کومه ورځ چه دا امتحان ختم شی په هغه ورځ به دا دَ عیش تخته پاسته کړے شی او دا زمکه به دَ یو هوار میدان نه بغیر بل هیڅ نهٔ وی.

۷ په عربی ژبه کښې "کهف" فراخه غار ته وائی او دَ "غار" لفظ دَ تنګ وړوکی ځائے دَ پاره استعمالیږی خو په اُردو یا پښتو ژبه کښې دَ غار او دَ کهف یوه معنیٰ ده.

۸ دَ الرقیم په معنیٰ کښې اختلاف دے. دَ ځینو صحابو او تابعینو نه دا خبره نقل کړے شوې ده چه دا دَ هغه کلی نوم دے په کوم ځائے کښې چه دا واقعه شوې ده، او هغه دَ ایله (یعنی دَ عقبه) او دَ فلسطین په مینځ کښې وو. او ځینی نور مفسرین وائی چه دَ دے نه مراد هغه لیکلې شوې تختی ده چه دَ اصحاب کهف په غار باندې دَ یادګار دَ پاره لګولے شوې وه. مولانا ابوالکلام آزاد په خپل تفسیر "ترجمان القرآن" کښې اولنۍ معنیٰ له ترجیح ورکړې ده او دا خیال ئے ظاهر کړے دے چه دا هغه مقام دے چه دَ بائبل په یشوع نومے کتاب (باب ۱۸ - آیت ۲۷) کښې ورته رقم یا راقم وئیلے شوے دے. بیا وائی چه دا دَ نبطیانو دَ تاریخی مرکز پیترا پخوانے نوم دے. لیکن هغه په دے خبره باندې غور نهٔ دے کړے چه په یشوع کتاب کښې دَ رقم یا دَ راقم ذکر دَ بنی بن یمین دَ میراث په سلسله کښې راغلے دے او هم په دغه کتاب کښې دا بیان دے چه دَ دغه قبیلے دَ میراث علاقه دَ اُردن دریاب او دَ بحر لوط په مغرب کښې وه چه په هغې کښې دَ پیترا دَ راتلو هیڅ امکان نشته. دَ پیترا کنډرات چه په کومه علاقه کښې موندلے شوی دی په هغې کښې او دَ بنی بن یمین دَ میراث په مینځ کښې خو دَ یهوداه او ادومیه پوره علاقه وه. دا وجه ده چه دَ اوسنۍ زمانے دَ آثار قدیمه محققینو په دے خبره کښې سخت شک کړے دے چه پیترا او راقم ګنی یو شے دے (وګورئ انسائیکلو پیډیا برټانیکا طبع ۱۹۴۶ء جلد ۱۷ - ص ۶۵۸). زمونږ په نیز صحیح خبره دا معلومیږی چه دَ رقیم نه مراد کتبه یعنی لیکلې شوې تختی ده.

۹ یعنی کوم خدائے چه زمکه او آسمانونه پیدا کړی دی آیا تهٔ دَ هغه خدائے دَ قدرت نه دا خبره بهر ګڼے چه هغه یو څو کسان دَ دوه درے سوه کالو پورے ویده اُوساتی او بیائے هم هغسے ځوانان

وَّهَيِّئْ لَنَا مِنْ اَمْرِنَا رَشَدًا ﴿١٠﴾ فَضَرَبْنَا عَلٰٓى اٰذَانِهِمْ فِى الْكَهْفِ
سِنِيْنَ عَدَدًا ﴿١١﴾ ثُمَّ بَعَثْنٰهُمْ لِنَعْلَمَ اَىُّ الْحِزْبَيْنِ اَحْصٰى لِمَا لَبِثُوْٓا
اَمَدًا ﴿١٢﴾ ع نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ ۗ اِنَّهُمْ فِتْيَةٌ اٰمَنُوْا بِرَبِّهِمْ ع ۱۳/۱۲

او زمونږه معامله صحیح کړه." نو مونږه هم په دغه غار کښې د ډیرو کلونو دپاره هغوئ په ډلاسه سره په ډوب خوب اُوده کړل، بیا مونږه هغوئ ددے دپاره راپاسول چه اُوګورو چه د هغوئ په دوو ډلو کښې کومه ډله د خپلے مودے ټیک شمار کوی. ع
مونږه د هغوئ اصل قیصه تاته اورَوُو۔ هغوئ یو څو ځوانان وُو چه په خپل رب باندے ایمان راوړے وو

او صحیح سالم راپاسیږی لکه څنګه چه هغوئ اُوده شوی وُو؟ که چرے د نمر او د سپوږمئ او د ځمکے په پید ائیش باندے تا غور کړے وے نو تا به هیچرے دا خیال نه کولے چه د خدائے دپاره کښی دا څه کوان کار دے۔
۹ د دے قیصے د ټولو نه پخوانے شهادت د شام د جیمس سروجی نومے یو عیسائی پادری په وعظونو کښې موندلے شوے دے چه هغه په سُریانی ژبه کښې لیکلی شوی وُو۔ دا سړے د اصحابِ کهف د وفات نه یو څو کاله روستو په ۴۵۲ کښې پیدا شوے وُو او هغه د ۴۷۴ په خوا و شا زمانه کښې خپل وعظونه لیکلی وُو۔ په دے وعظونو کښې هغه دا ټوله واقعه بنه په تفصیل سره بیان کړې ده۔ دا سُریانی روایت یو طرفته زمونږ د اولنی دور مفسرینو ته ورسید وچه ابن جریر طبری د مختلفو سندونو سره په خپل تفسیر کښې نقل کړے دے، او بل طرفته دا روایت یورپ ته ورسید چه هلته د هغے ترجمے او خلاصے په یونانی او لاطینی ژبو کښې چاپ شولے۔ ګبن د خپل کتاب "تاریخ زوال و سقوطِ دولتِ روم" (یعنی د روم د زوال او د ختمیدو تاریخ) په باب ۳۳ کښې د "اُوُده کسانو" ( Seven Sleepers ) د عنوان لاندې د دغه روایت نه چه د دے قیصے کوم خلاصه ورکړے ده هغه زمونږ د مفسرینو د روایتونو سره دومره یوشان ده چه دواړه قیصے تقریباً یو معلومیږی لکه چه د یو روایت نه اخستلے شوی وی۔ مثلاً د کوم بادشاه د ظلم نه چه اصحابِ کهف تښتیدلی وُو او په غار کښې ئے پناه اخستلی وه، زمونږ مفسرین وائی چه د هغه نوم دقیْنُوس یا دَقیانوس یا دَقیُوس وَو، او ګبن وائی چه هغه قیصر ډیسیَس ( Decius ) وُو چه د ۲۴۹ نه د ۲۵۱ پورے په سلطنتِ روم باندے بادشاهی کړې ده، او چه د هغه د زمانه د مسیح علیه السلام په پیروکارانو باندے د ظلمونو کولو په حقله ډیره بد نامه ده۔ په کوم ښار کښې چه دا واقعه شوی ده، زمونږ مفسرین ئے چه د هغے نوم اَفسُس یا افسوس دے او ګبن وائی چه د هغے نوم اِفِسُس (Emphesus) دے چه د ایشیائے کوچک په مغربی غاړه باندے د رومیانو د ټولو نه لوئ ښار او مشهوره بندرګاه وه چه د هغے کنډرات نن د موجوده ترکی ښار ازمیر (سمرنا) نه شل پنځویشت میله جنوب طرفته دی (وګوره نقشه نمبر ۲ صفحه ۴۳)۔ بیا چه د کوم بادشاه په زمانه کښې اصحابِ کهف راپاسیدل

وَ زِدْنٰهُمْ هُدًى ⑬ وَّ رَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اِذْ قَامُوْا فَقَالُوْا رَبُّنَا
رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَاۡ مِنْ دُوْنِهٖۤ اِلٰـهًا لَّقَدْ قُلْنَاۤ اِذًا
شَطَطًا ⑭ هٰۤؤُلَآءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ لَوْ لَا

---

او مونږ ورله په هدایت کښې نور ترقی ورکړې وه. او مونږ د هغوئ زړونه په هغه وخت کښې مضبوط کړل کله چه هغوئ راپاسیدل او اعلان ئې اوکړو چه "زمونږه رب خو بس هغه دے چه د آسمانونو او د زمکې رب دے. مونږ به د هغه څخه بل ته آواز نه کوو. که مونږه داسې اوکړل نو بالکل بے ځایه خبره به اوکړو." (بیا هغوئ په خپلو کښې یو بل ته اُووئیل "دے زمونږه قوم خو د کائیناتو د رب څخه بل خدایان جوړ کړے دے. دا خلق د هغوئ

---

نو زمونږ مفسرین لیکی چه د هغه نوم تیدوسیس دے او لکین وائی چه هغوئ د قیصر تهیودوسیس ( Theodosus ) دویم په زمانه کښې راپاسیدلی وو، چه د رومی سلطنت د عیسائیت قبلو نه روستو د ۴۰۸ ء نه د ۴۵۰ ء پورے د روم بادشاه (قیصر) وو. د دواړو بیانات دومره یو شان دی چه اصحاب کهف کله راپیدار شو او خپل کوم ملګرے ئې د خوراک راوړلو د پاره ښار ته لیږلے وو، نو زمونږ مفسرین وائی چه د هغه نوم یملیخا دے او لکین لیکی چه د هغه نوم یملیخس دے. د قیصے تفصیلات په دواړو روایتونو کښې یو شان دی او د هغې خلاصه دا ده چه کله د قیصر دیسیس په زمانه کښې د مسیح علیه السلام په پیروکارانو باندې سخت ظلمونه کیدل نو دے اُوَه ځوانانو په یو غار کښې پناه اخستلې وه. بیا د قیصر تهیودوسیس د سلطنت په دوه کم څلویښتم کال کښې (یعنی تقریباً په ۴۴۵ ء یا ۴۴۶ ء کښې) دوئ راپیدار شول چه ټول رومی سلطنت د مسیح علیه السلام پیروکار جوړ شوے وو. په دے حساب سره په غار کښې د هغوئ موده تقریباً څلور کم دوه سوه کاله جوړیږی.

د مشرق ځینو مغربی عالمانو (یعنی مستشرقینو) وئیلی دی چه دا قیصه د اصحاب کهف قیصه نه ده ځکه چه په قرآن کښې د اصحاب کهف د غار موده درے سوه نهه کاله بیان شوی ده. لیکن د دے جواب مونږه په حاشیه نمبره ۲ کښې ورکړے دے.

د دے سُریانی روایت او د قرآن په بیان کښې څه جُزوی اختلافات هم دی چه د هغې په بنیاد باندې لکین په نبی صلی الله علیه وسلم باندې د "جهالت" الزام لګولے دے، حالانکه چه د کوم روایت په وجه هغه دا دومره زړور تیا کړی ده د هغې په حقله هغه خپله دا منی چه دا روایت د شام یو سړی د دغې واقعے نه دیرش څلوېښت کاله روستو لیکلے دے او په دومره موده کښې چه زبانی روایت د یو ملک نه بل ملک ته رسی په هغې کښې د څه نه څه فرق ضرور راځی. د دے قسم د یو روایت په حقله دا خیال کول چه دا حرف په حرف صحیح دے او د دے د یو جُز نه اختلاف کول لازماً د قرآن غلطی ده، نو دا خبره صرف د هغې ضد یا نو خلقو سره ښائی چه په مذهبی

يَأْتُونَ عَلَيْهِم بِسُلْطَٰنٍ بَيِّنٍ ۖ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ
كَذِبًا ﴿١٥﴾ وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ
يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُم مِّن رَّحْمَتِهِ وَيُهَيِّئْ لَكُم مِّنْ أَمْرِكُم مِّرْفَقًا ﴿١٦﴾ وَتَرَى
الشَّمْسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَاوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ
ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ ۚ ذَٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ ۗ مَن يَهْدِ اللَّهُ

په معبودیت باندې یو واضح دلیل ولې نۀ راوړي؟ آخر د هغۀ سړي نه زیات ظالم بل څوک کیدے شي چه په الله پورې دروغ تړي؟ اوس چه تاسو د هغوئ سره او د هغوئ د معبودانِ غیرالله سره تعلق ختم کړے دے نو ځئ اوس په فلاں غار کښې پناه واخلئ. ستاسو رب به په تاسو باندې د خپل رحمت لمن راخوره کړي او ستاسو د کار د پاره به سامان راپیدا کړي."

چه هغوئ ته به د هغه غار کښې کتل نو تا به داسے ښکاریدل چه نمر کله راخیژي نو د هغوئ د غار نه ښي طرفته راخیژي او چه کله پریوزي نو د هغوئ نه چپ کس طرفته پریوزي او هغوئ په غار کښې د ننه په یو فراخه ځائے کښې پراته دي.[۱۲] دا د الله د نښونو نه یوه نښه ده. چا ته چه الله هدایت وکړي

تعصب کښې د عقل معمولي تقاضې ته هم توجه نۀ ورکوي. (د اصحابِ کهف د قیصے په حقله زیات معلومات په ضمیمه نمبر ۱ کښې بیان کړے شوي دي چه هغه د کتاب په آخر کښې درج ده.)

[۱۰] یعني هر کله چه هغوئ په ریښتیا سره ایمان راوړو نو الله تعالیٰ د هغوئ په هدایت کښې اضافه اُوکړه او هغوئ له ئې دا توفیق ورکړو چه په حق او په صداقت باندې کلک شي، او خپل ځان په خطره کښې اچول خوړه کړي خو چه باطل ته سر ټیټ نۀ کړي.

[۱۱] په کومه زمانه کښې چه دے خدا پرستو ځوانانو تکلے پریښودے وو او په غر کښې ئې پناه اخستې وه په هغه وخت کښې په ایشیائے کوچک کښې اِفِسُس ښار د بُت پرستئ او د جادوګرۍ د ټولو نه لوئ مرکز وو. هلته د ډایانا نومے یوه لوئے نجئ (دیوي) یو عظیم الشان مندر وو چه شهرت ئې په ټوله دُنیا کښې خور شوے وو او خلق به د لرے لرے نه د هغې د عبادت د پاره راتلل. د هغه ځائے جادوګران، عاملان، فال کتونکي او تعویذ لیکونکي په ټوله دُنیا کښې مشهور وو. د شام او د فلسطین او د مصر پورے د هغوئ کاروبار چلیدو او په دے کاروبار کښې د یهودیانو هم کافي حصه وه چه هغوئ به د خپل فن نسبت حضرت سلیمان ته کولو (وګوره سائیکلو پیډیا آف ببلیکل لټریچر. عنوان) د شرک او د وهم پرستئ په دے ماحول کښې چه به د خدا پرستو خلقو کوم حال وو د هغې اندازه د اصحابِ کهف د هغه وینا نه لګیدے شي کومه چه په وړاندې رکوع کښې راغلې ده چه "که چرے هغوی مونږ ه اُونیولو نو سنګسار به مو کړي او یا به مو په زور خپل ملت ته واپس واړوي."



فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿۱۷﴾ وَتَحْسَبُهُمْ
اَيْقَاظًا وَّهُمْ رُقُوْدٌ ۖ وَّنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَذَاتَ الشِّمَالِ ۖ
وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيْدِ ۚ لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ
فِرَارًا وَّلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴿۱۸﴾ وَكَذٰلِكَ بَعَثْنٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوْا بَيْنَهُمْ ۚ
قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ ۚ قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۚ

هغه هدایت مونده وکے دے او څوک چه الله بے لارے کړی نو د هغه د پاره ته څوک مُرشِد ولی (یعنی لارښود وکے مددګار) نه شے موندلے. ته چه هغوی ته به وکتل نو تا به وئیل چه ویښ دی، حالانکه هغوی ویده وو. مونږ به هغوی ښی او کس طرفته وډه په وډه اړول. او د هغوی سپے د غار په خوله کښے خورے څنګلے ناست وو. که تا به هغوی ته سر وربنکاره کړو نو واپس به ترې په منډه راتښتیدے او د هغوی د لید وجه نه به در باندې یره راتلله[۱۲]
او همدا شان په نا آشنا طریقے سره مونږه هغوی راپاسول[۱۳] چه لږ په خپلو کښے د یو بل نه تپوس اوکړی. په هغوی کښے یو تن تپوس اوکړو "اوو ایئ، څومره وخت مو په دے حال کښے وشو؟" نورو ورته اووئیل "شاید چه یوه روغه ورځ یا د ورځے نه څه کم وخت به مو شوے وی."

[۱۲] په منځ کښے دا ذکر پرینبود شو چه هغوی د دعوے مطابق د ښار نه اُووتل او د غرونو په منځ کښے په یو غار کښے پټ شول چه د سنګسار کیدو یا په زور باندې د مرتد کیدو نه بچ شی.
[۱۳] یعنی د هغوی د غار خُوله قُطب طرفته وه چه په یو موسم کښے به هم نمر د ننه نه لګیدو او د بهر نه چه به څوک تیریدل هغوی ته به هیڅ نه ښکاریدل چه د ننه څوک دی.
[۱۴] یعنی د بهر نه که به چا سرور ښکاره هم کړو خو دا اُوده کسان به وخت په وخت د دے په ډهے اوړیدل را اوړیدل او دمه وجه نه به د هغه دا ګمان راغے چه دوی کښې هسے ملاست دی اُوده نه دی.
[۱۵] یعنی پس غرونو کښے پټ په یو تور غار کښے یو څو کسان او یو سپے چه د هغوی هم نه ښناست وو، دا سے ښکاریدل چه چا به لیدل نو وئیل به ئے چه دا واګوان دی او واپس به په منډه تښتیدو. او دا غنه وجه وه چه د دومره ډیرے مودے پورے د هغوی حال چا ته ښکاره نه شو. هیچا دا زړه ورنیا نه شوه کولے چه د ننه تلے وے او د اصلی معاملے نه ئے خان خبر کړے وے.
[۱۶] یعنی لکه څنګه چه په نا آشنا طریقے سره هغوی اُوده کړے شوی وو او د دُنیا خلق د هغوی د حال نه نا خبره ساتلے شوی وو هم د غه شان په نا آشنا طریقے سره د ډیرے مُودے د تیریدو نه روستو هغوی راپاسولے شو.

قَالُوْا رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ ؕ فَابْعَثُوْۤا اَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هٰذِهٖۤ اِلَى الْمَدِيْنَةِ
فَلْيَنْظُرْ اَيُّهَاۤ اَزْكٰى طَعَامًا فَلْيَاْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا
يُشْعِرَنَّ بِكُمْ اَحَدًا ﴿۱۹﴾ اِنَّهُمْ اِنْ يَّظْهَرُوْا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوْكُمْ اَوْ يُعِيْدُوْكُمْ
فِيْ مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوْۤا اِذًا اَبَدًا ﴿۲۰﴾ وَكَذٰلِكَ اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوْۤا
اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيْهَا ۚ اِذْ يَتَنَازَعُوْنَ بَيْنَهُمْ

بیا هغوی اُو وئیل "الله ته ښهٔ معلوم دے چه په دے حالت کښے زمونږ څومره وخت تیر شو. څئ، اُوس په خپلو کښے یو تن له دَ چاندئ دا سکه ورکړئ او ښار ته ئے اُولیږئ او هغه دِ اُوګوری چه دَ تولو ښهٔ طعام کوم ځائے ملاویږی. دَ هغه ځائے نه دِ هغه څه دَ خوراک دَپاره راوړی. او پکار دی چه لږ په هوښیارتیا سره کار اوکړی، هسے نهٔ چه زمونږ دَ دے ځائے دَ دیره کید و نه څوک خبر کړی. که چرے هغوی مونږه اُونیولو نو سنګسار به مو کړی یا به مو په زور بانِدِ خپل مِلّت ته واپس واړوی، او که داسے اُوشوه نو مونږ به هیچرے فلاح اُونهٔ مومندے شو" ـــــ په دے طریقه مونږ هٔ دَ ښار خلق دَ هغوی په حال بانِدِ خبر کړل[۱۷] دَپاره دَ دے چه خلقو ته معلوم شی چه دَ الله وعده رِښتینی ده او دا چه دَ قیامت ورځ به بے شکه[۱۸] راځئ. (لیکن لږ خیال اُوکړئ چه هر کله دَ سوچ کولو اصلی خبره دا وه نو) په هغه وخت کښے هغوی په خپلو کښے په دِے خبره جګړه کوله

[۱۷] یعنی هر کله چه هغه سړے دَ طعام اغستلو دَپاره ښار ته لاړو نو دُنیا بدله شوی وه. بُت پرست روم عیسائی شوے وُو او ډیره موده تیره شوی وه ـ په ژبه، په تهذیب، په ناسته پاسته او په کپړو و غیره کښے ښکاره ډیر فرق راغلے وُو ـ دَ تیرو شوو دوه سوو کالو داسے سړی دَ خپل کړه وړه، جامے، ژبے او دَ هر څیز په اعتبار سره فوراً دَ خلقو یوه تماشا جوړه شوه ـ او کله چه هغه دَ خوراک اغستلو دَپاره دَ قیصر ډیسیس دَ زمانے سکه دوکاندار ته پیش کړه نو دوکاندار اریان دریان شو ـ دَ سُریانی روایت مطابق دَ دوکاندار ورته شک راغے چه دَ دهٔ کنی دَ پخوانئ زمانے خزانه مونده لی ده ـ نو هغه دَ خواؤ شا دَ خلقو توجه دَ دهٔ طرفته راواړوله او آخر دا چه هغه دَ حکومت خلقو ته پیش کړے شو. هلته چه لاړو نو دا خبره ښکاره شوه چه دا سړے خو دَ مسیح په هغه پیروکارانو کښے دے چه هغوی دوه سوه کاله مخکښے دَ خپل ایمان دَ بچ کولو دَپاره تښتیدلی وُو. دا خبر په یو ساعت کښے دَ ښار په عیسایانو کښے خور شوا و دَ حاکمانو سره دَ خلقو یوه ګڼه ګوڼه غار ته اُورسیده. اُوس چه اصحابو کهف ته پته اُولګیده چه هغوی دَ دوو سوو کالو دَ خوب نه روستو بیا راپاسیدلی دی نو هغوی خپلو عیسائی رونړو ته سلامُ اُوکړوا و سملاستل او روح ئے پرواز کړه.

[۱۸] دَ سُریانی روایت مطابق هلته په دغه زمانه کښے دَ قیامت او دَ آخرت په مسئله بانِدِ ښهٔ په زور شور سره بحثونه کیدل ـ اګرچه دَ رومی سلطنت دَ اثر دَ وجے نه عامو خلقو مسیحیت قبول کړے وُو چه دَ

اَمْرَهُمْ فَقَالُوا ابْنُوْا عَلَيْهِمْ بُنْيَانًا ۚ رَبُّهُمْ اَعْلَمُ بِهِمْ ۚ قَالَ الَّذِيْنَ غَلَبُوْا

چه دَدے (اصحاب کهف) سره څه وکړے شي. څه خلقو اُووئيل" په دوئ باندِ يو ديوال جوړ کړئ، دَدوئ رب دَ دوئ په معامله باندِ ښه علم لري"۔ خو کوم خلق چه دَ هغوی په معاملاتو باندِ غالب وُو

هغوی بنیادی عقیدو کښې دَ آخرت عقیده هم شامله وه، لیکن په خلقو باندِ لا تر اوسه پورے دَ رُومی شرک او بُت پرستیٔ او دَ یونانی فلسفے اثرات ښه قوی پراته وُو چه دَ هغې په وجه ډیر خلق دَ آخرت نه انکاریان یا دَ آخرت په باره کښې شکمن وُو۔ دَ خلقو دا شک په دے وجه زیات وُو چه په اِفِسُس ښار کښې ډیر یهودیان آباد وُو او په هغوی کښې یو فرقه (چه دَ صدوقی په نوم یادیده) دَ هغے دَ آخرت نه په ښکاره منکره وه. چه هغے به دَ کتاب الله (یعنی دَ تورات) نه دَ آخرت په انکار باندِ دلیلونه پیش کول او دَ مسیحی عُلماؤ سره دَ هغې په مقابله کښې مضبوط دلیلونه نهٔ وُو. په متی، مرقس او لوقا درے واړو انجیلونو کښې دَ صدوقیانو او دَ مسیح علیه السلام دَ هغې مناظرے ذکر شته کوم مناظره چه دَ آخرت په مسئله باندِ شوی وه، خو درے واړو دَ مسیح علیه السلام دَ طرفنه داسے کمزورے جواب نقل کړے وه چه دَ هغې کمزوری چرته مسیحی عالمان هم تسلیم کوی۔ (وګورئ متی باب ۲۲۔ آیت ۲۳-۳۳۔ مرقس باب ۱۲۔ آیت ۱۸-۲۷۔ لوقا باب ۲۰۔ آیت ۲۷-۴۰) دا وجه وه چه دَ آخرت نه انکار کونکی خلق به زیاتیدل او دَ آخرت منونکی هم په شک کښې اخته کیدل۔ عین په دغه وخت کښې دَ اصحاب کهفو دَ بیا پاسیدو دا واقعه اُوشوه او په دے سره دَ مرګ نه روستو دَ را ژوندی کیدو داسے ثبوت ملاؤ شو چه دَ هغې نه انکار نهٔ شو کیدے۔

۱۹ دَ کلام دَ انداز نه معلومیږی چه دا دَ صالحانو نصاراؤ قول وُو۔ دَ هغوی رائے دا وه چه هغوی په غار کښې څنګه پراته دی هم دغه شان ئے پراته پریږدئ او دَ غار خولے ته دَ کاڼو دیوال جوړ کړئ، دَ هغوی رب ته ښه معلومه ده چه دوی څوک دی، دَ کومے مرتبے دی او دَ څه جزا مستحق دی۔

۲۰ دَ دے نه مُراد دَ رُومی سُلطنت دَ اقتدار خاوندان او دَ مسیحی کلیسا مذهبی پیشواکان دی چه دَ هغوی په مقابله کښې دَ صحیح عقیدے والو عیسایانو خبره نهٔ چلیده۔ دَ پنځمے صدئ دَ منځه پورے په عام عیسایانو کښې او خاص طور په رومن کیتهولک کلیسا کښې دَ شرک او دَ اولیاء پرستیٔ او دَ قبر پرستیٔ ښه پوره زور جوړ شوے وُو، دَ بزرګانو په دربارونو کښې به عبادتونه کیدل، او دَ مسیح، دَ مریم او دَ حواریانو مجسمے به په ګرجو کښې کیښودے کیدے۔ دَ اصحاب کهفو دَ را ژوندی کیدو نه یو څو کاله مخکښے په ۴۳۱ء کښې دَ ټوله عیسائی دُنیا دَ مذهبی پیشواکانو یوه غونډه هم په دے اِفِسُس ښار کښې شوی وه چه په هغې کښې دَ مسیح علیه السلام دَ خُدَا اُبُنُوَّ عقیده او دَ حضرت مریم په حقله دا عقیده چه هغه "دَ خدائے مور" ده، دَ چرچ یوه سرکاری عقیده ګرځولے شوی وه۔ دَ دے تاریخ ترمخه دا صفا معلومیږی چه دَ اَلَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰٓى اَمْرِهِمْ نه مراد هغه خلق دی چه په هغه وخت کښې دَ مسیح دَ رښتینی پیروکارانو

عَلٰٓى اَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِمْ مَّسْجِدًا ﴿۲۱﴾ سَيَقُوْلُوْنَ ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ
وَيَقُوْلُوْنَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ وَيَقُوْلُوْنَ سَبْعَةٌ

هغوی اُووئیل مونږ خو به په هغوی باندې یوه عبادت خانه[۲۱] جوړه وو"
څه خلق به وائي چه هغوی دریه وُو او څلورم د هغوی سپے وَو. او څوک به وائي چه هغوی
پنځه وُو او شپږم د هغوی سپے وُو. دوئ ټول اټکلی خبرے کوی. څه نور خلق وائي چه اُووه وُو

په مقابله کښې د عیسائي خلقو مشران جوړ شوی وُو او د مذهبي او سیاسي معاملو واګے د هغوی په لاسونو کښې وے. دا خلق په اصل کښې مشرکان وُو او هم دوئ دا فیصله اُوکړه چه په اصحابِ کهفو باندې مقبره جوړه کړئ چه د هغې نه عبادت خانه جوړه کړے شي.

[۲۱] په مسلمانانو کښې ځینو خلقو د قرآن مجید د دے آیت نه بالکل اُلټا مطلب اخستے دے. هغوی کومه د دلیل جوړ وی او د نیکانو صالحانو په قبرونو باندې عمارتونو او ځجاتو نو جوړولو ته جائز وائی. حالانکه دلته قرآن د هغوی د ګمراهئ ته اشاره کوی چه کومه نبنه د ے ظالمانو ته د مرګ نه روستو د ژوند او د آخرت د یقین را وستلو د پاره بنوډلے شوی وه هغه دوی د شرک کولو د پاره یوه خدائي موقع اُوګڼله او دا خیال ئے اُوکړو چه ښه ګټوره نوراولیاء د عبادت د پاره په لاس راغلل. آخر د دے آیت نه د صالحانو په قبرونو باندې د ځجاتو جوړولو څنګه استدلال کیدے شي چه هر کله د نبي صلی الله علیه وسلم دا ارشادات د هغې نهي کوی :

| | |
|---|---|
| لعن الله تعالیٰ زائرات القبور والمتخذین علیها المساجد والسُّرج. (احمد، ترمذی، ابوداؤد نسائي، ابن ملجه). | الله لعنت کړے دے په هغه ښځو باندې چه د قبرونو زیارت کوی، او په هغه خلقو باندې چه په قبرونو ځجاتو نه جوړوی او ډیوے پرے بلکوی. |
| آلا وان من کان قبلکم کانوا یتخذون قبور انبیاءهم مساجد فانی انهکم عن ذلك (مسلم) | خبردار اوسئ، ستاسو نه مخکښې خلقو به د خپلو پیغمبرانو د قبرونو نه عبادتخانے جوړولے، څه تاسو د دے حرکت نه منع کوم. |
| لعن الله تعالی الیهود والنصاری اتخذوا قبور انبیاءهم مساجد (احمد، بخاری، مسلم، نسائي). | الله لعنت اوکړو په یهودیانو او په نصاری باندې، هغوی د خپلو پیغمبرانو د قبرونو نه عبادتخانے جوړے کړے وے. |
| اِنَّ اُولٰٓئِكَ اذا کان فیهم الرجل الصالح فمات بنوا علی قبره مسجدا وصوروا فیه تلك الصور اولٰٓئِكَ شرار الخلق یوم القیٰمة (احمد، بخاری. مسلم. نسائي) | د هغې خلقو حال دا وو چه که په هغوئ کښې به څوک نیک سړے وُو نو د هغه د مرګ نه روستو به هغوی د هغه په قبر باندې ځجاتو نه جوړول او د هغه تصویرونه به ئے تیارول. دوی به د قیامت په ورځ بد ترین مخلوق وی. |



وَّثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ ؕ قُلْ رَّبِّیْۤ اَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ مَّا یَعْلَمُهُمْ اِلَّا قَلِیْلٌ ۬ فَلَا
تُمَارِ فِیْهِمْ اِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا ۪ وَّلَا تَسْتَفْتِ فِیْهِمْ مِّنْهُمْ اَحَدًا ﴿۲۲﴾ وَ

او اتم د هغوی سپے وو. ورته اووایه، چه زما رب ته ښه معلوم ده چه هغوی څو مره وو. ډیر کمو خلقو ته د هغوی صحیح تعداد معلوم دے. پس ته د سرسری خبرے نه زیات د هغوی د تعداد په حقله د خلقو سره بحث مه کوه، او مه د هغوی په حقله د چا نه تپوس کوه ـــــــ آد کوه

د نبی صلی الله علیه وسلم د دے صریح ارشاد نه په موجودګئ کښے کوم خدا ترسه سړے دا نړ ورتیا کولے شی چه په قرآن مجید کښے د عیسائی پادریانو او د رومی حکمرانانو کوم کمراهئ کار د قیصے په طور ذکر کړے شوے دے هغه هم تیک د دغے کار د کولو د پاره دلیل او حجت او کرځوی؟

په دے موقع به دا ذکر کول هم د فایدے نه خالی نه وی چه په ۱۸۳۴ء کښے ریورنډ ټی ارنډیل (Arundell) د ایشیائے کوچک د اکتشافاتو "Discoveries in Asia Miror" په نوم سره خپل کوم مشاهدات شایع کړی وو په هغے کښے هغه وائی چه د ښخوانی اِنسُس ښار د کنډراتو سره جُوخت په یو غرباندِ هغه د حضرت مریمؑ او د "اوو هلکانو" (یعنی اصحاب کهف) د مقبرو آثار موندلی دی.

۲۲ د دے نه معلومیږی چه د دے واقعے نه پاو کم درے سوه کاله روستو، د قرآن د نازلیدو په زمانه کښے د دے قیصے د تفصیلاتو په حقله مختلفے افسانے په عیسایانو کښے خورے شوے وے او عام طور صحیح معلومات د خلقو سره موجود نه وو. ظاهره ده چه هغه د پرییس زمانه نه وه چه په کوموکتابونو کښے د هغے په حقله څه قدرے زیات معلومات وو چه هغه عام شائع شوے وے. واقعات به اکثر زبانی خوریدل، او د وخت په تیریدو سره به د هغے د زیاتے حصے نه افسانه جوړیده. بیا هم چونکه د دریم قول تردید الله تعالیٰ نه دے کړے، د دے وجه نه د اګمان کیدے شی چه د هغوی صحیح تعداد اووه وو.

۲۳ مطلب دا دے چه اصل څیز د هغوی تعداد نه دے، بلکه اصل څیز هغه سبق دے کوم چه د دے قیصے نه ملاویږی. د دے نه دا سبق ملاویږی چه یو رینښتینی مومن له په هیڅ حال کښے د حق نه د مخ اړولو او باطل ته د سر ټیټولو د پاره تیاریدل نه دی پکار. د دے نه دا سبق ملاویږی چه د مومن بروسه د دنیا په سامان باندے نه بلکه په الله باندے پکار ده، او که د حق پرستئ د پاره په ظاهره ماحول موزون نه ښکاری نو بیا هم د الله په بروسه په حق لار کښے قدم اغستل پکار دی. د دے نه دا سبق ملاویږی چه کوم "عادتِ جاریه" ته خلق "د فطرت قانون" وائی او دا خیال کوی چه په دنیا کښے د دے قانون خلاف هیڅ نه شی کیدے، الله تعالیٰ په حقیقت کښے د دے قانون پابند نه دے، هغه چه کله او په کوم ځائے کښے اوغواړی دا عادت بدلولے شی او چه کوم کار کول غواړی هغه کولے شی. د هغه د پاره دا ځلوئ کار نه دے چه څوک د دوه سوو کالو پورے اوده کړی او بیائے په دا سے طریقه

وَلَا تَقُولَنَّ لِشَايْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ﴿٢٣﴾ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ ۚ
وَاذْكُرْ رَبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ عَسَىٰ أَنْ يَهْدِيَنِ رَبِّي لِأَقْرَبَ مِنْ
هَٰذَا رَشَدًا ﴿٢٤﴾ وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَاثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا

دَ څه څيز په حقله هيڅ ګړه دا مه وايه چه زه به صبا له دا کار کوم. (ته هيڅ نشے کولے) ماسوا دَ هغه چه الله اوغواړي. که چرے په هيره سره دا سے خبره دَ خولے نه ووځي نو فوراً خپل رب ياد کړه او اووايه "اُميد دے چه زما رب به په دے معامله کښے ما ته دا سے خبره اوښائي چه هغه به صحيح والي ته دَ تلو نه زياته نزدے وي." ——— او هغوي په خپل غار کښے درے سوه کاله وخت تير کړو، او (څه خلق دَ موده په شماره کښے) نهه کاله نور هم وَر زيات

را پاسوي لکه چه هغه پرون اُوده شوے وي، او دَ هغه په عمر، په شکل، په جامه او په صحت، غرض په هر څيز باندِ دَ وخت دَ تيريدو هيڅ اثر نه وي. دَ دے نه دا سبق ملاويږي چه دَ انسانانو تول ورانيه روستو نسلونه په يو وخت را ژوندي کول، لکه څنګه چه پيغمبرانو ويلي دي او په آسماني کتابونو کښے ښکاره شوي دي، دَ الله تعالىٰ دَ قدرت نه هيڅ لرے خبره نه ده. دَ دے نه دا سبق ملاويږي چه جاهلان خلق به کوم طريقه په هر زمانه کښے دَ الله دَ نښونه دَ عبرت اخستلو په ځائے اُلټا ځان له دَ ګمراهئ سامان جوړ وي. دَ اصحاب کهف دا معجزه الله تعالىٰ دَ دے دَ پاره ښودلے وه چه خلق دَ دے نه دَ آخرت يقين حاصل کړي، ليکن هغوي هم دغه نښه دا سے او ګڼله چه ګني الله تعالىٰ هغوي له څه نوره اولياء دَ عبادت دَ پاره ورکړل ——— دا دي هغه اصلي عبرتونه چه سړي له دَ دے قيصے نه اخستل پکار دي او په دے قيصه کښے هم دا خبرے دَ توجه قابل دي. دَ دے نه توجه لرے کول او په دے خبرو پسے لګيدل چه اصحاب کهف څومره وو او څومره نه وو، او دَ هغوي څه څه نومونه وو او دَ هغوي دَ سپي څه رنګ وو نو دا دَ هغه خلقو کار دے چه مغز پريږدي او صرف دَ پوټکو سره مينه لري. په دے وجه الله تعالىٰ نبي صلي الله عليه وسلم ته او دَ هغه په واسطه سره مؤمنانو ته دا تعليم ورکړو چه که نور خلق دغه بے ضرورته بحثونه کوي هم خو ته ئے مه کوه، مه دَ دا سے تپوسونو په تحقيق کولو کښے څه وخت ضايع کوه، بلکه خپله توجه صرف دَ کار په خبرو باندِ ساته. هم دا وجه ده چه الله تعالىٰ پخپله دَ هغوي صحيح تعداد نه دے بيان کړے دَ پاره دَ دے چه فضول شوق لرونکو ته غذا ملاؤ نشي -

۲۳ دا په منځ کښے يوه خبره ده چه دَ روستني آيت دَ مضمون سره مناسبت لري او په دے وجه دَ کلام په منځ کښے بيان کړے شوي ده. په تير شوي آيت کښے دا خبره شوي وه چه دَ اصحاب کهف دَ تعداد صحيح علم الله تعالىٰ ته دے، او دَ دے تحقيق کولو ته هيڅ ضرورت نشته، نه خلقو دَ پوښے غير ضروري خبرے دَ تلاش کولو نه ځان ساته، او په هغے باندِ دَ چا سره بحث مه کوه. په دے سلسله کښے دَ محکيني خبرے کولو نه روسته يوه بله خبره په منځ کښے نبي صلي الله عليه وسلم ته او مؤمنانو ته اوشوه او هغه

تِسْعًا ﴿٢٥﴾ قُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوْا ۚ لَهٗ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ اَبْصِرْ بِهٖ
وَاَسْمِعْ ۭ مَا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِيٍّ ۡ وَّلَا يُشْرِكُ فِيْ حُكْمِهٖٓ اَحَدًا ﴿٢٦﴾ وَ
اتْلُ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنْ كِتَابِ رَبِّكَ ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۣ وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ
مُلْتَحَدًا ﴿٢٧﴾ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ

شوی دی.[25] ته ورته ووایه، الله ته د هغوی د قیام موده ښه معلومه ده، د آسمانونو او د ځمکې ټول پټ حالونه خاص هغه ته معلوم دي، څنګه ښه دے هغه لیدونکے او اورېدونکے (د ځمکې او د آسمانونو د مخلوقاتو) خبراخستونکے د هغه سوا بل څوک نشته، او هغه په خپل حکومت کښې څوک نه شریکوی.

[26] اے نبی، ستا د رب د کتاب نه چه څه وحی په تا باندې شوی ده هغه (هوبهو) واوروه، هیڅوک د هغه د حکمونو د بدلولو اختیارمند نه دے، (او که چرے تا د چا د خاطره په هغې کښې رد و بدل اوکړونو) د هغه نه به د بچ کیدو د پاره ځان له د پناه ځائے بیا نه مومے.[27] او خپل زړه له د هغه خلقو په ملګرتیا باندې تسلی ورکړه چه هغوی د خپل رب د رضا طلبګاردی او صبا بیګا

دا چه ته په دعوی سره هیڅ رے دا مه وایه چه زه به صبا لفلانے کار کوم. تا ته څه معلومه چه ته به هغه کار وکړے شے او که نه. نه تا ته د غیبو علم مے او نه ته په خپلو کارونو کښې دا سے خود مختار ئے چه څه غواړے او هغه اوکړے شے. نو که چرته خیال د نه وی او دا سے خبره د خولے نه وځی نو فوراً خبردار شه او الله یاد کړه او ان شاء الله اُووایه. دا نګے تا ته دا هم معلومه نه ده چه د کوم کار د کولو خبره ته کوے، نو چه آیا په هغې کښې خیر دے یا بل څه کار د هغې نه بهتر دے. نو بس په خدائے باندې بروسه کوه او دا سے وایه چه اُمید دے چه زما رب به په دے معامله کښې ماته دا سے خبره اُوښائی چه هغه په زیاته صحیح وی.

[25] زمونږ په نزد دے فقرے تعلق د جُمله معترضے (یعنی د منځنئ خبرے) نه چه کومه رومبنئ فقره ده د هغې سره دے. یعنی عبارت دا سے دے چه "څه خلق به وائی چه هغوی درے وُو او څلورم د هغوی سپے وُو، ..... او څه خلق وائی چه هغوی په خپل غار کښې درے سوه کاله پراته وُو او څه خلق وائی په شمار کښې نهه کاله نورهم ورزیات شوی دی." په دے عبارت کښې چه درے سوه او درے سوه نهه کاله تعداد بیان کړے شوے دے زمونږ په خیال کښې دا په اصل کښې د خلقو د قول حکایت دے نه دا چه د الله تعالیٰ خپل قول دے. او په دے باندې دلیل دا دے چه پس روستنئ فقره کښې الله تعالیٰ پخپله فرمائی چه ته ورته اُووایه، الله ته د هغوی موده ښه معلومه ده. که درے سوه نهه کاله تعین الله پخپله فرمائیلے وے، نو د هغې نه روستو د دے فقرے د وئیلو هیڅ معنیٰ نه وه. او دویم دلیل په وجه

يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

هغوى اوږدوي کوي، او د هغوى نه ستر که هرګز مه اړوه. آيا ته د دُنيا زينت خوښوې؟ [۲۶]

حضرت عبدالله بن عباسؓ همدا معنٰى اختيار کړي ده چه دا د الله تعالىٰ قول نه دے بلکه د خلقو د قول حکايت دے.

[۲۶] د اصحاب کهفو قيصے ختمولو نه روستو اُوس د دے ځائے نه دويم مضمون شروع کيږي او په دے کښے په هغه حالاتو باندې تبصره شوې ده کوم چه په هغه وخت کښے په مکه کښے مسلمانانو ته پيښ شوي وو.

[۲۷] د دے مطلب دا نه دے چه معاذ الله په هغه وخت کښے نبي صلى الله عليه وسلم د مکے د کافرانو د خاطره په قرآن مجيد کښے د څه ردّ و بدل کولو او د څه کمي زياتي راوستلو سوچ کولو او الله تعالىٰ هغه د دے نه منع کولو. بلکه په اصل کښے خبره د مکے کافرانو ته ده اګرچه خطاب په ظاهره نبي صلى الله عليه وسلم ته دے. کافرانو ته دا ښودل مقصد دي چه محمد صلى الله عليه وسلم د خدائے په کلام کښے د خپل طرفنه د څه کمي زياتي راوستلو اختيار نه لري. د هغه کار بس دا دے چه څه خدائے نازل کړي دي هغه پوره په پوره انسانانو ته ورسوي. تاسو که منئ نو هغه پوره دين هو بهو اُومنئ کوم چه د خدائے د طرفنه پيش کيږي، او که نه منئ نو په شوق سره ئے مه منئ. ليکن په هيڅ حال کښے دا اُميد مه لرئ چه ستاسو د راضي کولو د پاره به په دين کښے ستاسو د خواهشاتو مطابق څه بدلون اُوکړے شي، اګر که هغه څوره لږ او جزوي بدلون وي. دا جواب دے د کافرانو د هغه مطالبے چه هغوى به يا ربار کوله چه دا څه ضد دے راتينګ کړے دے چه موږ به ستا ټولے خبرے منو. آخر څه خو زموږ د دين د عقيدو او د رسمونو رواجونو لحاظ کوه. څه ته زموږ او منه، څه به موږ ستا او منو په دے راضي نامه کيدے شي او روړو ولي به په ځائے پاتے شي. په قرآن کښے د هغوى د دے مطالبے ذکر په ډيرو ځايونو کښے شوے دے او د هغے هم دا جواب ورکړے شوے دے. د مثال په طور د سورة يونس آيت ۱۵ وګوره: وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ ۙ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ ؕ "کله چه زموږ آيتونه هغوى ته صفا صفا اوروله کيږي نو هغه خلق چه موږ ته د حاضريدو اُميد نه لري هغوى وائي چه د دے په ځائے بل قرآن را وړه يا په دے کښے څه ترميم اُوکړه."

[۲۸] د ابن عباسؓ د روايت مطابق د قريشو سردارانو به نبي صلى الله عليه وسلم ته وئيل چه دا بلالؓ او صهيبؓ او عمارؓ او خبابؓ او ابن مسعودؓ غوندې غريبان خلق چه ستا سره کيني نو موږ د هغوى سره نه شو کيناستے دوى لرے کړه نو موږ به درشو او دا به معلوم کړو چه ته څه وئيل غواړے. په دے باندې الله تعالىٰ نبي صلى الله عليه وسلم ته وفرمائيل چه کوم خلق د خدائے د رضا د پاره ستا نه چاپيره راجمع شوي دي او شپه و ورځ خپل رب ياد وي، د هغوى په مقابله کښے باندې خپل زړه مطمئن کړه او د هغوى نه ستر که هرګز مه اړوه. آيا ته د دے مخلصو خلقو په ځائے دا غواړے چه دُنيوي شان لرونکي خلق ستا سره کيني؟ دا خبره هم په ظاهره نبي صلى الله عليه وسلم ته ده، ليکن مقصد ئے د قريشو سردارانو ته اورول دي چه ستاسو

وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ﴿۲۸﴾
وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ قف فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ لا

دَ یو داسے سړي اِطاعت مهٔ کوه چه دَ هغهٔ زړهٔ مونږ دَ خپل یاد نه غافل کړے دے اَو چه هغه دَ خپل نفس دَ خواهشاتو پیروي اختیار کړې ده اَو چه دَ هغهٔ دَ کار بُنیاد په افراط وتفریط باندِ دَ ســ۲۹ صفا ورته اُووایه چه دا حق دے ستاسو دَ رب دَ طرفه، اَوس چه دَ چا زړهٔ غواړي نو دٔ دِ مني اَو چه دَ چا زړهٔ غواړي نو انکار دِ اَو کړي۔۳۱

دَ دِنیا دا شان وشوکت چه تاسو پرِ خوشحالیږئ، دَ الله اَو دَ هغهٔ دَ رسول په نظر کښے هیڅ قدر وقیمت نهٔ لري۔ ستاسو نه هغه غریبان خلق زیات قیمتي دي چه په زړونو کښے ئے اخلاص دے اَو خپل رب هر وخت یاد وي. تیک هم دا معامله دَ حضرت نوحؑ اَو دَ هغهٔ دَ قوم دَ سردارانو په منځ کښے راغلی وه. هغوی حضرت نوحؑ ته وئیل وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ اِلَّا الَّذِيْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّاْيِ۔ " مونږ خو دا وینو چه په مونږ کښے کوم رذیلان خلق دي هغوی بے سوچه اَو بے فکره په تا پسے تکید لي دي." اَو دَ حضرت نوحؑ جواب دا وُو چه مَا اَنَا بِطَارِدِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، " زهٔ مؤمنان شړلے نهٔ شم." اَو وَلَا اَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ تَزْدَرِيْٓ اَعْيُنُكُمْ لَنْ يُّؤْتِيَهُمُ اللّٰهُ خَيْرًا، " کوم خلقو ته چه تاسو په سپك نظر کوری زهٔ دَ هغوی په حقله دا نشم وئیله چه الله هغوی له هډو خیر نهٔ دے ورکړے." (هود آیت ۲۷-۲۹-۳۱- سورة انعام آیت ۵۲- سورة الحجر، آیت ۸۸)۔

۲۹ یعنی دَ هغه خبره مهٔ منه، هغه ته مهٔ ښکته کیږه، دَ هغه منشا مهٔ پوره کوه اَو دَ هغه په وینا عمل مه کوه. دلته دَ " اطاعت" لفظ په خپل وسیع مفهوم کښے استعمال شوے دے۔

۳۰ کَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا۔ دَ دے یو مطلب خو هغه دے کوم چه مونږ په ترجمه کښے بیان کړے دے، اَو دویم مطلب ئے دا دے چه " څوک حق شاته پریږدي اَو اخلاق حدونه مات کړي اَو بے اختیاره په رندو روان وي." په دواړو ترجمو کښے مطلب یو دے. کوم سړے چه خدائے پریږدي اَو دَ نفس بنده شي نو دَ هغه په هر کار کښے بے اعتدالي راپیدا شي اَو حدونه نهٔ پیژني. دَ داسے سړي دَ خبرے منلو مطلب دا دے چه منونکے دِ هم چخپله دَ حدونو نه ناآشنا شي اَو چه په کوم کنده هغه سړوی په مخ کښے دِ ورپسے دے هم سرګردانه روان شي.

۳۱ دلته چه سړے راوَرسی نو صفا پوهه شي چه دَ اصحاب کهف دَ قیصے اَو رولونه روستو دا خبره په کوم مناسبت سره شوې ده. دَ اصحاب کهف چه کوم واقعات بره بیان کړے شوي دي په مخ کښے دا وئیلے شوي وُو چه په توحید باندِ دَ ایمان راوړلو نه روستو هغوی څنګه راأوچت شو اَو دا صفا خبره ئے اَوکړه چه " زمونږ رب هم هغه دے کوم چه دَ آسمانونو اَو دَ زمکے رب دے." اَو بیا څنګه هغوی دَ خپل ګمراه قوم سره ئے مصالحت کولو ته تیار نهٔ شو بلکه هغوی بښه په کلکه اراده دا اُووے چه " مونږ به دَ هغه سوا یل الٰهٔ آواز نهٔ کوؤ، که مونږه داسے وُکړل نو مونږ به دیره بے ځایه خبره اُوکړو." اَو څنګه هغوی خپل قوم اَو دَ هغوی معبودان پریښودل اَو بغیره څهٔ ساز وسامان نه ئے یو غار ته تلل قبول کړل،

إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلظَّٰلِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا ۚ وَإِن يَسْتَغِيثُوا۟
يُغَاثُوا۟ بِمَآءٍ كَٱلْمُهْلِ يَشْوِى ٱلْوُجُوهَ ۚ بِئْسَ ٱلشَّرَابُ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿٢٩﴾
إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا ﴿٣٠﴾

---

مونږ د (انکارکونکو) ظالمانو دپاره یو اور تیار ساتلے دے چه د هغې کیره د هغوئ نه را چاپیره شوی ده ۳۱۔ هلته که هغوی اوبه غواړی نو هغوی له به داسے اوبه ورکړے کېږی چه د تیلو د ږم د خیری په شان به وی ۳۲ او د هغوی مخونه به وریتوی، ډیر خراب څیز دے د څکلو او ډیر خراب ځائے دے د آرام! پاتے شو هغه خلق چه ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی، نو یقین لرئ چه مونږ د نیکانو خلقو اجرونه نه ضائع کوو۔

---

خو دا ئې خوښه نه کړه چه د حق نه د وینځتو مره اخواشی او د خپل قوم سره مصالحت وکړی او چه کله هغوی را بید ارشونو بیا هم د هغوئ سره فکر د دے خبرے وُو چه خدائے دِ ندکړی که زمونږ قوم مونږ د خپل ملت نه په واپس راولی نو کامیاب شونو مونږ به هیڅ رنګه فلاح بیا نه مومونده شو۔ د دے واقعاتو د ذکرکولو نه روستو اوس نبی صلی الله علیه وسلم ته خطاب کېږی ــــ او مقصد په اصل کښے د اسلام مخالفینو ته اوروندده ــــ چه د دے مشرکانو او د منکرینو سره مصلحت کول قطعاً د بحث کولو نه خارج دی۔ کوم حق چه د خدائے د طرفه راغلے دے هغه پوره پوره دوئ ته اُوړسره۔ که منی نو د ومنی که نه منی نو خپله به خراب انجام اُووینی۔ چا چه منلے دے، که هغه د کم عمر ځوانان دی، یا غریبان فقیران دی، یا غلامان او مزدوران دی خو بهرحال هم هغوی قیمتی دی، د هغوی سره به مینه کېږی او د هغوی په ځائے به د هغه لویو لویو سردارانو هیڅ پرواه نه ساتلے کېږی چه هغوی د دنیا شان و شوکت هرڅو مره لری خو د خدائے نه غافل دی او د خپل نفس بندګان دی۔

۳۱ د سُرادق اصلی معنیٰ ده شامیانه او هغه پردے چه د خیمے نه کیر چاپیره لګولے کېږی۔ لیکن د جهنم په مناسبت سره چه اُوکتلے شی نو دا خیال راځی چه د سُرادق نه مُراد د جهنم هغه بهرنی حدونه دی چه هلته د جهنم د لمبوتاؤ رسی۔ په آیت کښے فرمائیلے شوی دی چه "د جهنم سُرادق د هغوی نه راچاپیره شوی دی" څینو خلقو د دے معنیٰ په مستقبل سره کړی ده، یعنی هغوی د دے نه دا مطلب اخلی چه په آخرت کښے به د جهنم پردے هغوی راګیروی۔ لیکن مونږ ته د دے نه دا مطلب اخلو چه د حق نه مخ اړونکی ظالمان هم د دے ځائے نه د جهنم په کیره کښے راغلی دی او د هغے نه بچ کیدل د هغوی دپاره ممکن نه دی۔

۳۲ په لُغت کښے د "مُهل" مختلفے معنے بیان کړے شوی دی۔ څینې وائی چه د دے معنیٰ د "تیلو د ویخ خیره" دے۔ څینې وائی چه دا لفظ د "لاوے" په معنیٰ کښے راځی یعنی د زمکے هغه خټه چه د ډیره کرمئ د مجه نه ویلی شوی وی۔ د څینو په نزد د دے نه مُراد ویلی شوی وسپنه ده۔ او څینې وائی چه د دے معنیٰ و پنے زوے دی۔



أُولَٰئِكَ لَهُمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ
مِنْ ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِنْ سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَّكِئِينَ فِيهَا
عَلَى الْأَرَائِكِ ۚ نِعْمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا ﴿٣١﴾ وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا
رَجُلَيْنِ جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ مِنْ أَعْنَابٍ وَحَفَفْنَاهُمَا بِنَخْلٍ وَجَعَلْنَا
بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴿٣٢﴾ كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ آتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ مِنْهُ شَيْئًا ۚ وَفَجَّرْنَا
خِلَالَهُمَا نَهَرًا ﴿٣٣﴾ وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ فَقَالَ لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا

دَ هغوی دَپاره همیشه سمسور جنتونه دی چه دَ هغې لاندې به نهرونه بهیږی، هلته به هغوی ته دَ سرو زرو بنګړی اچولے کیږی،[۳۴] دَ باریکو ریښمو اودَ اطلسو او دَ دیبا شنې جامے به اغوندی، او په اُوچتو تختونو باندې به تکیا کانړ تهٔ دِړی وهی. بهترینه بدله ده او ډیره اعلیٰ دیره قیام ګاه ده۔[۳۵] ع

اے محمد ﷺ، دوی ته یو مثال پیش کړه.[۳۶] دوه کسان وُو. په هغوی کښې یو له مونږه دَ انګورو دوه باغونه ورکړل اوَدَ هغې دوارو نه موچا پیره دَ کجورو وَ ونو پسول اُولګوُ او دَ هغې په منځ کښې موږ کروندے زمکے جوړه کړه. دوارو باغونو ښه ترقی اُوکړه او په بارنیو لو کښې ئے هیڅ کمے پرے نښودو. دَ دغه باغونو په منځ کښې مونږه یو نهر جاری کړو او هغه ته ښه نفع حاصله شوه. دا هرڅهٔ دَ هغه وُو او یوه ورځ ئے خپل کاونړی ته په خبرو خبرو کښې اُووئیل

[۳۴] په پخوا زمانه کښې به بادشاهانو دَ سرو زرو بنګړی اچول. دَ جنتیانو په لباس کښې دَ دے څیز دَ ذکر کولو مقصد دا دے چه هلته به هغوی ته شاهانه لباس اغوستولے کیږی. یو کافر و فاسق بادشاه به هلته خوار او ذلیله وی او یو مومن او صالح مزدور به هلته دَ بادشاهانو په شان دَ شان شوکت سره وی۔

[۳۵] آرَائِك جمع ده دَ اَرِيكَة. اَرِيكَه په عربۍ ژبه کښې داسے تخت ته وائی چه په هغې باندې چتر لګیدلے وی. دَ دے دَ ذکر کولو مقصدهم دا دے چه هلته به هر جنتی په شاهی تخت باندې ناست وی۔

[۳۶] دَ دے مثال په مناسبت باندې دَ پوهیدلو دَ پاره دَ تیرے شوے رکوع هغه آیت په نظر کښې ساتل پکار دی چه په کوم کښې دَ مکے دَ مغروره سردارانو دَ دے خبرے جواب ورکړے شوے وُو چه مونږه دَ غریبو مسلمانانو سره نهٔ شو کیناستے، که دوی لرے کړے شو نو مونږ به راشو او خبره به واورو چه ته څه وئیل غواړے. دلته په هغه مثال باندې هم نظر ساتی کوم چه دَ سورة القلم په آیتونو ۱۷ تا ۳۳ کښې بیان کړے شوے دے. دا رنګے دَ سورة مریم په آیتونو ۷۳، ۷۴. دَ سورة المؤمنون په آیتونو ۵۵ تا ۶۱. دَ سورة سبا په آیتونو ۳۴ تا ۳۶ او دَ سورة حٰمٓ سجده په آیتونو ۴۹، ۵۰ باندې هم یو نظر واچوئ۔

أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا ﴿٣٤﴾ وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ قَالَ
مَا أَظُنُّ أَن تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا ﴿٣٥﴾ وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِن
رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّي لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنقَلَبًا ﴿٣٦﴾ قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ
يُحَاوِرُهُ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّاكَ
رَجُلًا ﴿٣٧﴾ لَّٰكِنَّا هُوَ اللَّهُ رَبِّي وَلَا أُشْرِكُ بِرَبِّي أَحَدًا ﴿٣٨﴾ وَلَوْلَا إِذْ دَخَلْتَ

"زۀ ستا نه په مال زیات مالدار یم او ستا نه په سړو نو زیات طاقتور یم." بیا هغه خپل جنت ته ورداخل شو[٣٧] او د خپل نفس په حق کښې ظالم شو او ویل "زما ګمان نه راځي چه دا دولت به چرې فنا شي او زۀ اُمید نه لرم چه د قیامت وخت به چرې راشي. بیا هم که چرې زۀ خپل رب ته واپس کړے شوم نو خامخا به د دے نه هم زیات شاندار ځائے بیا مومم." خپل کا ونډي ورسره خبرے کولے او ورته ئے اُووے "آیا ته کفر کوے د هغې ذات سره چه ته ئے د خاورے نه او بیا د نطفې نه پیدا کړے او ستا نه ئے پوره سړے جوړ کړو[٣٨]؟ پاتے شوم زۀ، نو زما رب خو هم هغه الله دے او زۀ د هغه سره هیڅوک نه شریکوم. او هر کله چه ته خپل جنت ته ورننوتلے

[٣٧] یعنی کوم باغونه چه هغه خپل جنت ګڼړلو. کم ظرفه خلقو ته چه په دُنیا کښې څه شان و شوکت حاصل شي نو هغوی همیشه په دے دوکه کښې وي چه هغوی ته هم په دنیا کښې جنت نصیب شوے دے. اوس بل لاڅه جنت دے چه د هغې د حاصلولو فکر اُوکړي.

[٣٨] یعنی بالفرض که چرے دویم ژوند وي هم نو زۀ به هلته د دے نه زیات خوشحاله یم، ځکه چه دلته زما د اخوشحالي د دے خبرے دلیل دے چه زۀ د خدائے مینَ او نیازبین یم.

[٣٩] اګر چه هغه د خدائے د هستيَ نه انکار نۀ وو کړے، بلکه وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّي الفاظ دا ظاهروي چه هغه که خدائے د وجود قائیل وو، لیکن د دے باوجود د هغه کا ونډي هغه ته د کفر بالله مجرم اُووے. د دے وجه دا ده چه کفر بالله صرف د خدائے د هستيَ نه د انکار کولو نوم نۀ دے بلکه متکبر او فخر او غرور او د آخرت نه انکار کول هم کفر بالله دے. د چا چه دا خیال وي چه بس هم زۀ یم، زما دولت او شان و شوکت ما ته د چا بخښش نۀ دے بلکه زما د قوت او د قابلیت نتیجه ده او زما دولت به همیشه وي، دا زما نه څوک اخستلے نه شي، زما سره حساب کتاب نشته، هغه که خدائے منی هم خو بس د مره ئے مني چه بس، د خپل مالك او د خپل بادشاه په حیثیت سره ئے نه مني. حالانکه ایمان بالله هم په دے حیثیت سره خدائے منلو ته وائي نه چه یوائے د خدائے وجود منلو ته.

جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ۙ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ۚ اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ مَالًا
وَّوَلَدًا ﴿۳۹﴾ فَعَسٰى رَبِّيْۤ اَنْ يُّؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا
حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا زَلَقًا ﴿۴۰﴾ اَوْ يُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا
فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ لَهٗ طَلَبًا ﴿۴۱﴾ وَاُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ فَاَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى
مَاۤ اَنْفَقَ فِيْهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُشْرِكْ
بِرَبِّيْۤ اَحَدًا ﴿۴۲﴾ وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ فِئَةٌ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ
مُنْتَصِرًا ﴿۴۳﴾ هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ ۚ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ عُقْبًا ﴿۴۴﴾

نو په هغه وخت کښې تا داولې نه وئيل چه مَا شَآءَ اللّٰهُ، لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ؟[37] که ته ما په مال او په اولاد کښې د خپل ځان نه کم وينې نو لرې نه ده چه زما رب ما له ستا د جنت نه بهتر را کړي او ستا په جنت باندې د آسمان نه څه آفت را اُولېږي چه په هغه سره هغه يو صفا ميدان پاتې شي، يا د هغه اوبه په زمکه کښې ښکته شي او بيا ئې ته په هيڅ شان سره را او نه ويستلې شې" آخر دا اوشوه چه د هغه ټول فصل ختم کړې شو او هغه چه انګور د خپل باغ په سپړو نو پاسترپوت اوليدو نو په خپل خرچ شوي مال باندې ئې لاسونه ومروړل او هغه وئيل چه "افسوس! که ما د خپل رب سره څوک شريک کړې نه وے" ـــ او د هغه سره د الله نه سوا بله يوه ډله هم ملګرې نه شوه چه د هغه سره ئې امداد کړې وے، او نه ئې خپله د دے آفت مقابله اوکړې شوه ـــ په دغه وخت کښې معلومه شوه چه د کارونو ټول اختيار خاص هم هغه الله ته لره دے، انعام هم هغه بهتر دے چه هغه ئې ورکړي او انجام هم هغه ښه دے چه هغه ئې وښائي.

[37] يعنې چه څه الله غواړي هغه به کيږي. زما او د بل چا هيڅ زور نشته. زمونږ که څه وس رسي هغه د الله په توفيق او په تائيد سره رسي."

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ

بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ

شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴿۴۵﴾ اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ

خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ﴿۴۶﴾ وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْاَرْضَ

بَارِزَةً ۙ وَّحَشَرْنٰهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ اَحَدًا ﴿۴۷﴾ وَعُرِضُوْا عَلٰى رَبِّكَ صَفًّا ؕ

او اے نبیؐ، دوی ته د دُنیا د ژوند په حقیقت باندې په دې مثال سره پوهه کړه چه نن مونږه د آسمان نه اُوبه راواُوروَلے نو د زمکے بوټي پرے ښه گڼ شو، او سبا له دغه بوټي ذره ذره شو چه هوا کانے ئے الوزوي را الوزوي. الله په هر شیز باندې قدرت لري.[۴۱] دا مال او دا اولاد صرف د دُنیا د ژوند یو لنډ وختیز ښائست دے. په اصل کښے خو ستا د رب په نزد باقي پاتے کیدونکي نیکیانے د نتیجے په لحاظ سره بهتر دي او هم د هغے سره ښه اُمیدونه تړلے کیدے شي. فکر د هغے ورځے پکار دے کله چه مونږه دا غرونه روان کړو،[۴۲] او ته دا زمکه بالکل لغړه اُووینے[۴۳] او مونږ به ټول انسانان په کیره کښے داسے را جمع کړو چه (د مخکینو او روستنونه) به یو هم پاتے نه شي.[۴۴] او ټول به ستا د رب په دربار کښے قطار په قطار پیش کړے شي.

[۴۱] یعني هغه ژوند هم ورکوي او مرګ هم. هغه ترقي هم ورکوي او زوال هم. د هغه په حکم سره سپرلے هم راځي او خزان هم. که نن تاته خوشحالي نصیب ده نو په دے غرور مه کوه چه دا حالت به همیشه وي. د کوم خدائے په حکم سره چه دا هر څه تاته ملاؤ شوي دي، هم د هغه په حکم سره دا هر څه ستا نه تلے هم شي.

[۴۲] یعني هر کله چه د زمکے مضبوط نظام سست کړے شي او غرونه دا سے روان شي لکه وریځے چه روانے وي. دا حالت په یو بل ځائے کښے په قرآن کښے په دے طریقه بیان کړے شوے دے: وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ۚ (النمل - آیت ۸۸) "ته غرونو ته ګورے او دا خیال کوے چه دا مضبوط ولاړ دي، لیکن دا به داسے روان شي لکه وریځے چه روانے وي."

[۴۳] یعني په زمکه باندې به څه ښیګڼے او څه آبادي پاتے نه شي، بالکل یو صفا هوار میدان به جوړ شي. دا هم هغه خبره ده کوم چه د دے سورة په شروع کښے شوې وه چه "دا څه چه په زمکه باندې دي دا مونږه د خلقو د آزمینت د پاره یو عارضي ښائست جوړ کړے دے. یو وخت به راشي چه دا به بالکل یو بے اُوبو او بے ښیګڼې میدان جوړ شي."

لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍۭ بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ
مَّوْعِدًا ﴿٤٨﴾ وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ
وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيْرَةً وَّلَا
كَبِيْرَةً اِلَّآ اَحْصٰىهَا ۚ وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا ۗ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ
اَحَدًا ﴿٤٩﴾ وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ۭ



—— اُوس اُوګورئ کنه، تاسو مونږ له هم هغسې راغلئ لکه څنګه چه مونږه تاسو په اول ځل پیدا کړي وئ. ستاسو خو دا خیال وُو چه مونږه ستاسو د پاره د وعدې هېڅ وخت هم مقرر کړې نه دے[۴۵] — او عملنامه به مخې ته کېښودے شي. په دغه وخت کښې به ته اُووینې چه مجرمان خلق به د خپل ژوندَ عملنامې نه یرېږی او وائي به چه هائے زمونږه کم بختی، دا څنګه عملنامه ده چه زمونږه یو ورو کے او لوئ عمل دا سې نه دے پاتے شوے چه هغه په دے کښې لیکلے شوے نه دے. څه چه هغوی کړي وُو هغه ټول به خپلې مخې ته حاضر بیا موی او ستا رب به په هیچا یو ذره ظلم نه کوی[۴۶] ع
یاد کړه، کله چه مونږه فرښتو ته اُووئیل چه آدم ته سجده اُوکړئ نو هغوی سجده اُوکړه خو ابلیس اُونه کړه[۴۷]

[۴۴] یعني هر انسان چه د آدم ته را واخله ترد قیامت د آخری وخته پورے پیدا شوے دے، خواه که هغه د پیدا کید و نه روستو صرف یو ساه اغستې وی، په دغه وخت کښې به دوباره راپیدا کړے شي او ټول به په یو وخت کښې راجمع کړے شي.
[۴۵] یعني په هغه وخت کښې به د آخرت نه انکار کونکو خلقو ته اُووئیلے شي چه ګورئ، د پیغمبرانو خبره ښتیښے ثابت شو کنه. هغوی به تاسو ته وئیل چه لکه څنګه الله تعالیٰ تاسو په اول ځل پیدا کړي یئ دغه شان به مو دوباره پیدا کړي، خو تاسو به د دے د منلو نه انکار کولو. اُووایئ، اُوس دوباره تاسو پیدا کړے شوئ او کنه؟
[۴۶] یعني دا سې به هرګز نه وی چه چا یو جرم نه وی کړے او هغه به د هغه په عملنامه کښې اُولیکلے شي او نه به دا سې وی چه سړي له د هغه د جرم نه زیات سزا ورکړے شي او یا بې ګناه دا اُونیولے شي او سزا ورکړے شي.
[۴۷] په دے ټول عائقه کښې د آدم او د ابلیس قیصے ته د اشارے کولو مقصد دا دے چه ګمراه انسانان پهنله دے بے وقوفتیا باندې خبردار کړے شي چه هغوی خپل مهربانه پروردګار او خپل خیر خواه پیغمبران پرېږدی او د هغه ازلي دُشمن په جال کښې نخلي چه هغه د پیدائش د ورځې نه د هغوی خلاف حسد لری.

كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ؕ اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَ ذُرِّيَّتَهٗۤ اَوْلِيَآءَ
مِنْ دُوْنِيْ وَ هُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ؕ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ۵۰ مَاۤ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ
السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ لَا خَلْقَ اَنْفُسِهِمْ ۪ وَ مَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ۵۱

هغه د پیریانو نه وو ځکه د خپل رب د حکم منلو نه بهر شو.[۴۸] آیا اوس تاسو ما پریږدئ او هغه او د هغه اولاد خپل سرپرستان جوړوئ حالانکه هغوی ستاسو دښمنان دي؟ ډیر خراب بدل دے چه دا ظالمان خلق ئے کوي.
ما د آسمانونو او د زمکے د پیدا کیدو په وخت کښے هغوی نه وو راغوښتلي او نه پخپله د هغوی په خپل پیدائښت کښے ما هغوی شریک کړي وو.[۴۹] زما دا کار نه دے چه ګمراه کونکي خلق خپل مددګاران جوړکړم.

[۴۸] یعني ابلیس د فرښتو نه نه وو بلکه د پیریانو نه وو، په دے وجه د حکم نافرماني کول د هغه د پاره ممکن شو. د فرښتو په حقله قرآن صفا وائي چه هغوی فطرةً فرمان منونکي دي: لَا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَاۤ اَمَرَهُمْ وَ يَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ (التحریم - ۶) "الله چه کوم حکم هغوی ته کوي هغوی د هغه نافرماني نه کوي او هغه کوي چه دغه ورته حکم ورکړے کیږي." وَ هُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ۔ يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَ يَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ۝ (النحل - ۵۰) "هغوی سرکشي نه کوي، او د پاسه د خپل رب نه ویریږي او هغه کوي چه د هغے حکم هغوی ته کیږي." د دے برخلاف پیریان د انسانانو پشان یو اختیار والا مخلوق دے چه پیدائشي فرمان منونکي نه دي جوړکړے شوي بلکه د کفر کولو او د ایمان راوړلو، د منلو او د نه منلو طاقت ورکړے شوے دے. دا حقیقت دلته ښکاره کړے شوے دے چه ابلیس د پیریانو نه وو ځکه هغه په خپل اختیار سره د نافرمانئ لار خوښه کړه. دا بیان هغه ټولے غلطیانے ختموي چه عام طور د خلقو په ذهنونو کښے دي چه ابلیس د فرښتو نه وو او فرښته هم معمولي نه بلکه د فرښتو استاذ (معلم الملکوت). (د زیاتے تشریح د پاره وګوره الحجر آیت ۲۷، او الجن، آیتونه ۱۳-۱۵).
پاتے شوه دا خبره چه کله ابلیس د فرښتو نه نه وو نو بیا د قرآن دا بیان څنګه صحیح کیدے شي چه "مونږه فرښتو ته اُووے چه آدم ته سجده وکړئ نو هغوی ټولو سجده وکړه لیکن ابلیس ونه کړه."؟ د دے جواب دا دے چه فرښتو ته د سجدے کولو د حکم مطلب دا وو چه د زمکے هغه ټول مخلوقات هم د انسان فرمان منونکي جوړ شي کوم چه د زمکے په مخ باندے په کار کولو کښے د فرښتو د انتظام لاندے آباد دي. نو د فرښتو سره دے ټولو مخلوقاتو هم سجده وکړه. لیکن ابلیس د هغوی د ملګرتیا کولو نه انکار وکړو. (د ابلیس د معنی د پاره وګوره المؤمنون حاشیه ۷۳).
[۴۹] مطلب دا دے چه دا شیطانان آخر ستاسو د بندګئ څنګه مستحق شو؟ د بندګئ مستحق خو صرف خالق کیدے شي. او د دے شیطانانو مقام دا دے چه د آسمان او د زمکے په پیدائښت کښے د دوی شریک کیدل

وَيَوْمَ يَقُولُ نَادُوا شُرَكَآءِيَ الَّذِينَ زَعَمْتُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ وَ
جَعَلْنَا بَيْنَهُم مَّوْبِقًا ﴿٥٢﴾ وَرَاَ الْمُجْرِمُونَ النَّارَ فَظَنُّوٓا اَنَّهُم مُّوَاقِعُوهَا
وَلَمْ يَجِدُوا عَنْهَا مَصْرِفًا ﴿٥٣﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِي هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِلنَّاسِ مِن كُلِّ ع ۶ / ۱۹
مَثَلٍ وَكَانَ الْاِنسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا ﴿٥٤﴾ وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَن يُؤْمِنُوٓا اِذْ جَآءَهُمُ

---

بیا به څه کوی دا خلق په هغه ورځ کله چه دَ دوی رب دوی ته اُووائي چه آواز وُکړئ وَس هغه هستیانو ته چه تاسو زما سره شریک گنړلې وُو.[۵۰] دوئ به هغوئ ته آواز اُوکړي، خو هغوئ به دَ دوئ مدد له رانشي او موږ به دَ دوئ په مینځ کښې دَ هلاکت یو کنده شریکه کړو.[۵۱] ټول مُجرمان به په دغه ورځ وُور وینی او پوهیږی به چه وُس به پکښې ورغورزیږی او هغوئ به دَ هغې نه دَ بچ کید و دپاره دَ پناه هیڅ ځائے وُنهٔ مومی۔

موږ په دے قرآن کښې خلق په هر طریقه پوهه کړل خو انسان ډیر جګړه مار دے. د وئ ته چه کله هدایت راغے نو دَ هغې دَ منلو نه او دَ خپل رب په حضور کښې دَ معافئ غوښتلو نه آخر څهٔ

---

خو پریږده. دوئ مخلوق دی۔

[۵۰] دلته بیا هغه خبره بیان کړے شوی ده چه هغه دَ دے نه مخکښې هم په قرآن کښې په ډیرو ځایونو کښې شوی ده چه سړے دَ الله حکمونه او دَ هغه هدایات پریږدی او دَ بل چا په حکمونو پسے روان شی نو دا اصل کښې هغه بل څوک په خدائی کښې دَ الله شریک کول دی، خواه که سړے هغه بل څوک په ژبه دَ خدائے شریک کوی او که نه. بلکه که سړے په دغه نورو هستو باندې لعنت هم لیږی خو چه دَ خدائے دَ حکمونو په مقابله کښې دَ هغې نورو هستو دَ حکمونو پیروی کوی نو هغه دَ شرک مجرم دے. دغه رنګے تاسو دلته دَ شیطانانو په معامله کښې په دُنیا کښې وینئ چه هر یو پرِ لعنت وائی، لیکن دَ دغه لعنت ویلو با وجود چه څوک دَ هغوئ پیروی کوی، قرآن هغوئ ټولو ته دا وائی چه تاسو شیطانان دَ خدائے شریکان جوړ کړی دی. دا شرک دَ عقیدے شرک نهٔ دے بلکه دَ عمل شرک دے او قرآن دے ته هم اصل شرک وائی. (دَ زیاتے تشریح دَ پاره وُګوره تفهیم القرآن جلد اول، النساء، حاشیه ۹۱-۱۴۵. الانعام حاشیه ۸۷-۱۰۷. جلد دویم، التوبه، حاشیه ۳۱-۱۰۳، ابراهیم، حاشیه ۳۲. دریم جلد، مریم حاشیه ۲. المؤمنون، حاشیه ۴۱. الفرقان، حاشیه ۵۶. القصص، حاشیه ۸۶. څلورم جلد سبا. حاشیه ۵۹ - ۶۰ - ۶۱ - ۶۲ - ۶۳. یٰسٓ، حاشیه ۵۳، الشوریٰ حاشیه ۳۸. الجاثیه حاشیه ۳۰)

[۵۱] مفسرینو دَ دے آیت دوه مطلبونه بیان کړی دی. یو هغه چه موږ په ترجمه کښې بیان کړے دے. او دویم مطلب دا دے چه "موږ به دَ هغوئ په مینځ کښې دُشمنی پیدا کړو" یعنی په دُنیا کښې دَ هغوئ

الْهُدٰى وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ
الْعَذَابُ قُبُلًا ﴿۵۵﴾ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ
وَيُجَادِلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ
وَمَآ اُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿۵۶﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ فَاَعْرَضَ
عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ ۭ اِنَّا جَعَلْنَا عَلٰي قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ

دوئ منع کړل؟ بل هیڅ نه دی خو دوئ بس دومره خبره انتظار کوي چه د دوئ سره هم هغه څه وشي کوم چه د تیرو شوو قومونو سره شوي دي یا دا چه دوئ عذاب ۵۲ ته راروان اوويني. رسولان مونږه د دې کار نه سوا د بل څه غرض دپاره نه لیږو چه بس د زیري ورکولو او د یرولو خدمت سرته ورسوي. ۵۳ مګر د کافرانو دا حال دے چه دوي د باطل په ذریعه د حق لاندې کولو کوشش کوي او دوئ زما د آیتونو او کوم خبرداریے چه دوي ته شوے دے هغه ئې ټوقه مسخره جوړه کړې ده. او د هغه سړي نه زیات ظالم بل څوک دے چه هغه ته د خپل رب د آیتونو اورولو په ذریعه نصیحت وکړے شي او هغه د هغې نه مخ واړه وي او هغه خراب انجام ترهیر شي کوم چه هغه په خپلو لاسونو د خپل ځان دپاره تیار کړے دے؟ (کومو خلقو چه دا طریقه اختیار کړې ده) د هغوئ په زړونو باندې مونږه پردے غوړولي دي چه هغوي د قرآن په خبره باندې پوهه نه شي او د هغوئ په غوږونو کښې مونږ دروندوالے پیدا کړے دے، په منځ کښې کومه دوستي وه هغه به په آخرت کښې په سخته دښمنۍ کښې بدله شي.

۵۲ یعني ترڅو پورے چه د دلیل او د حجت تعلق دے، نو قرآن په حق واضح کولو کښې هیڅ کسر نه دے پریښے. زړه او دماغ ته چه هرڅومره اثر کونکې طریقې اختیارول ممکن وو، هغه ټول دلته په بهترین انداز کښې اختیار کړے شوي دي، نو اوس څه شے دے چه دوي ئې د حق د قبلولو نه منع کړي دي؟ بس صرف اوس دوئ د عذاب انتظار کوي. دوئ چه د خپلو سترګو نه ونه ویني خو پرے نو نه پوهیږي.

۵۳ د دې آیت هم دوه مطلبونه دي او دواړه دلته ټیک لږي:

یو دا چه رسولان مونږه د دې غرض دپاره لیږو چه د فیصلې د وخت د راتلو نه مخکښې فرمان منونکي د ښه انجام نه او نافرمانه خلق د بد انجام نه خبر کړي. لیکن دا بے وقوفه خلق د دے وړاندې خبرداري اورولو نه هیڅ فائده نه اخلي او هغه بد انجام لیدو ته ئې تلوار دے کوم نه چه ئې دا رسولان بچ کول غواړي.

دویم مطلب دا دے چه که عذاب لیدل غواړي نو د هغې مطالبه د پیغمبر نه مه کوئ ځکه چه پیغمبر د عذاب ورکولو دپاره نه بلکه د عذاب راتلو نه مخکښې صرف د خبردار ولو دپاره لیږلے کیږي.

وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۭ وَاِنْ تَدْعُهُمْ اِلَى الْهُدٰى فَلَنْ يَّهْتَدُوْٓا اِذًا
اَبَدًا ﴿٥٧﴾ وَرَبُّكَ الْغَفُوْرُ ذُو الرَّحْمَةِ ۭ لَوْ يُؤَاخِذُهُمْ بِمَا كَسَبُوْا
لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ ۭ بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ مَوْىِٕلًا ﴿٥٨﴾
وَتِلْكَ الْقُرٰٓى اَهْلَكْنٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا ﴿٥٩﴾ ع ۱

او د هغوی په غوږونو کښے مونږه درونوالے پیدا کړے دے. که ته هغوی هر څو مره هدایت طرف ته راوبلې، هغوی به په دے حالت کښے هیڅ کله هدایت ونه مومی.[54]
ستا رب ډیر معاف کونکے او رحیم دے. که هغه د دوی په عملونو باندے د دوی نیول غوښتلے نو ژر به ئے پرے عذاب راولیږلے. لیکن د دوی د پاره د وعدے یو وخت مقرر دے او دوی به د هغے نه د تیښتے هیڅ لار ونه مومی.[55]
دا عذاب وهلی کلی ستاسو مخے ته موجود دی.[56] هغوی چه کله ظلم وکړو نو مونږه هغوی هلاک کړل، او په هغوی کښے د هر یو د هلاکت د پاره مونږه وخت مقرر کړے وو.

[54] یعنی هر کله چه یو سړے یا یوه ډله د دلیل او د حجت او د نصیحت په مقابله کښے جګړه راپورته کړی او د حق مقابله په دروغو او په دوکو سره شروع کړی، او د خپل عمل د بد انجام لیده ونه ګوری د چا په نصیحت باندے خپلے غلطئ منلو ته نه تیاریږی، نو الله تعالیٰ بیا د هغه په زړه باندے جړند ولګوی او د هغه غوږونه د هر حق آواز اوریدو د پاره کاڼه کوی. دا قسمه خلق په نصیحت سره خبره نه منی بلکه چه کله د هلاکت کنده ته ور او غورزیږی نو هله ئے یقین راشی چه دا په کومه لار باندے مونږه روان وو هغه خو د هلاکت لار وه.
[55] یعنی د الله تعالیٰ دا طریقه نه ده چه د چا نه په کوم وخت کښے ګناه وشی، په هغه وخت ئے ونیسی او سزا ورکړی. دا د هغه رحمت دے چه د مجرمانو په نیولو کښے تلوار نه کوی او د ډیرے موده هغوی ته د سمولو د پاره موقع ورکوی. لیکن سخت ناپوهه دی هغه خلق چه د دے مهلت نه غلط مطلب اخلی او دا ګمان کوی چه څوک هر څه کوی، د تپوس کونکے څوک نشته.
[56] اشاره ده د سبا او د ثمود او د مدین او د لوط د قوم هغه ورانو کلو ته چه په هغے به د قریشو خلق په تجارتی سفر کښے تلل راتلل او د غه کلی به ئے لیدل او چه د عربو نور خلق ترے هم ښه واقف وو.

وَإِذْ قَالَ مُوسٰى لِفَتٰىهُ لَآ أَبْرَحُ حَتّٰىٓ أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِيَ
حُقُبًا ﴿۶۰﴾ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ

(دوئ ته هغه قیصه لږ ه ښات واوروه کوم چه موسیٰ ته پېښه شوی وه) کله چه موسیٰ خپل غادم ته ووئیلی وُو چه زهٔ به خپل سفر ترهغې پورې نهٔ ختموم ترڅو چه زهٔ د دواړو دریابو د یو ځائے کید و مقام ته ونهٔ رسم، کنئ نو ډیره موده به زهٔ هم د غسې روان یم[۵۹] بیا چه کله هغوئ د هغې دواړو دریابونو د یو ځائے کید و مقام ته ورسیدل نو د خپل مَهِي نه بے پروا شول او هغه (مَهِي) را ووتو او په دریاب کښې

[۵۹] دلته د دے قیصے د اورولو مقصد کافرانو او مؤمنانو ته د یو اهم حقیقت خبردارے ورکول دی او هغه دا دے چه کوم خلق ظاهر ته کوری نو دا په دُنیا کښې چه څه کارونه کیږی هغوی چه دے ته کوری نو د دے نه په ظاهره بالکل غلطے نتیجے اخلی ځکه چه الله تعالیٰ د کوم مصلحت لاندې کار کوی هغې ته نهٔ کوری. د ظالمانو خلقو ترقی کول او په بے گناه خلقو بانډې تکلیفونه راتلل، په نافرمانو خلقو بانډې د انعامونو باران او په فرمانبردارانو بانډې د مصیبتونو دور، د بد کارانو عیش او د نیکانو خلقو بد حالی، دا هغه حالات دی چه همیشه ئے انسانان وینی، او معرف په دے وجه چه خلق ئے په حقیقت نهٔ پوهیږی د هغوئ په ذهنونو کښې شکونه او غلط فهمئ راپیدا کیږی. کافران او ظالمان خلق د دے نه دا نتیجے راوباسی چه دا دُنیا د بے انصافئ حکومت دے، د دے څوک بادشاه نشته او که شته نو هغه روندیعنی ناپوهه دے. دلته چه د چا زړهٔ څه غواړی هغه کوی هیڅوک د تپوس کولو نشته. مؤمنان چه دا سے واقعات اووینی نو زړونهٔ ئے مات شی او اکثر خو د سختو آزمیښتونو په وخت کښې د هغوئ ایمانونه هم اوخوزیږی. په دا سے حالاتو کښې الله تعالیٰ حضرت موسیٰ علیه السلام ته د خپل مشیت د کارخانے نهٔ پرده اوچته کړه او یو نظر ئے ورته د هغې حقیقت اوښودو د پاره د دے چه هغه ته معلومه شی چه دلته دا شپه ورځ څه کیږی دا څنګه کیږی او د کوم حکمت لاندې کیږی او د دے ظاهر د حقیقت نه څنګه مختلف وی.

حضرت موسیٰ ته دا واقعه کله او په کوم ځائے کښې پېښه شوه؟ د دے هیڅ وضاحت قرآن نهٔ دے کړے. په حدیث کښې د عوفی دا یو روایت خو ضرور شته چه په هغې کښې هغه د ابن عباس دا قول نقل کړی دے چه دا واقعه په هغه وخت کښې شوی وه کله چه د فرعون د هلاکت نه روستو حضرت موسیٰ په مصر کښې خپل قوم آباد کړے وُو. لیکن د دے نه چه کوم زیات قوی روایتونه د ابن عباسؓ نه په بخاری او د حدیثو په نورو کتابونو کښې نقل کړے شوی دی هغه د دے بیان تائید نهٔ کوی، او نهٔ د څه بلے ذریعے نه دا ثابتیږی چه کنی د فرعون د هلاکت نه روستو حضرت موسیٰؑ په مصر کښې ؤسیدلے وُو. بلکه قرآن د دے خبرے وضاحت کوی چه د مصر نه د وتلو نه روستو د هغه ټول وخت په سینا او په تیه کښې تیر شو. په دے وجه دا روایت د قبلولو قابل نهٔ دے. البته چه کله مونږه بخپله د دے قیصے

فِي الْبَحْرِ سَرَبًا ﴿٦١﴾ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰىهُ اٰتِنَا غَدَآءَنَا ز لَقَدْ

داسے روان شو لکه چه یو سُرنګ وی. ورانديے چه لاړل موسیٰ خپل خادم ته اُوویل، راوړه زمونږ ناشته، یقینی

په تفصیلاتو بانديے غور کوؤ نو دوه خبرے صفا په ذهن کښے راځی. یوه داچه داحالات به حضرت موسیٰ ته د هغه د نبوت په اولنو ورځو کښے ښودلے شوی وی، ځکه چه د نبوت په اولنو ورځو کښے پيغمبرانو ته د دے قسمه تعليم او تربيت ضروروی. دويمه داچه حضرت موسیٰ ته به د دے حالاتو د ښودلو ضرورت په هغه زمانه کښے پيښ شوے وی په کومه زمانه کښے چه په بنی اسرائيلو بانديے هم هغسے حالات راغلی وُو لکه څنګه چه په مکه معظمه کښے په مسلمانانو بانديے راغلی وُو. د دے دواړو خبرو په وجه زمونږه قياس دا دے (او صلی علم الله لره دے) چه د دے قيصے تعلق د هغه زمانے سره دے چه په مصر کښے لا په بنی اسرائيلو بانديے د فرعون ظلمونه جاری وُو او په عذاب کښے د تاخير په وجه د قريشو د سردارانو په شان د فرعون او د هغه د درباريانو هم داخيال وُو چه د هغوئ نه د تپوس کولو هيڅوک نشته، او د مکے د مظلومانو مسلمانانو په شان د مصر مظلومانو مسلمانانو هم په بے قرارئ سره دا تپوس کولو چه اے خدايه، په دے ظالمانو بانديے به د انعامونو بارانونه او په مونږ بانديے به د مصيبتونو بارانونه ترکومه پورے وی؟ آن تردے پورے چه بخپله حضرت موسیٰ داوئيلی وُو چه رَبَّنَآ اِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِيْنَةً وَّاَمْوَالًا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِكَ "اے پروردګاره، تا فرعون او د هغه درباريانو له د دُنيا په ژوند کښے لوئ شان و شوکت او مال و دولت ورکړے دے، اے پروردګاره، دا د دے د پاره چه هغه د دُنيا خلق ستا د لارے نه بے لارے کړی؟" (تفهيم القرآن جلد دويم صفحه ۳۰۸).

کچرے زمونږه دا قياس صحيح وی نو بيا داګمان کيدے شی چه د حضرت موسیٰ دا سفر غالباً چه د سوډان طرف ته وُو او د مجمع البحرين نه مراد هغه مقام دے په کوم ځائے کښے چه د موجوده ښار خرطوم خواته د دريائے نيل دوه شاخونه البحر الابيض او البحر الازرق يو ځائے کيږی (وګوره نقشه نمبر ا صفحه ۲۳) حضرت موسیٰ چه خپل ټول ژوند په کومو علاقو کښے تير کړے دے په هغے کښے د دے يو ځائے نه علاوه بل هيچرته مجمع البحرين نشته.

بائبل د دے واقعے په حقله بالکل خاموش دے. البته په تلمود کښے د دے ذکرشته، خو هغه دا قصه د حضرت موسیٰ په ځائے د ربی يهوحانان بن لاوی سره تړی او وائی چه د دے سره دا واقعه د حضرت الياس سره پيښه شوه، حضرت الياس په متکرتيا کښے راغلی وو چه هغه د دُنيا نه ژوندے پورته کړے شوے دے او په فرښتو کښے شامل کړے شوے دے او د دُنيا په انتظام بانديے مامور دے.

ممکنه ده چه دا واقعه هم د خروج نه د مخکښينو واقعو په شان په بنی اسرائيلو کښے په خپل صحيح شکل کښے محفوظ نه وی پاتے شوی او په سوونو کالو روستو هغوی د قيصے کړئ د يو ځائے نه د بل ځائے سره تړلی وی. په مسلمانانو کښے څينې خلقو د تلمود د دے روايت نه اثر قبول کړے دے او وئيلی ئے دی چه په قرآن کښے

لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا ﴿۶۲﴾ قَالَ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَآ اِلَى الصَّخْرَةِ

سفر کښې خو موږ ډېر ستړي شوي یو". خادم اووېل "تاولیدل؟ دا څه وشو؟ کله چه موږ د هغه ګټ خوا ته

دلته د موسیٰ نه مراد حضرت موسیٰ نه دے بلکه څرته یو بل موسیٰ دے. لیکن نه خو په تلموډ کښې هر روایت ځا ځایم تاریخ ګرځیدے شي، نه زموږ د پاره دا دے ګمان کولو څه مناسب وجه شته چه په قرآن کښې به د یو بل نامعلومه موسیٰ ذکر په دے طریقه شوے وي، او بیا چه کله په معتبر حدیثو کښې د حضرت اُبيّ بن کعب دا روایت موجود دے چه ځپله نبي صلی الله علیه وسلم د دے قیصے په تشریح کښې د موسیٰ نه مراد حضرت موسیٰ د بني اسرائیلو پیغمبر اخستے دے نو د مسلمان د پاره د تلموډ بیانات د توجه لائق نه پاتے کیږي.

د مشرقي او مغربي مامړینو د خپل عادت مطابق د قرآن مجید د دے قیصے په حقله هم دا کوشش کړے دے چه د دے اصل څه دے، او دغه شان په دریو قیصو پاندے کوته ایښودلې ده چه دا ئې هغه ځایونه چه د هغے نه محمد (صلی الله علیه وسلم) نقل کړے دے او دا قیصه ئې جوړه کړي ده او بیا ئې دا دعوٰی کړي ده چه ما پاندے وحي نازل شوې ده. یوه قیصه د ګلګامیش، دوېمه سریاني سکندر نامه او دریمه د یهودي هغه روایت چه د هغے موږ نه بره ذکر کړے دے. لیکن دا بد نیته خلق چه د علم په نوم پاندے کوم تحقیقات کوي په هغے کښې د تېولو نه اول د هغوی دا فیصله وي چه په هر حالت کښې به قرآن د الله د طرفه نازل شوے کتاب نه منو، او د هر ځائے نه چه وي خود دے خبرے ثبوت به ضرور پیش کوو چه دا څه محمد (صلی الله علیه وسلم) په دے قرآن کښې پیش کړي دي دا د فلاني فلاني ځایونو نه غلا راغستلے شوي مضامین او معلومات دي. په دے قسم تحقیق کښې دا خلق دومره په بے شرمئ سره ډیو ځائے او بل ځائے نه دروغ راغونډ وي چه سړي له ترې اختیار نفرت ورشي او په دے مجبوره شي چه دا اُووائي چه که علمي تحقیق دے نو وائي نو لعنت دے په دے علم پاندے او په دے تحقیق پاندے. او د هغوی نه څو کیږو طالب علم صرف د دے څلورو خبرو تپوس وکړي نو د هغوی د تعصب نه ډک د دروغو الزامونه به پرې داګه پاتے شي :

اول دا چه ستاسو سره هغه کوم دلیل دے چه د هغے په وجه تاسو کلک په ځا دا د دے څلورو کتابونو کښې د قرآن د بیان سره یو شان مضمون اُووینئ نو دا دعوٰی کوئ چه د قرآن بیان خامخا د دے کتابونو نه راغستلے شوے دے ؟

دویم دا چه د مختلفو ژبو څومره کتابونه تاسو د قرآن مجید د قیصو او د نورو بیانونو ماخذ یعني اصلي بنیاد ګرځولې دي که د هغے نه فهرست جوړ کړے شي نو د یو عالیٌ کتب خانے فهرست ترې جوړیږي. آیا دا ټول کتب خانه څرته په هغه وخت کښې په مکه کښې موجوده وه او آیا د مختلفو ژبو ترجمه کونکي هلته وو او محمد صلی الله علیه وسلم ته ئې خبرے بنودلے ؟ که چرے دا سے نه ده او ستاسو ټول انحصار په هغه دوو دریو سفرونو پاندے دے کوم چه نبي صلی الله علیه وسلم د نبوت نه ډیر کلونه مخکښې د عرب نه بهر کړي وو، نو سوال دا دے چه آخر په دے تجارتي سفرونو کښې نبي څومره کتب خانې نقل کړے یا حفظ کړے

فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ ۖ وَمَا أَنْسَانِيهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ ۚ وَ
اتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ ۖ عَجَبًا ﴿٦٣﴾ قَالَ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ ۚ فَارْتَدَّا عَلَىٰ
آثَارِهِمَا قَصَصًا ﴿٦٤﴾ فَوَجَدَا عَبْدًا مِنْ عِبَادِنَا آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِنْ عِنْدِنَا
وَعَلَّمْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا عِلْمًا ﴿٦٥﴾ قَالَ لَهُ مُوسَىٰ هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰ أَنْ تُعَلِّمَنِ

حصار شوي وُو په هغه وخت کښې زما هيڅ ته خيال نه وُو او شيطان زۀ دا سې بې پروا کړم چه (تا ته) دَ هغې ذکر کول زما هير شو. هغې خو په عجيبه طريقه سره لاره ونيوه او درياب ته ورننوته." موسیٰ اُوويل "دغه خو هغه ځائې وُو چه مونږه لټولو."[۵۸] نو هغوئ دواړه په خپله لاره بيا واپس روان شو هلته هغوئ زمونږ دَ بندګانو نه يو بنده وُ موند چه په هغه باندې مونږه خپل رحمت کړے وُو او دَ خپل طرف نه مو ورته خاص علم ورکړے وُو.[۵۹]
موسیٰ هغه ته اُوويل "آيا زۀ ستاسره پاتې کيدے شم دَ دے غرض دَ پاره چه ته ما ته هم دَ هغه پوهې نه

دے؟ او دَ نبوت په دوره چه دَ نبيّ په خبرو او تر وکښې دَ دے قسم دَ معلوماتو هيڅ نوم او نشان نۀ وُو نو آيا دَ دے څه معقوله وجه ده؟
دريم دا چه دَ مکے کافران او يهوديان او عيسايان، ټول ستاسو پښتان په دے تلاش کښې وُو چه محمد صلی الله علیه وسلم دا مضمونونه دَ کوم ځائے نه راوړي. آيا تاسو دا ويلے شئ چه دَ نبيّ مخالفينو ته دَ دے غلاؤ پته نۀ لګيده وُ څه وجه وه؟ هغوئ ته خو به بار بار رو ويلے کيدل چه دا قرآن دَ الله دَ طرف نه نازل شوے دے دَ دے ماخذ دَ وحی نه سوا بل هيڅ نۀ دے، که چرے تاسو دے ته دَ بشر کلام وايئ نو ثابته کړئ چه بشر دا سے کلام ويلے شي. په دينا دَ نبيّ دَ زمانے دَ اسلام دَ دُشمنانو ملا ماته کړله، خو هغوئ هيڅ دا سے ماخذ (بُنياد) اُونه موندلے شو چه په هغے باندې يو عقلمند انسان دا يقين بلکه دا شک قدره اُوکړي چه دَ دے نۀ قرآن را غلتلے شوے دے. سوال دا دے چه دَ هغے زمانے مخالفين په دې پلټنه کښې کامياب نۀ شو او اُوس زر دولس سوه کاله روستو عناد کونکو خلقو ته په دے کښې څنګه کاميابي نصيب کيږي؟
آخري او دَ ټولو نه اهم سوال دا دے چه دَ دے خبرے امکان خو په هر حال شته چه قرآن دَ الله دَ طرف نه نازل شوے وي او هغه دې دَ پخوانی تاريخ دَ هغه واقعاتو صحيح خبر ورکوي کوم چه نورو خلقو ته دَ سوونو کالو په دوران کښې په زباني خبرو سره کږ وږ ورسيدلی وي او په قيصو کښې شامل شوي وي. دا امکان په څه دليل سره بالکل دَ بحث نه خارج کړے شو او صرف په دے يو امکان باندې دَ بحث او دَ تحقيق کولو بنياد ولے کيښودلے شو چه قرآن دَ دَ هغے قيصو نه را غلتلے شوے وي کومے قيصے چه دَ خلقو سره دَ زباني روايا تو او دَ افسانو په شکل کښې موجود وے؟ آيا دَ مذهبي تعصب او عناد نه سيوا دَ دے ترجيح څه بله وجه ښايسته شي؟

مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ﴿٦٦﴾ قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٦٧﴾ وَكَيْفَ
تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا ﴿٦٨﴾ قَالَ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا
وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا ﴿٦٩﴾ قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي فَلَا تَسْأَلْنِي عَنْ شَيْءٍ حَتَّىٰ
أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا ﴿٧٠﴾ فَانْطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ خَرَقَهَا
قَالَ أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ﴿٧١﴾ قَالَ أَلَمْ أَقُلْ

---

تعلیم راکړے کوم چه تا ته ښودلے شوی ده"؟ هغه ورله جواب ورکړو "ته زما سره صبر نشے کولے، او د کوم څیز چه تا ته خبر نهٔ وی آخر ته به په هغې باندې څنګه صبر وکړے شے؟" موسیٰ اُووئیل "اِنْ شَاءَ اللهُ ته به ما صبرناک اُووینې او زهٔ به په هیڅ معامله کښې ستا نافرمانی نهٔ کوم." هغه اُووئیل "ښه، که ته زما سره ځے نو زما نه د څهٔ خبرے تپوس نهٔ کوے ترڅو چه زهٔ پخپله تا ته د هغې ذکر وُنهٔ کړم." ع

اُوس هغوی دواړهٔ روان شو، اَن تردے پورے چه کله هغوی دواړه په یوه کشتۍ کښې سوارهٔ شو نو هغه سړی په کشتۍ کښې سوُرے وُکړو. موسیٰ اُووئیل "تا په دے کښې سُورے د دے د پاره وُکړو چه کشتۍ ټول خلق ډوب کړے؟ دا خو تا یو سخت حرکت وُکړو." هغه اُووئیل "ما تا ته وئیلی نهٔ وُو چه

---

په دے سوالونو باندې چه هر څوک غور وُکړی نو هغه به د دے نتیجے ته ضرور رسی چه د مشرقی او مغربی ماهرینو د "علم" په نوم څه پیش کړی دی هغه په حقیقت کښې د یو طالب علم د پاره هم د توجه قابل نهٔ دی.

۵۸ یعنی د منزل مقصود نخوهم دا نښه مونږ ته ښودلی شوی وه. د دے نه دا خبره پخپله معلومیږی چه د حضرت موسیٰ دا سفر د الله تعالیٰ په حکم سره وُو هغه ته د منزلِ مقصود دا نښه ښودلے شوی وه چه په کوم ځائے کښې د هغه د ناشتے مهٰی غائب شی نو هلته به هغه بنده وی چه د کوم سره د ملاقات کولو د پاره هغه لیږلے شوے وُو.

۵۹ د دے بنده نوم په ټولو معتبرو احادیثو کښې خضر دے. په دے وجه د هغې خلقو قول نه هیڅ د توجه قابل نهٔ دی کوم خلقو چه د اسرائیلی روایاتو نه اثر قبول کړے دے او وائی چه دا قیصه د حضرت ایاس ده. د هغوی دا قول نهٔ صرف په دے وجه غلط دے چه دا د نبی صلی الله علیه وسلم د ارشاد سره ټکراؤ خوری، بلکه په دے وجه هم سراسر لغو دے چه حضرت ایاس د حضرت موسیٰ نه په سوونو کالو روستو پیدا شوے دے.

د حضرت موسیٰ د خادم نوم هم په قرآن کښې نهٔ دے ښودلے شوے. البته په ځینو روایتونو کښې ذکر شته چه هغه حضرت یوشع بن نون وُو چه روستو بیا د حضرت موسیٰ خلیفه شو.

اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٧٢﴾ قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِمَا نَسِيْتُ وَلَا
تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا ﴿٧٣﴾ فَانْطَلَقَا ٚ حَتّٰٓى اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا فَقَتَلَهٗ ۙ
قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةًۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ ۭ لَقَدْ جِئْتَ شَيْـًٔا نُّكْرًا ﴿٧٤﴾
[redacted]
قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍۢ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ ۚ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ
عُذْرًا ﴿٧٦﴾ فَانْطَلَقَا ٚ حَتّٰٓى اِذَآ اَتَيَآ اَهْلَ قَرْيَةِ ِۨ اسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا فَاَبَوْا
اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ ۭ قَالَ لَوْ
شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا ﴿٧٧﴾ قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَبَيْنِكَ ۚ سَاُنَبِّئُكَ

تهٔ زما سره صبر نشې کولے؟" موسٰی اُووے "په هېره باندې ما مهٔ نیسه. زما په معامله کښې پر ما سختي نهٔ کار مهٔ اخله."

بیا هغوی دواړه روان شو، اَن تر دے پورے چه هغوی له یو هلک مخے له وَرَغے او هغه سړي هغه قتل کړو. موسٰی اُووے "تا یو بے ګناه قتل وُکړو حالانکه هغه د چا وینه نهٔ وه توئ کړے؟ دا کار خو تا ډیر خراب وُکړو." هغه اُووے "ما تاته نهٔ وُو وئیلی چه تهٔ زما سره صبر نشې کولے؟" موسٰی اُووے "د دے نه روستو که ما ستا نه څه تپوس وُکړو نو ما بیا مهٔ ملګرے کوه. څه او بس خو زما د طرفه تاته عذر ملاؤ شو."

بیا هغوی وړاندې روان شو، اَن تر دے پورے چه یو کلی ته وُرسیدل او د هغه کلی د خلقو نه ئے ډوډئ اوغوښتله. خو هغوی د دے دواړو د میلمستیا نه انکار اُوکړو هلته هغوی یو دیوال اولید وچه را پریوتو ته تردے وُو. هغه سړي دغه دیوال بیا جوړ کړو. موسٰی اُووے "که تا غوښتلے نو د دے کار مزدوری دِ تر ے اخستلے شوه." هغه اُووے "بس زما او ستا ملګرتیا ختمه شوه. اُوس زهٔ تاته د هغه خبرو

بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿۷۸﴾ اَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِيْنَ
يَعْمَلُوْنَ فِي الْبَحْرِ فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِيْبَهَا وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ يَّاْخُذُ
كُلَّ سَفِيْنَةٍ غَصْبًا ﴿۷۹﴾ وَاَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ اَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِيْنَآ اَنْ
يُّرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ﴿۸۰﴾ فَاَرَدْنَآ اَنْ يُّبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ
زَكٰوةً وَّاَقْرَبَ رُحْمًا ﴿۸۱﴾ وَاَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلٰمَيْنِ يَتِيْمَيْنِ فِي
الْمَدِيْنَةِ وَكَانَ تَحْتَهٗ كَنْزٌ لَّهُمَا وَكَانَ اَبُوْهُمَا صَالِحًا ۚ فَاَرَادَ
رَبُّكَ اَنْ يَّبْلُغَآ اَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنْزَهُمَا ۖ رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۚ
وَمَا فَعَلْتُهٗ عَنْ اَمْرِيْ ؕ ذٰلِكَ تَاْوِيْلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿۸۲﴾ ع

حقیقت بنایم چه په کومو خبرو پاندِ تا صبر اُونکړے شو۔ دَ هغې کِشتۍ معامله دا ده چه هغه دَ یو څو غریبانو کسانو وه چه په دریاب کښې به ئے محنت مزدوری کوله۔ ما اراده وُکړه چه په دے کښې عیب راپیدا کړم، ځکه چه وړاندِ دَیو داسے بادشاه علاقه وه چه هره یوه کشتۍ به ئے په زوره ضبطوله۔ پاتے شو هغه هلک، نو دَ هغه مور او پلار مؤمنان وُو، مونږ سره دے خبرے یره فکر شو چه دا هلک به په خپله سرکشۍ او په خپل کفر سره هغوئ تنګ کړی، ځکه مونږ اراده وُکړه چه دَ هغوی رب دوئ په بدله کښې هغوئ له داسے اولاد ورکړی چه په اخلاقو کښې هم دَ هغه نه بهتر وی او دَ صله رحمۍ ترې هم زیات اُمید وی۔ او دَ دے دیوال معامله دا ده چه دا دَ دوو یتیمانو هلکانو دے چه په دے ښار کښې اُوسیږی۔ دَ دے دیوال لاندِ دَ دے بچو دَ پاره یوه خزانه ښخه کړے شوی ده او دَ هغوی پلار یو نیک سړے وُو۔ په دے وجه ستا رب اُوغوښتل چه دا دواړه بچی دِ بالغان شی او خپله خزانه را وُباسی، دا ستا دَ رب دَ رحمت په وجه شوے دے، ما ئے په خپل اختیار سره نه دے کړے۔ دا ده حقیقت دَ هغه خبرو چه په هغې پاندِ تا صبر اُونه کړے شو۔ ع

[۶۰] په دے قیصه کښې یو کړکیچ دے چه دَ هغه لرے کول ضروری دی۔ حضرت خضر چه دا کوم درے کاره کړی دی په دے کښې دا دریم کار خو خیر دَ شریعت سره ټکراؤ نه خوری، لیکن رومبنی دواړه کارونه یقیناً دَ هغه حکمونو سره ټکراؤ خوری کوم چه دَ انسانیت دَ اول زمانے نه دَ نن زمانے پورے دَ خدائے په ټولو شریعتونو کښې ثابت پاتے شوی دی۔ هیڅ یو شریعت هم یو انسان ته دا اجازت نه ورکوی چه هغه دِ دَ چا دَ ملکیت څیز خراب کړی، او څوک دِ بے ګناه قتل کړی۔ اِن ته دے پورے چه که یو انسان ته

دَ الهام په ذريعه هم دا معلومه شي چه يوه كِشتئ به ورانِدِ يو سړي په زوَرا خلي، او فلانے هلك كه لوئي شو نو هغه به سركشه او كافر وي، خو بيا هم دَ خدائے په يو شريعت كښےدَ هغه دَ پاره دا جائز نۀ دي چه دغه خپل الهامي علم په وجه په كِشتئ كښے سُورے اُوكړي او بې گناه هلك قتل كړي. دَدے په جواب كښے دا وئيل چه حضرت خِضر دا دواړه كارونه دَ الله په حكم سره كړي وُو، دا په حقيقت كښے اكر كيم هډ وختوي نۀ. سوال دا نۀ دے چه حضرت خِضر دا كار دَچا په حكم كړے وُو. دا په يقين سره ثابته ده چه دا كارونه ئے دَ خدائے په حكم كړي وُو ځكه چه حضرت خِضر پخپله فرمائي چه دا كارونه ما په خپل اختيار سره نۀ دي كړي بلكه دا دَ الله دَ رحمت په وجه شوي دي او دَدے تصديق الله پخپله كړے دے چه حضرت خِضر ته دَ الله دَ طرفه يو خاص علم حاصل وُو نو دا خبره خو بيشكه ده چه دا كار دَ الله په حكم سره شوے وُو. خو اصلي سوال چه دلته پيدا كيږي هغه دا دے چه دا الله دَدے حكمونو نوعيت څۀ وُو؟ يعني دا كوم قسم حكمونه وُو؟ ظاهره خبره ده چه دا حكمونه تشريعي نۀ وُو، يعني دَ خدائے دَ شريعت مطابق نۀ وُو، ځكه چه دَ خدائے په شريعتونو كښے كوم بُنيادي اُصول دَ قرآن او دَ ورانديني آسماني كتابونو نه ثابت دي په هغه كښے دَ يو انسان دَ پاره هم دا اجازت نشته چه هغه وبے ثبوته بل انسان قتل كړي. نو په دے وجه اُوس په دغه [illegible] په لحاظ سره دا الله تعالىٰ دَ هغه [illegible] حكمونو چه په دُنيا كښے هر وخت كيږي. څوك بيماريږي او چا ته صحت وركولے كيږي، چا له مرګ وركولے كيږي او چا له ژوند، څوك تباه كولے كيږي او په چا باندے نعمتونه رانازلولے كيږي. اُوس كه چرے دا كارونه تكويني حكمونه وي نو دا صرف فرښته كولے شي چه دَ هغوي په حقله هډ ودا سوال نۀ راپيدا كيږي چه دا كار په شريعت كښے جائز دے او دا ناجائز دے، ځكه چه دَ هغوئ خپل ذاتي هيڅ اختيار نۀ وي. هغوي بس صرف دَ الله حكمونه مني. پاتے شو انسان، نو كه هغه به ارادے غه كار اُوكړي او كه دَ الهام په ذريعه غه كار اُوكړي، خو چه هغه دَ شرعي حكم سره ټكراوُخوري (يعني په شريعت كښے ناجائز وي) نو مه خامخا ګنهګار دے، مه په هيڅ حال كښے دَ ګنهګاريدو نه بچ كيدے نشي. ځكه چه انسان به دَ شريعت حكمونو خامخا لازمًا مني او دَ شريعت په اُصولو كښے دا خبره هيچرته نشته چه دَ يو انسان دَ پاره صرف په دے وجه دَ شريعت په حكمونو كښے دَ يو حكم خلاف ورزي كول جائز دي چه هغه ته دَ الهام په ذريعه دَدے دَ خلاف ورزئ كولو حكم ملاؤ شوے دے او دَ علم غيب په ذريعه هغه ته دَدے دَ خلاف ورزئ مصلحت ښودلے شوے دے.

دا يوه داسے خبره ده چه په دے باندے نۀ يوازے دَ شريعت ټول عالمان متفق دي، بلكه لوئي لوئي صوفيان هم په اتفاق سره دا خبره كوي. چنانچه علامه آلوسي په تفصيل سره دَ عبدالوهاب شعراني، محي الدين ابن عربي، مجدد الف ثاني، شيخ عبدالقادر جيلاني، جُنيد بغدادي، سري سقطي، ابو الحسن النوري، ابو سعيد الخراز، ابو العباس احمد الدينوري او امام غزالي غوندے بزرګانو قولونه نقل كړي دي او دا ئے ثابته كړي ده چه دَ صوفيانو په نزد هم په يو داسے الهام باندے عمل كول جائز نۀ دي

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِى الْقَرْنَيْنِ ۭ قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿۸۳﴾

او اے محمدؐ، دا خلق ستا نه د ذُوالقرنین په حقله تپوس کوی.[۶۱] دوی ته اُووایه، زه د هغه څه حال تاسو ته اَوروم.[۶۲]

چه هغه د شرعی نص خلاف وی. (روح المعانی جلد ۱۶ صفحه ۱۶-۱۸) بلکې صاحب الهام الهام په دا سے الهام عمل کول جائز نه دی چه هغه د نص خلاف وی.

اُوس آیا مونږ دا اُومنو چه د دے قاعدے نه صرف یو سړے بهر کړے شوے دے او هغه حضرت خضرؑ دے؟ یا دا چه خضرؑ انسان نه وو بلکه د الله په هغه بندګانو کښے وو چه د خدائے د مشیت (ارادے) مطابق (نه چه د خدائے د شریعت مطابق) کار روان کوی؟

اولنئے خبره مونږ هله منو که قرآن په صفا الفاظو سره دا ویلے وے چه هغه "بنده"، چه حضرت موسیٰؑ ورله د تربیت د پاره لیږلے شوے وو، انسان وو، لیکن قرآن صفا دا سے نه وائی چه هغه انسان وو بلکه صرف عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا "زمونږ د بندګانو نه یو بنده" وائی چه صفا ظاهره ده چه د هغه بنده نه انسان مراد اخستل ضروری نه دی، په قرآن مجید کښے په ډیرو ځایونو کښے د فرښتو د پاره هم دا لفظ استعمال شوے دے، مثلاً وګوره سورة انبیاء، آیت ۲۶، او سورة زُخرُف آیت ۱۹. بیا په یو صحیح حدیث کښے هم د نبی صلی الله علیه وسلم نه څه دا سے ارشاد نقل کړے شوے نه دے چه په هغے کښے دا صفا ویلے شوی وی چه حضرت خضرؑ یو انسانی فرد وو. په دے باب کښے د ټولو نه مستند روایتونه هغه دی چه د عن سعید بن جبیر، عن ابن عباس، عن اُبیّ بن کعب، عن رسول الله صلی الله علیه وسلم په سند سره د محدثینو اماما نو ته رسیدلی دی. په هغے کښے د حضرت خضرؑ د پاره صرف د "رَجُل" لفظ راغلے دے، چه د نارینو انسانانو د پاره استعمالیږی خو دا لفظ یواځے د انسانانو د پاره خاص نه دے. بلکې په قرآن کښے دا لفظ د پیریانو د پاره استعمال شوے دے لکه چه په سورة جن کښے ارشاد دے وَّاَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ. دا ښکاره ظاهره خبره ده چه پیرے یا فرښته یا بل هغه څیز چه په نظر نه راځی دا چه کله انسانانو ته راځی نو خامخا به په انسانی شکل کښے راځی او بیا به ورته بشر یا انسان ضرور ویلے کیږی. حضرت مریمؑ ته چه کله فرښته راغلی وه نو قرآن هغه واقعه دا سے بیانوی چه فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا. نو د نبی صلی الله علیه وسلم دا ارشاد چه "هلته هغه یو سړے بیا موندو" په دے خبره باندے صفا دلالت نه کوی چه حضرت خضرؑ انسان وو. د دے نه روستو نو مونږ د پاره د دے کړکیچ د ختمولو صرف دا یو صورت پاتے کیږی چه مونږ دا اُومنو چه "خضرؑ" انسان نه وو بلکه د فرښتو نه وو یا د خدائے بل داسے مخلوق وو چه هغوی د شریعت پابند نه وی بلکه د خدائے د مشیت کارکن وی. په مخوانو خلقو کښے هم ځینو خلقو دا رائے ظاهره کړی ده چه هغه ابن کثیر په خپل تفسیر کښے د مَاوَرْدِی په حواله سره نقل کړی ده.

[۶۱] د "وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِى الْقَرْنَيْنِ" عطف خامخا د تیرے قیصے سره دے. کم نه بلکې دا ارشاد ملاویږی چه د موسیٰ او د خضرؑ قیصه هم د خلقو د تپوس په جواب کښے اوروله شوی ده او اخر

إِنَّا مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ وَآتَيْنَاهُ مِن كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا ﴿٨٤﴾

موږ هغهٔ له په زمکه کښې اقتدار ورکړے وُو او هغهٔ له موږ هر قسم اسباب او ذرائع ورکړي وُو.

زمونږ دَدے قیاس تائید کوي چه دَ دے سورة دا دیره وارده قیصے دَ مکے کافرانو په اصل کښې دَ اهلِ کتابو په مشوره سره دَ امتحان په غرض تپوس کړے وے.

۶۲ دا مسئله دَ پخوا زمانے راسے دَ اوسه پورے مختلف فیه ده چه دا "ذوالقرنین" چه دلته ئے ذکر کیږي، چه دا څوک وُو. په پخوانۍ زمانه کښې دَ مفسرینو میلان سکندر طرفته وُو، لیکن په قرآن کښې چه دَ ده کوم صفتونه او خاصیتونه ذکر کړے شوي دي هغه ډیر په مشکله دَ سکندر سره برابریږي. په اوسنۍ زمانه کښې دَ تاریخي معلوماتو په وجه دَ مفسرینو زیات میلان دَ ایران پادشاه خورس (خسرو یا سائرس) طرفته دے، او دا نسبتاً قیاس ته نزدے دے، خو بهرحال تر اوسه پورے په یقین سره څوک دده مصداق نشي کرځولے کیدے.

قرآن مجید چه دَ ذوالقرنین ذکر په کومه طریقه کوي دَ هغے نه څلور خبرې مونږ ته په وضاحت سره معلومیږي:

(۱) دَ هغه لقب دَ والقرنین (چه لغوي معنی ئے "دَ دوه ښکرو والا" ده) یکاردي چه کم از کم په یهودیانو به ضرور مشهور وه، ځکه چه دَ هغوئ په اشاره دَ مکے کافرانو دَ ده په حقله دَ نبي صلی الله علیه وسلم نه تپوس کړے وُو. نو په دے وجه مونږ به تا اسرائیلي کتابونو ته رجوع کوو کیا رهٔ دَ دے چه معلومه کړو چه هغوي "دَ دوه ښکرو والا" چا ته ویلو.

(۲) یکاردي چه هغه ضرور یو لوئې بادشاه او فاتح وي چه دَ هغه فتوحات دَ مشرق نه دَ مغرب پورے رسیدلي وي، او دریم طرفته شمال یا جنوب ته هم خواره شوي وي. دا صفتونه دَ قرآن دَ نازلیدو نه مخکښې یو څو تیر شوي دي او مونږ به خامخا دَ هغوي نه په یو کښې باقي لوی خاصیتونه کتو.

(۳) یکاردي چه هغه ضرور یو داسے بادشاه وي چه هغه په خپله بادشاهۍ کښې دَ یاجوج او دَ ماجوج دَ حملو نه دَ بچ کولو دَ پاره دَ غر په یوه دره کښې یو مضبوط دیوال جوړ کړے وي. دَ دے نښې دَ تحقیق کولو دَ پاره مونږ به دا هم معلومه وُو چه دَ یاجوج او دَ ماجوج نه مراد کوم قومونه دي، او بیا به دا هم کورو چه دَ هغوئ دَ علاقے سره جوخت کوم داسے یو دیوال چرته په دُنیا کښې جوړ کړے شوے دے او هغه چا جوړ کړے دے.

(۴) یکاردي چه په هغه کښې دَ دے پاسنو خاصیتونو سره دا خاصیت هم وي چه هغه یو خدا پرسته او انصاف والا پادشاه وي، ځکه چه په قرآن کښې دَ ټولو نه زیات دَ هغه دا خاصیت ذکر کړے شوے دَ. په دے کښې اولنۍ علامت به په آسانۍ سره دَ خورس سره لګی، ځکه چه دَ بائیبل په دانی ایل صحیفه کښې چه دَ دانیال نبي کوم خوب بیان کړے شوے دے په هغے کښې هغه دَ یونانیانو دَ ترقۍ نه مخکښې دَ میډیا او دَ فارس یو متحد سلطنت دَ یو ګډ په شکل کښې وینې چه دَ هغه دوه ښکرے وے. په

فَاَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٥﴾ حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا

هغه (اول مغرب طرف ته دَیو مُهم) تیاره وکړه. آن تر دې پورې چه کله هغه نمر دَ ډوبیدُو حد ته اُورسیدو نو

یهودیانو کښې دَ دے "دَ وَرِیُو ښکرو والا" تحت شهرت وُو ځکه چه دهٔ دَ بابل سلطنت دړے وړے کړو او بنی اسرائیلو ئے دَ قید نه آزاد کړل. (تفهیم القرآن سورة بنی اسرائیل، حاشیه - ۸)

دویم علامت دَ دیره حده پورے دَ هغه سره لګی، خو پوره پوره نه لګی. دَ هغه فتوحات په شکه چه مغرب کښے دَ ایشیائے کوچک او دَ شام دَ ساحل علاقو پورے او په مشرق کښے دَ باختر (بلخ) پورے وُو لیکن په شمال (یعنی قطب) کښے یا په جنوب (یعنی سویل) کښے دَ هغه دَ غه لوئ مهم پته لا تراوسه پورے په تاریخ کښے نه ده ملاو شوی، حالانکه قرآن بنه په صفائیٔ سره دَ یو دریم مُهم ذکر هم کوی. بیا هم قیاس کیدے شی چه دا مُهم (یعنی سفر) شوے وی، ځکه چه په تاریخ کښے دَ خورس بادشاهی په شمال کښے دَ کاکیشیا (قفقاز) پورے وه.

دَ دریم علامت په باره کښے تقریبًا دا خبره تحقیق ته رسیدلے ده چه دَ یاجوج او دَ ماجوج نه مراد روس او دَ قطبی چین هغه قبایل دی چه په تاتاری، منګولی، هُن او سیتهین وغیره نومونو باندِ مشهور دی او دَ پخوا زمانے نه په مالدار ملکونو باندِ حملے کوی. دا ښکاره هم معلومه ده چه دَ هغوی دَ حملو نه دَ بچ کیدو دَ پاره دَ قفقاز په سویلی علاقو کښے دَ دربند او دَ داریال مضبوط دیوالونه جوړ شوی وو، لیکن دا تراوسه پورے نه ده ثابته شوی چه دا مضبوط دیوالونه هم دَ غه خورس جوړ کړی وه او که نهٔ؟

آخری علامت دَ پخوانیٔ زمانے په مشهورو فاتحانو کښے صرف په خورس باندِ چسپان کیږی. ځکه چه دَ هغه دُشمنان هم دَ هغه دَ عدل تعریف کوی او دَ بائبل کتاب عزرا په دے خبره باندِ ګواه دے چه هغه ضرور یو خدا پرست او خدا ته منونکے بادشاه وُو، هغه دَ خپلے خدا پرستیٔ په وجه بنی اسرائیل دَ بابل دَ قید نه آزاد کړل او دَ الله وحده لاشریک دَ عبادت دَ پاره ئے په بیت المقدس کښے دَ هیکل سلیمانی دَ دوباره جوړولو حکم اُوکړو.

په دے وجه مونږ دا خو ضرور منو چه دَ قرآن دَ نازلیدو نه مخکښے دَ دُنیا څومره مشهور فاتحین تیر شوی دی په هغوئ ټولو کښے صرف په خورس کښے دَ "ذوالقرنین" زیات علامات موندلے کیږی. لیکن دَ هغه په حقله دا ویناکول چه هغه هم خاص ذوالقرنین دے، دَ دے دَ پاره لا دَ نورو شهادتونو ضرورت دے. بیا هم قرآن چه کوم علامات ښودلی دی هغه په بل یو فاتح کښے هم دومره پوره نهٔ دی لکه څنګه چه په خورس کښے دی.

دَ تاریخی بیان دَ پاره صرف دومره ذکر کافی دے چه خورس یو ایرانی بادشاه وُو چه دَ هغه ترقی سنه ۵۴۹ ق م ته په نږدے زمانه کښے شروع شوه. هغه په یو څو کاله کښے دننه دَ میډیا (الجبال) او لیډیا (ایشیائے کوچک) حکومتونه تابع کړل. او په سنه ۵۳۹ ق م کښے ئے بابل هم فتح کړو، چه دَ هغے نه روستو بیا یو طاقت هم دَ هغه مخے له نشو راتللے - دَ سند او دَ صُغد (موجوده ترکستان) نه واخله دَ مصر او دَ لیبیا پورے او بل

تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَّوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ۗ قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ
إِمَّآ أَنْ تُعَذِّبَ وَإِمَّآ أَنْ تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا ﴿٨٦﴾ قَالَ أَمَّا مَنْ
ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ ثُمَّ يُرَدُّ إِلٰى رَبِّهِ فَيُعَذِّبُهُ عَذَابًا نُّكْرًا ﴿٨٧﴾
وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَآءً ۨالْحُسْنٰى ۚ وَسَنَقُولُ لَهُ
مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا ﴿٨٨﴾ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾ حَتّٰٓى إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ
الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلٰى قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ لَّهُمْ مِّنْ دُوْنِهَا

وُلیدُ چه نمر په تورو اوبو کښې ډوبېږي[٦٣] او هلته دَ هغه سړي توم مِلاؤ شو. مونږه ورته اُووئیل "اے ذوالقرنینه" تا ته دا طاقت هم حاصل دے چه ته دوی له تکلیف ورکړے او دا هم چه ته دَ دوی سره نیکه طریقه اختیار کړے[٦٤]" هغه اُووئیل "څوک چه په هغوی کښې ظلم کوی مونږه به هغوی له سزا ورکوُو بیا به هغوی خپل رب طرفته واپس کړے شی او هغه به ورله نور زیات سخت عذاب ورکړي. او څوک چه په هغوی کښې ایمان راوړی او نیک عمل کوی دَ هغه دَ پاره ښه جزا ده او مونږ به هغه ته نرم حکمونه کوُو" بیا هغه (دَ یو دویم مهم (سفر) تیاره وُکړو) آن تر دے پورے چه دَ نمر دَ ختو حد ته اُورسید. هلته هغه وُلیدُ چه نمر په یو داسے قوم باندِ راخیژي چه دَ هغوی دَ پاره دَ نمر نه دَ بچ کیدو څه ذریعه مونږ نۀ ده

طرفته دَ تهریس او دَ مقدونیه پورے علاقے هغه فتح کړلے او قطب ته دَ هغه بادشاهی دَ قفقاز (کاکیشیا) او دَ خوارزم پورے وه - دَ هغه وخت تهوله مهذب دُنیا عملاً دَ هغه دَ حکم لاندِ وه -

[٦٣] دَ نمر دَ ډوبیدو نه مراد، لکه څنګه چه ابن کثیر لیکلی دی: "اقصی ما یسلك فیه من الارض من ناحیة المغرب" دے، دَ نمر دَ ډوبیدو ځائے ترِ مُراد نۀ دے. مطلب دا دے چه هغه مغرب طرفته ملکونه فتح کول او روان وُو آن تر دے پورے چه دَ خشکئ آخری سر ته اُورسید وچه دَ هغے نه وړاندِ سمند رُوو.

[٦٤] یعنی هلته دَ نمر دَ ډوبیدو په وخت کښې داسے معلومیدۀ چه نمر دَ سمند په تورو اوبو کښې ډوبیږي که واقعی دَ ذوالقرنین نه مراد هم دغه خورس وی نو دا به دَ ایشیائے کوچک مغربی غاړه وی چه هلته دَ بحرِ ایجین نه واړه واړه خلیجونه جوړ شوی دی - دَ دے قیاس تائید دا خبره هم کوی چه قرآن دلته دَ بحر په ځائے لفظ "عین" استعمالوی چه سره له دَ سمند په ځائے دَ ډنډ یا دَ خلیج دَ پاره زیات صحیح استعمالولے شی.

[٦٥] ضروری نۀ ده چه الله تعالیٰ دا خبره ذوالقرنین ته نیغ په نیغه دَ وحی یا دَ الهام په ذریعه کړي وی، چه دَ هغے نه دَ ذوالقرنین نبی کیدل یا محدث کیدل لازمی شی. بلکه دا خبره دَ زبان حال په ذریعه هم کیدے شی، او دا قیاس ته ډیره نزدے ده - ذوالقرنین په دغه وخت کښې فتح کړي وه او

سِتْرًا ﴿٩٠﴾ كَذٰلِكَ ۗ وَقَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴿٩١﴾ ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾
حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمَا قَوْمًا ۙ لَّا يَكَادُوْنَ
يَفْقَهُوْنَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾ قَالُوْا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِنَّ يَاْجُوْجَ وَمَاْجُوْجَ مُفْسِدُوْنَ
فِي الْاَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلٰٓى اَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾

جوړه کړي. [٧٥] دا حال وو د هغوئ، او د ذوالقرنين سره چه څه وو هغه مونږ ته معلوم وو.
بيا هغه (د يو بل مهم (سفر) تياره وکړو) آن تر دې پورې چه کله د دوو غرونو مينځ ته اورسيدو [٧٦] و
نو هلته ورته يو قوم ملاؤ شو چه ډير په مشکله به يې خبره پوهيدل. [٧٧] هغه خلقو ووئيل "اے ذوالقرنينه
ياجوج او ماجوج [٧٨] په دے زمکه کښې فساد خوروي. نو آيا مونږ تا له څه ټيکس
د دے کار دپاره درکړو چه ته زمونږه او د هغوئ په مينځ کښې يو بند جوړ کړې؟

په دغه علاقه باندې قبضه کړې وه. د هغے علاقے خلق د هغه په قبضه کښې وو. الله تعالیٰ په هغه وخت کښے د هغه
زړه ته دا خبره وراندې کړله چه دا ستا امتحان وخت دے. دا قوم تا ته بے وسه دے. که ته پرې ظلم کول غواړې
نو هم پرې کولے شې او که د شرافت سلوک ورسره کول غواړې نو هم ستا اختيار دے.

٧٦ يعنى هغه ملکونه فتح کول او مشرق طرفته داسے علاقے ته اورسيدو چه د هغه ځائے نه د مهذب
خلقو سرحد ختم شوے وو او وړاندې د داسے وحشى او ځنګلى قومونو علاقه وه چه کور د نسبوړ ول خو څو
خبره ده، هغوئ په خيمو جوړ و لو هم نه پوهيدل.

٧٧ چونکه وړاندې دا خبره راروانه ده چه د دے دوارو غرونو نه بل طرف ته د ياجوج او د ماجوج
علاقه وه، نو په دے وجه د دے غرونو نه مراد خامخا د کاکيشيا د غر هغه سلسله کيدے شي چه د بحر خزر
(کيسپين) او د بحر اسود په مينځ کښے ده.

٧٨ يعنى د هغوئ ژبه د ذوالقرنين او د هغه د ملګرو دپاره تقريبًا نا آشنا وه. چونکه سخت
وحشيان وو نو په دے وجه نه څوک د هغوئ د ژبے نه واقف وو او نه هغوئ د نورچا د ژبو نه واقف وو.

٧٩ د ياجوج او د ماجوج نه مراد، لکه څنګه چه بره په حاشيه نمبر ٦٢ کښے هغے ته اشاره شوې ده،
د ايشيا د قطبي مشرقي علاقو هغه قومونه دي چه د پخوانئ زمانے راسے په مالداريو او ملکونو باندې حملے کو
او چه د هغوئ د لوټ مار سيلاب په ايشيا او په يورپ باندې وخت په وخت ورغی. د بائيبل په کتاب
پيدائيش (باب ١٠) کښے دوئ د حضرت نوح د ځوی يافث په نسل کښے شمار کړے شوي دي، او مسلمانان
مؤرخين هم دغسے بيان کوي. د حزقى ايل په صحيفه (باب ٣٨، ٣٩) کښے بيان کړے شوي دي چه د دوئ
علاقه روس او توبل (موجوده توبالسک) او مسک (موجوده ماسکو) ده. يوسيفوس نومے
اسرائيلى تاريخ دان وائي چه د دے نه مراد د سيتهين قوم دے، چه علاقه ئے د بحر اسود په قطب

قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ
رَدْمًا ۹۵ اٰتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ حَتّٰى إِذَا سَاوٰى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ
انْفُخُوا حَتّٰى إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ اٰتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ۹۶ فَمَا
اسْطَاعُوا أَنْ يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا ۹۷ قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ
مِنْ رَبِّي فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ۹۸

هغه اووې ۶۸ "څه چه زما رب ماله راکړي دي هغه ډیر دي، تاسو بس په محنت کولو سره زما مدد وکړئ زه ستاسو او د هغوی په مینځ کښې بند جوړ ووم ۶۹ ماله د وسپنې ټوټې راوړئ ۷۰" آخر دا چه کله د دواړو غرونو مینځنۍ ځائے هغه په ډکولو برابر کړو نو خلقو ته ئے اووے چه اوس اور بل کړئ. آن تردے پورے چه کله (دا د وسپنے دیوال) بالکل د اور پشان سور شو نو هغه اووئیل "راوړئ اوس زه په دے باندې ویلې کړے شوی تانبا اچوم." (دا بند داسے وو چه) یاجوج ماجوج په هغې باندې ورختلے هم نشو او په هغې کښې سوریه کول خو ورته نور هم ګران وو. ذوالقرنین اووئیل "دا زما د رب رحمت دے. خو چه کله زما د رب د وعدے وخت راشي نو هغه به ئے دځا دړوسو هموار کړي ۷۱ او زما د رب وعده حقه ده ۷۲."

او په مشرقي کښې وه. جیروم وائي چه ماجوج د کاکیشیا په قطب کښې د بحرِ خزر خوا ته آباد وو.

۶۹ یعنې د بادشاه په حیثیت سره زما دا فرض دي چه خپل رعیت د دوئي د دوي نه بچ کړم. د دے کار د پاره په تاسو باندې بوجھ اچیکس لګول ماله جائز نه دي. د ملک کوم خزانه چه الله تعالیٰ ماته حواله کړي ده هغه د دے خدمت د پاره کافي ده. البته د لاسو څپو په محنت سره به تاسو زما مدد کوئ.

۷۱ یعنې اګر چه ما خو د خپل وس مطابق ډیر مضبوط دیوال جوړ کړے دے، خو دا همیشه نه دے. تر څو پورے چه د الله مرضي وي تر هغې پورے به وي، او کله چه هغه وخت راشي کوم چه الله د دے د تباهئ د پاره مقرر کړے دے نو بیا دا د ټوکړے ټوکړے کیدو نه هیڅوک نه شي بچ کولے. "د وعدے وخت" د دے دوه معني کیدے شي. د دے نه مراد د دے دیوال د تباهئ وخت هم دے او هغه وخت هم مراد دے کوم چه الله تعالیٰ د هر څیز د فنا کیدو د پاره مقرر کړے دے، یعنې قیامت. (د دے دیوال په حقله د تفصیلي معلوماتو د پاره وګوره ضمیمه نمبر ۲).

۷۲ دلته د ذوالقرنین قیصه ختمیږي. دا قیصه اګر چه د مکے د کافرانو د آزمېښتي تپوسونو په جواب کښې اورولے شوي ده، خو د اصحاب کهف د قیصے پشان او د موسیٰ او د خضر د قیصے پشان دا قیصه هم قرآن د خپلې قاعدے مطابق د خپل غرض د پاره په ښه توره استعمال کړي ده. په دے کښې وئیلي شوي دي چه ذوالقرنین، چه د هغه د لوئ شان حال تاسو د اهلِ کتاب نه اوریدلے دے،

وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ ۖ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَجَمَعْنَاهُمْ جَمْعًا ﴿٩٩﴾
وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكَافِرِينَ عَرْضًا ﴿١٠٠﴾ الَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَاءٍ
عَن ذِكْرِي وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴿١٠١﴾ أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن
يَتَّخِذُوا عِبَادِي مِن دُونِي أَوْلِيَاءَ ۚ إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا ﴿١٠٢﴾

(او په هغه ورځ[٧٣] به موږ خلق پرېږدو چه (د سمندر د څپو په شان) په يو بل کښې ورننوځي او صُور به پوك شي او موږ به ټول انسانان يو ځائې را جمع کړو. او هم دغه ورځ به وي چه موږ به جهنم د کافرانو مخې ته را ولو، د هغې کافرانو مخې ته چه زما د نصيحت نه ړانده جوړ شوي وُو او څه اوريدو د پاره هډو تيار نه وُو. ع

نو آيا دا خلق[٧٤] چه کوم چه کفر اختيار کړے دے، دوئ دا خيال لري چه ما پرېږدي او زما بندګان خپل کارساز جوړ کړي؟ موږ د داسې کافرانو د ميلمستيا د پاره جهنم تيار ساتلے دے.

د ليوانۀ د ملکونو فتح کوونکے انسان نۀ وُو، بلکه د توحيد او د آخرت قائل وُو، د عدل او د انصاف او سخاوت په اصولو باندې عمل کوونکے وُو، او ستاسو په شان نۀ وُو چه لږه شان سرداري در ته ملاؤ شي نو بيا مو دا خيال وي چه "هم چو من ديګرے نيست" چه زمونږ په شان بل څوک نشته.

٧٣ـ يعنې د قيامت په ورځ. ذوالقرنين چه کومه اشاره د قيامت د حقې وعدې طرف ته کړې وه د هغې په مناسبت سره دا يو څو فقرې د هغې په تول زياتې فرمايلې کيږي.

٧٤ـ دا د ټول سورة د کلام خاتمه ده، په دې وجه د دې مناسبت د ذوالقرنين په قيصه کښې کتل نۀ دي پکار بلکه د سورة په ټول مضمون کښې کتل پکار دي. د سورة مجموعي مضمون دا دے چه نبي صلی الله عليه وسلم خپل قوم ته دا دعوت ورکولو چه شرك پرېږدي او توحيد اختيار کړي او دُنيا پرستي پرېږدي او په آخرت يقين وُ لري. خو د قوم لويو لويو سردارانو د خپل دولت او د خپل شان و شوکت په نشه کښې نۀ يوازې د نبي دعوت رد کولو، بلکه کومو خلقو چه دعوت قبول کړے وُو په هغوي باندې يې ظلمونه هم کول. په دې باندې هغه ټول تقرير اوشو، کوم چه د سورة د شروع نه د دې ځائې پورې را اُورسيدو، او کومې قيصې چه مخالفينو د آزميښت په غرض د نبي نه تپوس کړې وې هغه درې واړه قيصې هم په دې تقرير کښې ټيک په موقع باندې د ګمو په شان په يو بل پسې ونښلولے شوې. اوس د تقرير په ختميدو کښې بيا خبره هغه مدعا ته را ګرزولې کيږي کوم چه د تقرير په شروع کښې پيش کړے شوې وُو او په کوم باندې چه د څلورم رکوع نه د اتم رکوع پورې مسلسل بحث شوے دے.

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا ﴿۱۰۳﴾ الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ
الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ﴿۱۰۴﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ
رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ﴿۱۰۵﴾

اے محمدؐ، دوی ته اُووایه، آیا مونږه تاسو ته اُوښایو چه په خپلو عملونو کښې د ټولو نه زیات ناکام اونامراده خلق څوک دی؟ هغه خلق دی چه د دُنیا په ژوند کښې د هغوی ټول کوشش د نیغ لارے نه بے لارے شوے وی او د هغوی دا خیال وی چه هغوی هرڅه ټیک ټیک کوی. دا هغه خلق دی چه هغوی د خپل رب د آیتونو منلو نه انکار اُوکړو او د هغه سره د پیشی یقین ئے اُونه کړو. په دے وجه د هغوی ټول عملونه ضایع شول، د قیامت په ورځ به مونږه هغوی له هیڅ وزن نۀ ورکوو.

۷۵ے یعنی آیا دَ دے هرڅه اوریدو نه روستو هم د هغوی دا خیال دے او هغوی دا گمان کوی چه دا طریقه به د هغوی د پاره فائده مند وی؟

۷۶ے دَ دے آیت دوه مطلبونه کیدے شی. یو هغه چه کوم مونږه په ترجمه کښې بیان کړے دے. او دویم دا چه " دَ هغوی ټول کوششونه دَ دُنیا په ژوند کښې ورک پلتے شو" یعنی هغوی چه هرڅه کړی دی دَ خدائے نه بے پروا او دَ آخرت نه بے فکره صرف دَ دُنیا دَ پاره ئے کړی دی. دَ دُنیا ژوند ئے اصلی ژوند گنړلے دے. دَ دُنیا کامیابیانے او خوشحالیانے ئے خپل مقصد جوړ کړے دے. دَ خدائے دَ هستئ که قایل وُو هم نو دَ دے خبرے فکرئے هیچرے نۀ دے کړے چه دَ خدائے مرضۍ څه ده او هغه به زمونږ سره دَ عملونو حساب هم کوی. خپل ځان ئے یو آزاد او بے غیرذمه دار عقلمند ګڼلے دے او گنړلے دے چه دَ هغه دَ پاره بل هیڅ کار نشته سوا دَ دے نه چه دَ دُنیا دے شین څنی ستر فائده واخلی.

۷۷ے یعنی دے قسم خلقو چه په دُنیا کښې هرڅو مره لوئے لوئے کارنامے کړی وی، هغه به ټولے دَ دُنیا دَ ختمیدو سره ختمے شی. دا چپلے مانړئ او محلونه، دا خپلے یونیورسټئ او کتب خانے، دا خپلے کارخانے او ملونه، دا خپل سړکونه او گاډی، دا خپل ایجادونه او دا خپل جوړکړی څیزونه، دا خپل علوم او مهارت، او دَ خپل هُنر دا لوړلوړ مکانونه، او نور ټول هغه څیزونه چه په هغوی باندے دوئی فخر کوی په دے کښې به یو څیزهم دَ ځان سره خدائے له وړے نۀ وړے شی چه دَ خدائے په میزان کښې ئے کیښږدی. هلته چه کوم څیز باقی پاتے کیدونکے دے هغه صرف دَ عمل مقصد ونه او دَ عمل نتیجے دی. اُوس که دَ چا ټول مقصدونه په دُنیا پورے محدود وُو او نتیجے ئے هم هغه په دُنیا کښې غوښتلے وے او په دُنیا کښې هغه دَ خپل عمل نتیجے لیدلی هم دی نو دَ هغه هرڅه دَ دے فانی دنیا سره فنا شو. په آخرت کښې چه د کوم څیز په پیش کولو سره وزن موندلے شی هغه خو یکار دی چه هغه وئیوه دا هغه کارنامه وی چه هغه سړی دَ خدائے د رضا دَ پاره کړی وی، دَ هغه دَ حکمونو په پابندئ کښې ئے

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوْا وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَرُسُلِيْ هُزُوًا ﴿١٠٦﴾ اِنَّ
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنّٰتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ﴿١٠٧﴾
خٰلِدِيْنَ فِيْهَا لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا حِوَلًا ﴿١٠٨﴾ قُلْ لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ
رَبِّيْ لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ كَلِمٰتُ رَبِّيْ وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ مَدَدًا ﴿١٠٩﴾
قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَمَنْ كَانَ يَرْجُوْا
لِقَآءَ رَبِّهٖ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَّلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖٓ اَحَدًا ﴿١١٠﴾ ع

دَ هغوئ بدله جهنم دے د هغې کفر په بدل کښې کوم چه هغوئ اُوکړو او د هغه توکو پېسزا کښې کوم چه هغوی زما د آیتونو او زما د رسولانو سره کوله - البته کوم خلقو چه ایمان راوړو او نیک عمل ئے اُوکړو، دَ هغوی دَ میلمستیا دَ پاره به فردوس باغونه وی چه هغوی به پکښې همیشه اُوسیږی او هیڅکله به دَ هغوی زړونه دَ هغه ځائے نه بل ځائے ته وَتل اُونه غواړی[۷۸].

اے محمدﷺ، اُووایه که زما دَ رب دَ خبرو[۸۰] دَ لیکلو دَ پاره دَ سمندر نه سیاهی جوړه شی نو هغه به ختمه شی او زما دَ رب خبرے به ختمے نه شی، بلکه که دَ هغه هومره سیاهی موږ نوره راوړو نو هغه به هم پوره نه شی -

اے محمدﷺ، اُووایه چه زهٔ خو یو انسان یم ستاسو په شان، ما ته وحی کیږی چه ستاسو خدائے خو بس هم یو خدائے دے، پس څوک چه دَ خپل رب دَ مُلاقات اُمید لری هغه له پکار دی چه نیک عمل اُوکړی او په بندګئ کښې دَ خپل رب سره بل څوک شریک نه کړی. ع

کړی وی او په دے غرض ئے کړی وی چه فائده ئے ورته په آخرت کښې ملاؤ شی - که داسے یوه کارنامه دَ سرې په حساب کښې نه وی نو بیشکه چه دَ هغه هغه ټول کوششونه عبث لاړل کوم چه هغه په دُنیا کښې کړی وُو -

۷۸ دَ تشریح دَ پاره وګوره تفهیم القرآن جلد دریم، سورة المومنون، حاشیه ۱۰

۷۹ یعنی دَ هغې حالت نه به بل بښه حالت نه وی چه دَ هغې دَ بدلولو دَ پاره دَ هغوی په زړونو کښې څه خواهش راپیدا شی -

۸۰ دَ "خبرو" نه مُراد دَ هغه کارونه کمالات او دَ هغهٔ دَ قدرت او دَ حکمت کارنامے دی - دَ تشریح دَ پاره وګوره تفهیم القرآن جلد څلورم، سورة لقمان، حاشیه ۴۸ -

# مَرْيَمْ

**نوم** دَدے سورت نوم دَ آیت وَاذْکُرْ فِی الْکِتٰبِ مَرْیَمَ نه اخستلے شوے دے۔ مطلب دا دے چه هغه سورت چه په هغے کښے دَ حضرت مریم ذکر را غلے دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** دا دَ حبشے دَ هجرت نه مخکښے نازل شوے دے۔ دَ معتبرو روایتونو نه معلومیږی چه کله دَ اسلام مهاجرین دَ نجاشی دربار ته اُوغوښتلے شونو په هغه وخت کښے حضرت جعفر په ډک دربار کښے دا سورت تلاوت کړے وُو۔

**تاریخی حالات** په کوم دور کښے چه دا سورت نازل شو دَ هغے دَور حالاتو ته مونږه دَ سورت کهف په دیباچه کښے څه لږه شان اشاره کړې ده۔ لیکن هغه لږه اشاره په دے سورت باندِ دَ پوهید لو دَ پاره او دَدے دَور په نورو سورتونو باندِ دَ پوهید لو دَ پاره کافی نه ده، نو په دے وجه مونږه دَ هغے وخت حالات لږ شان زیات په تفصیل سره بیانوُو۔

دَ قریشو سردارانو چه کله په توقوخندا اکانوسره، په یرولو او په طمع لالچ ورکولو سره او دَ دروغو په الزامونو لګولو سره اسلامی تحریک مات نه کړے شو نو ظلم زیاتے، وَهل ټکول او معاشی دباؤ استعمالول ئے شروع کړل۔ دَ هرے قبیلے خلقو به دا کوشش کوُو چه دَ خپلے خپلے قبیلے نوی نوی مسلمانان تنګ کړی، قید ئے کړی او لوږے تندے پرتیره کړی او آن تر دے پورے چه سختے بدنی سزاګانے ورکړی او هغوی په اسلام پریښودو باندِ مجبور کړی۔ په دے سلسله کښے خاص طور غریبان خلق او هغه غلامان چه دَ قریشو ماتحت وُو دیر وُ زبیلے شوو، مثلاً بلال، عامر بن فُهیره، اُم عُبَیس، زِنّیره، عَمّار بن یاسر او دَ دوئ مور پلار وغیرهم۔ دا خلق به په وَهلُو وَهلُو بے هوشه کړے کیدل، ورځی تږی به قید کړے کیدل، په وَرتوَ نکی نمر کښے به دَ مکے په ګرمو شګو باندِ سملولے کیدل او په سینه باندِ به ئے درانه درانه کانړی په کینښوکینښوکیښودلے کیدل۔ کوم خلق چه به کسب ګروُو په هغوی باندِ به ئے کار کولو او په مزدورئ ورکولو کښے به ئے دیر خفه کول۔ په صحیحینو کښے دَ حضرت خَبّاب بن اَرت دا روایت دے چه:

"ما په مکه کښے دَ لوهارئ کار کولو په ما باندِ عاص بن وائل کار اُوکړو، بیا چه کله زهٔ دَ مزدورئ اخستلو دَ پاره ورغلم نو هغه راته اُووئیل چه تر هغے مزدوری نه درکوم ترڅو چه تهٔ دَ محمدؐ نه انکار اُونه کړے۔"

دغه شان چه کوم خلقو به تجارت کولو دَ هغوی دَ کاروبار دَ بربادولو کوشش به کیدو او څوک چه به عزتمند وُو هغوی به په څه طریقه ذلیله کړے کیدل۔ هم دَدے زمانے حال حضرت خباب بیانوی او وائی چه یوه ورځے نبی صلی الله علیه وسلم دَ کعبے په سورې کښے ناست وُو، زهٔ دَ هغه په خدمت کښے حاضر شوم او عرض م اوکړو "اے دَ الله رسولَ، اوس خو دَ ظلم حد

دے، تهٔ نهٔ خدائے نهٔ دُعا نهٔ غواړې"؟ دَدے خبرے په اَوریدو سره دَ نبیٔ ﷺ مبارک سُور شو او وې فرمائیل" ستاسو نه مخکښے چه کوم مؤمنان وُو په هغوی باندے دَ دے نه زیات ظلمونه شوی دی. دَ هغوی په هډوکو باندے به دَ اُوسپنے گومنزے راښکودے کیدلے. دَ هغوی سرونه به اَره کیدل، بیا به هم هغوی دَ خپل دین نه نهٔ اوړیدل. یقین اُوکړئ چه الله به دا کار پوره کوی اَن تر دے پورے چه یو وخت به راشی چه یو سړے به دَ صَنعَاء نه حضرموت پورے سفر کوی او دَ الله نه بغیر دَ بل چا ډر به نهٔ ورېږی، خو تاسو تلوار کوئ"۔ (بخاری)۔

دا حالات چه کله داسے حد ته اُورسیدل چه نور څه نهٔ شو برداشت کیدلے نو دَ رجب په میاشت کښے په ۴۵ عام الفیل (سنه ۵ نبوی) کښے نبیٔ خپلو صحابو ته اُوفرمائیل چه "لو خرجتم الی ارض الحبشة فان بها ملكًا لا يظلم عنده احد وهي ارض صدق حتى يجعل الله لكم فرجا مما انتم فيه" "بهتره به دا وی چه تاسو اُوځئ او حبشے ته لاړ شئ. هلته یو داسے بادشاه دے چه دَ هغه په بادشاهئ کښے په چا باندے ظلم نهٔ کیږی او هغه دَ نیکئ زمکه ده. تر هغه پورے تاسو هلته وسئ چه ترڅو پورے الله تعالیٰ ستاسو دَ دے مصیبت ختمولو څه صورت پیدا نکړی".

دَ دے حکم په وجه اول یوولس سړی او څلور ښځے حبشے ته روان شو. قریش ورپسے دَ سمندر دَ غاړے پورے لاړل، خو خوش قسمتی دا وه چه دَ شُعَيْبَه په بندرگاه باندے هغوی ته په وخت کشتئ ملاؤ نهٔ شوه او دَ نیولو نه بچ شول. بیا یو څو میاشتے پس نورو خلقو هجرت اُوکړو ان تر دے پورے چه په حبشو کښے درے اتیا ۸۳ سړی یوولس ښځے او اووه غیر قریشی مسلمانان جمع شول او په مکه کښے دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره صرف څلویښت کسان پاتے شو.

دَ دے هجرت په وجه دَ مکے په کور کور کښے شور جوړ شو، ځکه چه دَ قریشو په خاندان کښے یو داسے خاندان نهٔ وو چه دَ هغوی دَ زړهٔ قطره به په دے مهاجرو کښے شامله نهٔ وه. دَ چا بچے خو ځے تلے وُو دَ چا بچئ خوم، دَ چا لُور تلی وه او چا رور او دَ چا خور. دَ ابو جهل رور سلمه بن هشام، دَ هغهٔ دَ تره ځوے هشام بن ابی حذیفه او عیاش بن ابی ربیعه او دَ هغهٔ دَ تره لُور حضرت ام سلمه. دَ ابو سفیان لور ام حبیبه. دَ عتبه ځوے او دَ هند سکه رور ابو حذیفه. دَ سهیل بن عمرو لور سهله. او دغه شان دَ قریشو دَ نورو سردارانو او دَ اسلام دَ مشهورو دُشمنانو دَ زړهٔ قطرے دَ دین دَ خاطره دَ کورونو نه وتلی وُو او وطن ئے پریښودے وُو نو داسے کور نهٔ وُو چه هغه په هجرت سره متأثره شوے نهٔ وُو. څینی خلق دَ دے په وجه دَ اسلام سره په دُشمنئ کولو کښے دَ اول نه زیات سخت شو، او دَ څینو خلقو په زړونو باندے دَ دے داسے اثر اُوشو چه آخر هغوی مسلمانان شو. چنانچه دَ دے هجرت دَ وجے نه په حضرت عمر رض باندے اول اثر اُوشو. دَ هغه یوه نزدے خپله رشته داره لیلیٰ بنت حثمه بیان کوی چه ما دَ هجرت دَ پاره خپل سامان تړلو، او زما خاوند عامر بن ربیعه دَ څه کار دَ پاره بهر ته تلے وُو. په دے

کښې عُمر اغه ما ته ودرېده او زما کار ته ئې کتل. لږ ساعت پس ئې اُووې "د عبدالله مور، ته ځې؟" ماورته اُووې "هو، قسم په خدائ چه تاسو مونږه ډېر تنګ کړلو. د خدائ زمکه فراخه ده، اُوس به مونږه چرته داسې ځائ ته ځو چه هلته راله خدائ امان راکړي" چه دا خبره ئې واورېده نو د عُمر په مخ باندې د ترس داسې څپې ښکاره شوې چه ما چرته نه وې لیدلې او بس دا ئې اُووې او واوتلو چه "خدائ دې ستاسو سره مل وي".

د هجرت نه روستو د قریشو سرداران یو ځائ کېناستل او دا فیصله ئې اُوکړه چه عبد الله بن ابي ربیعه (چه د ابوجهل سکه رور ؤو) او عمرو بن عاص له د قیمتي قیمتي تحفې ورکړې شي او حبشې ته دې اُولېږلې شي او دوئ دې په څه طریقه نجاشي په دې خبره راضي کړي چه هغه دا مهاجر خلق مکې ته واپس را اُولېږي. د مومنانو مور حضرت اُم سلمې (چه پخپله په مهاجرو کښې شامله وه) دا واقعه ډېره په تفصیل سره بیان کړې ده. هغه فرمائي چه د قریشو دا دواړه هوښیاران سفیران په مونږ پسې حبشې ته اُورسېدل. هغوئ اول د نجاشي په وزیرانو باندې تحفې تقسیم کړې او ټول ئې په دې خبره راضي کړل چه نجاشي بادشاه ته به په اتفاق سره وائي چه مهاجر واپس کړي. بیا نجاشي بادشاه سره ملاؤ شول او هغه ته ئې قیمتي نذرانې ورکړې او ورته ئې اُووې چه "زمونږ د ښار یو څو بې وقوفه ځلمي هلکان ستاسو ملک ته راتښتېدلي دي او د قوم شریفو خلقو مونږه تاله رالېږلي یو چه ته دوئ مونږ له واپس کړې. دا هلکان زمونږ د دین نه وتلي دي او ستاسو په دین کښې هم نه دي داخل شوي بلکه دوئ یو ناآشنا دین رااېستلے دے" چه د دوئ خبرې ختمې شوې نو سمدستي درباریانو د هر طرف نه شروع کړه چه "دا خلق ضرور واپس کول پکار دي، د دوئ قوم خلق دا ښه پېژني چه په دوئ کښې څه عیب دے. د دوئ ساتل ښه نه دي". خو نجاشي غُصه شو او وې وئیل چه "زه خو دغسې دوئ نه سپارم. کوم خلقو چه زما ملک باندې اعتماد اُوکړو او دلته د پناه اُخستلو دپاره راغلل نو زه د هغوئ سره بې وفائي نه شم کولے. اول به زه هغوئ راغواړم او تحقیق به کوم چه دا دوئ د هغوئ په باره کښې څه وائي چه د دې حقیقت څه دے" نو نجاشي بادشاه د رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحاب خپل دربار ته رااُوغوښتل.

د نجاشي په پیغام ټول مهاجر راجمع شول او په خپلو کښې ئې مشوره اُوکړه چه بادشاه ته به څه وایو. آخر دا په اتفاق سره دا فیصله اُوکړه چه نبي صلی الله علیه وسلم کوم تعلیم مونږ له راکړے دے مونږ خو به هغه پوره په پوره پېش کوو، خواه که نجاشي مونږه د وطن نه اُوباسي او که نه ئې اُوباسي. چه دربار ته اُورسېدل نو نجاشي بادشاه تر ټولو نه اول تپوس اُوکړو چه "دا تاسو څه کړي دي چه د خپل قوم دین مو پرېښودو او زما په دین کښې هم داخل نه شوئ او نه مو د بل یو زوړ دین نه کوم یو دین اختیار کړو؟ آخر دا ستاسو نوے دین څه دے؟" د مهاجرو د طرف نه جعفر بن ابي طالب په هغه وخت تقریر اُوکړو، اول ئې د جاهلیت د زمانې دیني او اخلاقي خرابي بیان کړه، بیا ئې

دَ نبی صلی اللہ علیہ وسلم ذکر اُوکړو او وے وئیل چه هغهٔ دا تعلیمات پیش کوی. بیا ئے دَ مفظالمونو ذکر اُوکړو کوم چه قریشو دَ نبیؐ په ملګرو باندې کولو، او خپل تقریر ئے په دے خبره باندې ختم کړو چه دَ ورو ملګرو په ځائے موږ ه ستا ملک ته په دے اُمید راغلو چه دلته به په موږ باندې ظلمونه وی. نجاشی چه دا تقریر واوریده نو وے وئیل چه هغه کلام خو لږ شان ماته هم واورَوه کوم چه تاسو وائیئ چه دَ خدائے دَ طرفه ستاسو په نبیؐ باندې نازل شوے دے. په جواب کښے ورته حضرت جعفرؓ دَ سورۃ مریم هغه اولنئ حصه واورولے کومه چه دَ حضرت یحیٰی او دَ حضرت عیسیٰ علیهما السلام سره تعلق لری. نجاشی بادشاه دغه کلام اوریدو او ژړل ئے اَن تر دے چه په ږیره ئے لَمدہ شوه. هر کله چه حضرت جعفرؓ تلاوت ختم کړو نو نجاشی اُووئیل چه یقیناً دا کلام او کوم چه عیسیٰؑ راوړے وو دواړه دَ یوے چینے نه راوتلی دی، قسم په خدائے زهٔ تاسو دوی ته نهٔ حواله کوم."

بله ورځ عمرو بن العاص نجاشی بادشاه ته اُووے چه "لږ شان خو دا خلق راوُغواړه او دا تپوس تر اُوکړه چه دَ عیسیٰ بن مریمؑ په باره کښے دَ دوی څه عقیده ده. دا خلق دَ هغهٔ په حقله یوه غټه خبره کوی". نجاشی بادشاه بیا مهاجرین راوُغوښتل. مهاجرینو ته دا اول نه دَ عمرو دَ سازش پته لګیدلی وه. هغوئی راجمع شو او بیا ئے مشوره اُوکړه چه که چرے نجاشی دَ حضرت عیسیٰؑ په باره کښے تپوس اُوکړو نو څه جواب به ورکوو؟ وخت ډیر نازک وو او ټول په دے خبره ډیر پریشان وو. خو بیا هم دَ رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم صحابو دا فیصله اُوکړه چه څه کیږی نو کیږی دِ، موږ به هغه خبره کوو کومه چه اللہ فرمائیلی ده او دَ اللہ رسول موږ ته ښودلی ده. کله چه دوی دربار ته لاړل او نجاشی تر دَ عمرو بن العاص هغه تپوس اُوکړو نو جعفر بن ابی طالب پاسیدو او بوړا ئے اُووے چه "هو عبد اللہ ورسولہ وروحہ وکلمتہ القاها الی مریم العذراء البتول" "هغه دَ اللہ بنده او دَ اللہ رسول دے او دَ اللہ دَ طرفنه یو روح او یو کلمه ده چه په پیغله مریم کښے ئے واچوله." نجاشی چه دا واوریدل نو دَ زمکے نه ئے یو دکے راُوچت کړو او وے وئیل "په خدائے مِ قسم دے، چه تاسو وئیلی دی، عیسیٰؑ دَ هغے نه دده دکی هومره هم زیات نهٔ وو." دَ دے نه روستو نجاشی دَ قریشو تحفے واپس کړے او وے وئیل چه زهٔ رشوت نهٔ اخلم او مهاجرینو ته ئے اُووئیل چه تاسو بالکل په اطمینان سره اوسئ.

**موضوع او مضمون** دَ دے تاریخی حالاتو سره چه کله موږ دے سورۃ ته ګورو نو په دے کښے دَ تولو نه اول دا خبره زمونږ مخے ته راځی چه اګر که مسلمانان مظلومان وو او دَ ظلم دَ وجے نه ئے خپل وطن پریښودلو او بل وطن ته تلل، خو په دے حالت کښے هم اللہ تعالیٰ هغوئی له دَ دین په معامله کښے دَ ذرے هومره دَ سستئ کولو تعلیم ورنهٔ کړو، بلکه دَ تلو په وخت کښے ئے ورله دا سورت دَ توښے په طور ورکړو چه دَ عیسایانو په ملک کښے دَ عیسیٰ علیه السلام صحیح حیثیت

پیش کړي او دا نه خبره نه صفا صفا انکار اوکړي چه هغه د الله څوی دے.

په اولنو دوو رکوعګانو کښې د حضرت یحیٰیؑ او د حضرت عیسٰیؑ قیصه شوی ده، بیا ورپسې په دریمه رکوع کښې د هغې وخت د حالاتو په مناسبت سره د حضرت ابراهیمؑ قیصه اوروله شوی ده ځکه چه په دغسې حالاتو کښې هغه هم د خپل پلار او د خپل خاندان او د خپل وطن د خلقو د ظلم نه تنګ شوے وو او د وطن نه بهرته تلے وو. د دے قیصے نه یو طرفته د مکے کافرانوته دا سبق ورکړے شوے دے چه نن کومو مسلمانانو هجرت کړے دے د دوی حیثیت د ابراهیمؑ پشان د او ستاسو حیثیت د هغه ظالمانو پشان دے چه ستاسو پلار او پیشوا حضرت ابراهیم علیه السلام ئے د کور نه ایستلے وو. بل طرفته مهاجرینوته دا زیره ورکړے شوے دے چه لکه څنګه ابراهیم علیه السلام د وطن نه په وتلو سره تباه نه شو بلکه نور هم زیات عزتمند شو هم دغسې به انجام ستاسو وی.

د دے نه روستو په څلورمه رکوع کښې د نورو پیغمبرانو ذکر شوے دے، د هغې مقصد دا دے چه ټولو پیغمبرانو هم هغه دین راوړے وو کوم چه محمد صلی الله علیه وسلم را وړے دے، خو د پیغمبرانو د تلو نه روستو د هغوی امتونه خراب شول، او نن چه په دے مختلفو امتونو کښې کوم ګمراهیانے نیکاری دا د دے خرابوالی نتیجه ده.

په آخری دوو رکوعګانو کښې د مکے د کافرو په ګمراهو باندے سخت تنقید شوے دے او د کلام د ختمولو په وخت کښې مومنانوته دا خوشخبری ورکړے شوی ده چه د حق د دوشمنانو د ټولو کوششونو با وجود به تاسو ګرانه او بهترینه مخلوق یئ.

---

آیاتها ۹۸ — سُوْرَةُ مَرْيَمَ مَكِّيَّةٌ — رکوعاتها ۶

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

كٓهٰيٰعٓصٓ ﴿۱﴾ ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ﴿۲﴾ اِذْ نَادٰى
رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ﴿۳﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّىْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّىْ وَاشْتَعَلَ
الرَّاْسُ شَيْبًا وَّلَمْ اَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ﴿۴﴾ وَاِنِّىْ خِفْتُ الْمَوَالِىَ

ک، ہ، ی، ع، ص. ذکر دے دَ هغه رحمت چه ستا رب په خپل بنده زکریا باندې کړے وُو، کله چه هغه خپل رب ته پټ پټ آواز اُوکړو.
هغهٔ عرض اُوکړو اے پروردګاره، زما هډوکې کمزورې شوې دي او سرِ مې د بوډاوالي د وجې نه سپین پړق شوے دے. اے پروردګاره، ما چه کله ستا نه دُعا غوښتې ده نو نامراده پاتې شوے نه يم. ماسره زمانه روستو د خپلو ورنړو عزیزانو د بد عملۍ

له دَ تقابل دَ پاره دَ سورة آل عمران څلورم رکوع دَ نظر و باندې ساتل پکار دي، په هغې کښې دا قصه په بله طریقه بیان شوې ده. (تفهیم القرآن اول جلد صفحه ۲۴۶ - ۲۵۰).

سله دا حضرت زکریا دَ حضرت هارون دَ خاندان نه وُو. دَ دهٔ دَ حیثیت پیژندلو دَ پاره ضروری ده چه سړے دَ بنی اسرائیلو په نظامِ کهانت Priesthood دَ غیبو خبرے کول) باندې ځان پوه کړي. بنی اسرائیلو چه په فلسطین باندې قبضه اُوکړه نو ټول ملک ئے دَ حضرت یعقوب په اولاد باندې په دولسو قبیلو کښې تقسیم کړو، او دیارلسمه قبیله (یعنی دَ لاوي بن یعقوب کورنۍ) ئے دَ مذهبی خدمت دَ پاره خاص کړله. بیا په بنی لاوي کښې هم هغه خاندان چه په مقدس کښې ئے دَ خداوند ته دَ بخور یعنی دَ خوشبویه څیز سوزولو خدمت" کولو، او" دَ پاکو څیزونو دَ پاکئ بیانولو کار" ئے کولو، هغه په اصل کښې دَ حضرت هارون خاندان وُو. باقی نور بنی لاوي خلق به مقدس ته دننه نهٔ شو تللې بلکه دَ خدا وند دَ کور دَ خدمت کولو په وخت کښې به ئے په انګنړ او کمرو کښې کار کولو، دَ خالی په ورځ او دَ اخترونو په موقعو باندې به ئے دَ سوزیدو قربانئ کولے، او دَ مقدس په حفاظت کولو کښې به ئے دَ بنی هارون سره امداد کولو.
دَ بنی هارون څلیر ذیشت خاندانونه وُو چه وار په وار به دَ مقدس دَ خدمت دَ پاره حاضریدل. په دې خاندانونو کښې یو خاندان آبیاه وُو چه دَ هغې سردار حضرت زکریا وُو. چه کله به دَ دوی دَ خاندان نمبر وُو نو دوی به مقدس ته تللو او دَ خداوند په دربار کښې به ئے دَ بخور یعنی دَ خوشبویه څیزونو سوزولو کار کولو. (دَ تفصیل دَ پاره اُوګوره دَ بائیبل کتاب تواریخ ا ول. باب ۲۳ و ۲۴).

مِنْ وَّرَآءِیْ وَكَانَتِ امْرَاَتِیْ عَاقِرًا فَهَبْ لِیْ مِنْ لَّدُنْكَ وَلِیًّا ۝٥
یَّرِثُنِیْ وَیَرِثُ مِنْ اٰلِ یَعْقُوْبَ ۖ وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِیًّا ۝٦ یٰزَكَرِیَّآ
اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ ِۨاسْمُهٗ یَحْیٰی لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِیًّا ۝٧
قَالَ رَبِّ اَنّٰی یَكُوْنُ لِیْ غُلٰمٌ وَّكَانَتِ امْرَاَتِیْ عَاقِرًا وَّقَدْ بَلَغْتُ
مِنَ الْكِبَرِ عِتِیًّا ۝٨ قَالَ كَذٰلِكَ ۚ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَیَّ هَیِّنٌ وَّقَدْ
خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَیْـًٔا ۝٩ قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّیْۤ اٰیَةً ؕ

[3] ېره ده، او زما ښځه شنډه ده. نو ماله په خپل خاص فضل سره یو وارث راکړه چه زما وارث هم شي او د یعقوب د اولاد وارث هم شي [4] او اے پروردګاره، دے یو غوره انسان کړه [5]
(جواب ورکړے شو) "اے زکریا، مونږه تاله د یو هلک زیرے درکوو چه د هغه نوم به یحیٰی وي. مونږه په دے نوم مخکښے هیڅوك پیدا کړے نه دے [6]"
عرض ئے اوکړو، "اے پروردګاره، زما به څنګه څوے اوشي چه ښځه مې شنډه ده او زه د بوډا والی نه وچ شوے یم؟"
جواب ورته ملاؤ شو "هم دغسے به کیږي. ستا رب فرمائي چه دا خو زما د پاره یو معمولي شان خبره ده، آخر د مه نه مخکښے ما ته پیدا کړے یے چه ته هرو هیڅ څیز نه وے [7]"
زکریا اُووے، "پروردګاره، زما د پاره څه نښه مقرر کړه"

[3] مطلب دا دے چه د انبیاء په خاندان کښے زما نه دوستو څوك دا سے په نظر نه راځي چه هغه په دیني او اخلاقي حیثیت سره د هغے منصب قابل وي کوم منصب چه ما سنبال کړے دے. روستو چه کوم نسل را روان دے د هغوی طور طریقے خرابے شوی دي.
[4] یعني زه یواځے د خپل ذات وارث نه غواړم بلکه د یعقوب د خاندان د نیکو عادتونو وارث غواړم.
[5] د لوقا په انجیل کښے دا الفاظ دي: "ستا په خاندان کښے د چا دا نوم نشته" (۱: ۶۱)
[6] د حضرت زکریا په دے تپوس او د فرښتے په دے جواب باندے غور اُوکړئ، څکه چه وراندے د حضرت مریم په قیصه کښے بیا دا خبره راځي او د دے چه د لته څه مطلب دے هم هغه مطلب ئے هلته هم دے. حضرت زکریا اُووے چه زه بوډا یم او زما ښځه شنډه ده، زما به هلك څنګه اُوشي. فرښته ورله جواب ورکړو چه "هم دغسے به کیږي" یعني اګر چه ته

قَالَ اٰیَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ لَیَالٍ سَوِیًّا ﴿۱۰﴾ فَخَرَجَ عَلٰی قَوْمِهٖ
مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰۤی اِلَیْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّ عَشِیًّا ﴿۱۱﴾

الله اُوفرمايل ستا دَپاره نښه دا ده چه ته به مسلسل درې ورځې دَخلقو سره خبرې نشې کولے نو هغه دَ محراب[۵] نه راؤوتو او خپل قوم ته راغے او په اشاره سره ئې ورته هدايت اُوکړو چه سحر او ماښام تسبيح وايئ.[۶]

بوډا ئے او ستا ښځه شنډه ده خو ستا به هلک کيږي. او بيائے ورله دَ الله دَ قدرت حواله ورکړه چه کوم خدائے ته دَ نشت نه شته کړے دَ هغهٔ دَ قدرت نه دا بهر خبره نه ده چه ستا غوندې دَ بوډا سړي نه او داسې ښځې نه اولاد پيدا کړي چه هغه ټول عمر شنډه وي.

[۵] دَ محراب دَ تشريح دَ پاره اُوګوره تفهيم القرآن اول جلد، آلِ عمران، حاشيه ۳۶.

[۶] دَ دې واقعې چه کوم تفصيلات دَ لوقا په انجيل کښې بيان شوي دي هغه موږ دلته نقل کوو چه دَ خلقو په علم کښې دَ قرآن دَ روايت سره مېچ روايت هم وي. په منځ منځ کښې چه په دَوو توسونو کښې کوم عبارت دے هغه زموږ خپل عبارت دے.

"دَ يهوديه هيروديس نومے بادشاه په زمانه کښې (اُوګوره تفهيم القرآن دويم جلد، بني اسرائيل حاشيه ۹) دَ ابياه دَ ډلے نه زکريا نومے يو کاهن (يعنې دَ پيريانو پذريعه دَ غيبو خبرو ښودونکے) وو او دَ هغهٔ ښځه دَ هارون دَ اولاد نه وه او دَ هغې نوم اليشبع (Elizabeth) وو. او دواړه دَ خدائے په دربار کښې رېښتوني او دَ خدائے په حکمونو او قانون باندې صحيح تلونکي وو. او دَ دوي اولاد نه وو ځکه چه اليشبع شنډه وه او دواړه بوډا کان وو. هر کله چه هغهٔ کښې ډلے په وارباندې دَ خدائے په دربار کښې دَ کهانت کار (يعنې دَ غيب ګوئي يا دَ فالونو کتلو کار) کولو نو دا ئے وشوه چه دَ کهانت دَ دستور مطابق دَ هغهٔ دَ نوم خسترے راأوتو چه دَ خداوند مقدس ته ورلاړ شي او خوشبوئي دِ لوګے کړي. او دَ خوشبوئي دَ لوګي کولو په وخت کښې ټول خلق بهر دُعا کوله چه دَ خداوند فرښته دَ خوشبوئي دَ مذبح ښي طرفته ولاړه وه او هغهٔ ته ښکاره شوه. او زکريا چه هغه اُوليده نو اُو ېرېدو او ورخطائي پرې راغله. خو فرښتې ورته اُووے اے زکريا، مه ېرېږه ځکه چه ستا دُعا اوريدلے شوه (دَ حضرت زکريا دَ دُعا ذکر به بائيبل کښې چرته نشته) او ستا به ستا دَ ښځې اليشبع نه ځوئے وي. دَ هغهٔ نوم يوحنا (يعنې يحيٰی) کيږده او تا ته به خوشحالي وي او ډير خلق به دَ هغهٔ دَ پيدا کيدو په وجه خوشحاله وي ځکه چه هغهٔ به دَ خدائے په دربار کښې بزرګ وي (په سورة آلِ عمران کښې دَ دے دَپاره لفظ سَیِّدًا استعمال شوے دے) او هرګز به نهٔ شراب څکي او نهٔ به دَ شرابو دَ قسمه نور څه (تَقِیًّا) او دَ خپلې مور دَ خيټې نه به دَ روح القدس نه ډکيږي (وَاٰتَیْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِیًّا)

يٰيَحْيٰى خُذِ الْكِتٰبَ بِقُوَّةٍ ۗ وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا ﴿۱۲﴾ وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا

"اے یحیٰی، دَ خُدائے کتاب مضبوط اُونیسه ۹"

مونږ هغهٔ له په ورکوالی کښې "حُکم" ۱۰ ورکړو، او دَ خپل طرفه مو ورله دَ زړهٔ نرموالے ۱۱

او د بنی اسرائیل به خداوند طرفته راواوګرځوی - او هغه به دَ ایلیاه (الیاس علیه السلام) په روح او قوت کښې دَ هغه نه وړاندې وړاندې ځی دَپاره دَ دے چه دَ پلارانو زړونه اولاد طرفته راواوګرځوی او نافرمانه خلق دَ رښتینو خلقو په پوهه باندې تللو ته راواوګرځوی او دَ خداوند دَپاره یو تکړه قوم تیار کړی۔"

"زکریا فرښتے ته اُووے چه زهٔ په دے خبره څنګه پوهه شم؟ ځکه چه زهٔ بوډا یم او زما ښځه بوډۍ ده۔ فرښتے ورته اُووے چه زهٔ جبرئیل یم چه دَ خدائے په دربار کښې ولاړ یم او دَ دے دَپاره رالیږلے شوے یم چه ستا سره کلام اُوکړم او تاله دَ دے خبر و زیرے درکړم۔ او ګوره چه دَ کومے ورځے پورے دا خبره شوی نهٔ وی نو ته به چپ ئے او وئیلے به نهٔ شے ځکه چه تا زما په هغه خبرو باور نهٔ کړو کوم چه به په خپل وخت باندې پوره کیږی۔ (دا بیان دَ قرآن نه مختلف دے۔ قرآن دے ته نښه وائی او دَ لوقا روایت دے ته سزا وائی۔ دا رنګے قرآن وائی چه صرف دریے ورځے به خاموشه ئے او لوقا وائی چه دَ هغے وخت نه واخله دَ حضرت یحیٰی دَ پیدائیدو پورے حضرت زکریا ګونګے وُو) او خلقو دَ زکریا لارے ته کتل او تعجب ئے کولو چه دهٔ په مقدس کښې ولے ناوخته کړو۔ کله چه هغه بهر راووَتو نو خبرے ئے نهٔ شوے کولے۔ نو هغوئ معلومه کړه چه دهٔ په مقدس کښے رویا (خوب) لیدلے دے، او هغه هغوی ته اشارے کولے او ګونګے وُو۔" (لوقا۔ باب ۱۔ آیت ۵ تا ۲۲)۔

۹ په منځ کښے دا خبره پاتے شوی ده چه دَ الله تعالیٰ دَ دے فرمان مطابق حضرت یحیٰی پیدا شوا او دَ ځوانئ عمر ته اُورسیدو۔ اُوس دا وئیلے کیږی چه کله هغه ځوانئ ته اُورسیدو نو دَ هغه نه څهٔ کار واخستلے شو۔ دلته صرف په یوه فقره کښې هغه مقصد بیان کړے شوے دے کوم چه دَ پیغمبرئ دَ وخت نه هغه ته حواله کړے شوے وُو۔ یعنی چه هغهٔ به خپله په تورات باندې مضبوط وی او دا کوشش اُوکړی چه بنی اسرائیل پرِ مضبوط پاتے شی۔

۱۰ "حکم" یعنی دَ فیصلے کولو قوت، دَ اجتهاد قوت، په دین کښې پوهه، په معاملاتو کښې دَ صحیح رائے قائمولو صلاحیت او په معاملاتو کښې دَ الله دَ طرفه دَ فیصلے کولو اختیار۔

۱۱ په اصل کښې لفظ حَنَان استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے تقریبًا دهٔ "دَ مور د مینه"۔ یعنی دَ خپلے مور چه کومه بے کچه مینه دَ خپل اولاد سره وی، او دَ هغه مینے په وجه دَ بچی دَ هر تکلیف سره بے قراره وی، هم دغسے مینه دَ حضرت یحیٰی په زړهٔ کښې دَ خدائے دَ مخلوق سره پیدا کړے شوه۔



وَزَكٰوةً ۗ وَكَانَ تَقِيًّا ﴿۱۳﴾ وَّبَرًّا بِوَالِدَيْهِ وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿۱۴﴾
وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوْتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿۱۵﴾

او پاکیزگي ورکړه، او هغه ډیر پرهیزګار او د خپل مور او پلار حق شناس وو. هغه جبار نه وو او نه نافرمان وو. سلام دې وي په هغه باندې چه په کومه ورځ پیدا شو او چه په کومه ورځ هغه مړ شي او چه په کومه ورځ هغه دوباره ژوندے را پاسولے شي[۱۲] ع

[۱۲] د حضرت یحیٰی چه کوم حالات په مختلفو انجیلونو کښې خواره واره پراته دي هغه مونږ دلته راجمع کوو او د هغه د پاک سیرت یوه نقشه پیش کوو. د مه نقښے نیم د سورۃ آلِ عمران او د دے سورۃ وضاحت اوشي.

د لوقا د بیان مطابق حضرت یحییٰ د حضرت عیسیٰ نه شپږ میاشتے مشر وو. د هغه مور او د حضرت عیسیٰ مور په خپلو کښې رشته دارانے وے. تقریباً د دیرشو کالو په عمر کښې هغه پیغمبر شو او د یوحنا د روایت مطابق هغه د شرق اُردن په علاقه کښې د دعوت الی الله کار شروع کړو. هغه به وئیل:

"زۀ په بیابان کښې د یو آواز کوونکي آواز یم چه تاسو د خداوند لاره سیده کړئ" (یوحنا ۱ : ۲۳)

د مرقس بیان دے چه هغه به په خلقو باندې د ګناهونو نه توبه ایستله او د توبے نه روستو به ئے ورله غسل ورکولو چه روح او بدن ئے دواړه پاک شي. د مے غسل ورکولو ته "بپتسمه" وائي. د یهودیه د علاقے او د یروشلم د علاقے ډیر خلق د هغۀ مرید ان شوي وو او هغه به هلته تلو او هغوی له به ئے غسل ورکولو. (مرقس ۱ : ۴ - ۵). په دے وجه د هغه نوم یوحنا بپتسمه (غسل) ورکونکے (John the Baptist) مشهور شوے وو. بني اسرائیلو عام طور د هغه پیغمبري منلې وه (متی ۲۱ : ۲۶) د مسیح علیه السلام قول دے چه "کوم بچي د ښځو نه پیدا شوي دي په هغوی کښې د یوحنا بپتسمه (غسل) ورکونکي نه لوئي هیڅوک نشته" (متی ۱۱ : ۱۱).

هغۀ به د اُوښ د ورېښو جامے اغوستلے وے، او د څرمنے پټه به ئے ملا تړلې وه، او د هغه خوراک ملخان او د ځنګل شهد وو (متی ۳ : ۴). دا د فقیرۍ ژوند به ئے تیرولو او آواز به ئے کولو چه "توبه اُوباسئ ځکه چه د آسمان بادشاهي نزدے راغلې ده" (متی ۳ : ۲) یعنی د مسیح علیه السلام پیغمبري شروع کیدونکې ده. په دے وجه هغۀ ته عام طور د حضرت مسیح "ارهاص" وئیلے کیږي، او هم دا خبره د هغه په حقله په قرآن کښې وئیلے شوې ده چه مُصَدِّقًۢا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ (آلِ عمران = ۳۹)

هغۀ به خلقو ته د روژو نیولو او د مونځ کولو نصیحت کولو (متی ۹ : ۱۴ - لوقا ۵ : ۳۳ - لوقا ۱۱ : ۱).

هغه به خلقو ته وئیل چه "د چا سره دوه قمیصونه وي نو هغه دے د هغه چا سره تقسیم کړي چه د چا سره نه وي او چه د چا سره خوراک وي هغه دے هم داسے اُوکړي". محصول اخستونکو تپوس اُوکړو چه اُستاذ مونږ څه اُوکړو نو هغۀ ورته اُوفرمائیل "چه څه ستاسو د پاره مقرر دي د هغے نه زیات مۀ اخلئ". سپاهیانو تپوس اُوکړو زمونږ د پاره څه هدایات دي؟ هغۀ اُوفرمائیل "مۀ په چا ظلم کوئ

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ ۘ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا ﴿۱۶﴾
فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُونِهِمْ حِجَابًا ۫ فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا

او اے محمدؐ، په دے کتاب کښے دَ مریم حال بیان کړه،[۱۳] هر کله چه هغه دَ خپلو خلقو نه جدا شوه او یو طرفته مشرق ته یو ځاے ته ناسته وه. په دغه حالت کښے موږ هغے ته خپل رُوح (یعنی فرښته) اولیږله او هغه (فرښته) دَ هغے په مخ کښے دَ یو پوره انسان

اومه نا حقه دَ چا نه څه اَخلئ او په خپله تنخواه باندِ گزاره کوئ" (لوقا ۳: ۱۰-۱۴). دَ بنی اسرائیلو خراب شوی او بے لارے عالمان، فریسیان او صدوقیان چه ورله کله دَ غسل دَ پاره راغلل نو هغه ورته اُوفرمائیل "اے دَ مارانو بچو! تاسو ته چا اُووئیل چه دَ راتلونکی غضب نه وتختئ؟ ...... په خپلو زړونو کښے دَ دے وینا خیال مه کوئ چه ابراهام زمونږ پلار دے ...... اُوس دَ ونو په جرړو باندِ تبر کیښودلے شوے دے، چه کومه ونه ښه میوه نه نیسی هغه پریکړے کیږی او اور ته غورزولے کیږی" (متی ۳: ۷-۱۰).

دَ یحیٰی په زمانه کښے یو یهودی بادشاه وُو چه نوم ئے هیرود اینتی پاس وُو. دَ دے بادشاه په ریاست کښے یحیٰی دَ دعوتِ حق کار کولو. هیرود اینتی پاس په رومی تهذیب کښے غرق وُو او دَ هغه په وجه په ټول ملک کښے گناه خوریده. هغه دَ خپل رُور فلپ ښځه هیرود یاس په خپل کور کښے ساتلی وه. حضرت یحیٰی په دے خبره باندِ هیرود ملامته کولو او دَ هغه دَ دے گناه خلاف ئے آواز اُوچت کړو. دَ دے جرم په وجه هیرود بادشاه حضرت یحیٰی اُونیوُو او جیل ته ئے اُولیږو. خو بیا هم هغه ته حضرت یحیٰی یو پاک او رښتینی سړے ښکاریده او دَ هغه احترام او عزت به ئے کولو. په خلقو کښے دَ حضرت یحیٰی دیر عزت اُو وُو، دَ دے اثر دَ وجه نه هم بادشاه یریدلو (وسزا ئے نه ورکوله). لیکن دَ هیرودیاس ښځے دا خیال وُو چه یحیٰی علیه السلام کوم اخلاقی روح په خلقو کښے اچوی نو په دے سره هغه دَ خلقو په نظر کښے دَ هغے پښتانه ښځے ذلیله کوی. په دے وجه هغه ښځه دَ یحیٰی په مرګ پسے ورپسے شوه. آخر دا چه کله دَ هیرود په سالګره باندِ جشن کیدو نو هغے له موقع پلاس ورغلله. دَ جشن په دربار کښے دَ هغے لُور بنه ګډه شوه او دَ هغے په ګډا باندِ بادشاه هیرود خوشحاله شو او ورته ئے اُووے چه ته څه غواړے هغه اُوغواړه. لُور دَ خپلے بدکارے مور نه تپوس اُوکړو چه څه اُوغواړم؟ مور ورته اُووے چه دَ یحیٰی سر اُوغواړه. نو لُور ئے دَ هیرود مخے ته لاس اُونړلو او عرض ئے اُوکړو چه ماله دَ یوحنا بپتسمه ورکونکی سر په یو تالی کښے اُوس دا اُوغواړه. هیرود بادشاه چه دا واوریدلو نو دیر غمګین شو، خو دَ خپلے محبوبے دَ لُور خبره ئے نه شوه غورزولے. هغه فوراً دَ قید خانه نه دَ یحیٰی علیه السلام پریکړ سر راوُغوښتو او په یو تالی کښے ئے کیښودو او دے ته ئے په تند راغلے کښے پیش کړو (متی ۱۴: ۳-۱۲، مرقس ۶: ۱۷-۲۹، لوقا ۳: ۱۹-۲۰).

[۱۳] دَ تقابل دَ پاره اُوګورہ تفهیم القرآن اول جلد، آلِ عمران، حاشیه ۴۲، ۵۵. النساء، حاشیه ۱۹۰-۱۹۱-

بَشَرًا سَوِيًّا ﴿۱۷﴾ قَالَتْ إِنِّىٓ أَعُوذُ بِٱلرَّحْمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيًّا ﴿۱۸﴾
قَالَ إِنَّمَآ أَنَا۠ رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَٰمًا زَكِيًّا ﴿۱۹﴾ قَالَتْ أَنَّىٰ
يَكُونُ لِى غُلَٰمٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِى بَشَرٌ وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا ﴿۲۰﴾ قَالَ كَذَٰلِكِ
قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَىَّ هَيِّنٌ ۖ وَلِنَجْعَلَهُۥٓ ءَايَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً مِّنَّا ۚ

په شکل کښې ښکاره شو.

مریم ورته زر اُووے چه "که ته د خدائے نه یرید ونکے سړے یې نو زه ستا نه په رحمٰن ورپناه غواړم" هغهٔ ورته اُووے "زه خو ستا د رب استازے یم او د دے د پاره رالیږلے شوے یم چه تا له یو پاکیزه هلک درکړم."

مریم اُووے "زما به څنګه هلک اُوشی چه یو بشر ماله کوتے قدر له راورې نه دی او زه څه بد کاره ښځه نه یم."

فرښتے اُووے "هم دغسے به کیږی، ستا رب فرمائی چه داسے کول زما د پاره ډیر آسان دی. او مونږ به دا ځکه کوو چه هغه هلک ته خلقو د پاره یوه نښه وګرځوو[۱۵] او د خپل طرف نه یو رحمت

[۱۴] په سورة آلِ عمران کښے دا ویلی شوی دی چه مریم خپلے مور د خپلے نذر رانغه مطابق په بیت المقدس کښے د عبادت د پاره کینولی وه او حضرت زکریا ته هغے د حفاظت او د هغے د پالنے ذمه اغستلی وه. هلته دا ذکرهم تیر شوے ئے چه حضرت مریم د بیت المقدس په یو محراب کښے په اعتکاف کښے ناسته وه. اوس دلته دا ویلے کیږی چه په کوم محراب کښے حضرت مریم د اعتکاف د پاره ناسته وه هغه محراب د بیت المقدس مشرقی اړخ ته وو او هغے د عامو اعتکاف کوونکو په شان یوه پرده زوړنه کړې وه او خپل ځان ئے د خلقو د نظر نه محفوظ کړے وو. کوم خلقو چه صرف د بائیبل په وجه د مکا نا شرقیا نه مراد ناصره اغستلے ده هغوی غلطی کړی ده، ځکه چه ناصره د یروشلم نه شمال کښے ده نه چه مشرخا ته ته.

[۱۵] لکه څنګه چه مونږه په حاشیه نمبر ۶ کښے اشاره کړی ده، چه د حضرت مریم په حیرانتیا باندې د فرښتے دا ورنا چه "هم دغسے به کیږی" د دے هرګز دا مطلب نه شی کیدے چه بشر به تا له کوتی درورې او د هغے نه به ستا هلک پیدا کیږی، بلکه د دے صفا مطلب دا دے چه ستا به هلک پیدا کیږی اګر چه یو بشر تا له کوتی نه دی درورې. ترو هم په دغسے الفاظو سره د حضرت زکریا حیرانتیا نقل کړے شوی ده او فرښتے هم دغه جواب ورکړے دے. ښکاره خبره ده چه کوم مطلب د دے جواب هلته دے هغه دلته هم دے. دغه شان د سورة ذاریات په آیت ۲۸ - ۳۰ کښے چه کله فرښتے حضرت ابراهیمؑ ته د ځوی د زیږولو زیرے ورکوی او حضرت ساره وائی چه زما بوډئ او شنډې به ځوے څنګه اُوشی نو فرښتے ورله جواب ورکوی چه "کَذٰلِکَ" - "هم دغسے به وی". ښکاره خبره ده چه د دے نه مراد د بوډا والی او د شنډ والی باوجود د هغے اولاد کیدل دی

وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴿٢١﴾ فَحَمَلَتْهُ فَانتَبَذَتْ بِهِ مَكَانًا قَصِيًّا ﴿٢٢﴾
فَأَجَاءَهَا الْمَخَاضُ إِلَىٰ جِذْعِ النَّخْلَةِ قَالَتْ يَا لَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ
هَٰذَا وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا ﴿٢٣﴾ فَنَادَاهَا مِن تَحْتِهَا أَلَّا تَحْزَنِي قَدْ
جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴿٢٤﴾ وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ

او دا کار به خامخا کیږي"

د مريم د غه بچي په ګېډه شوا و دغې حمل سره هغې ولرې ځای ته لاړه. بيا هغې بيا کيدو د دردونو په وجه د يو مکورې ونې ته را اورسيدله. هغې اوويل "ارمان دے چه زه د دے نه مخکښې مړه شوې وے او زما نوم نشان نه وے پاتې شوے." فرښته ورته د ښکته طرفه آواز وکړو چه "غم مه کوه. ستا رب ستا لاندې يوه چينه روانه کړې ده او ته لږ شان د دے ونې ډډ او خوزوه، تا ته به تازه تازه

د دے نه علاوه که چرے ک کَذٰلِكَ نه دا مطلب واخستے شي چه بشر به تا له کوم د روږي او ستا په هغه طريقې بچے کيږي لکه څنګه چه په ټوله دنيا کښې د عام ډول کيږي، نو بيا روستنې دواړه فقرے بے مطلبه کيږي په دے صورت کښې د دے ويلو څه ضرورت پاتې کيږي چه ستا رب وائي چه دا ما له کول زما د پاره ډير آسان دي، او دا چه مونږه غوارو چه دا هلک يوه نښه او ګرځوو. د "نښه" دا لفظ دلته صريحاً د معجزے په معنی کښې استعمال شوے دے، او په دے معنی باندې دا فقره هم دلالت کوي چه "دا ما له کول زما د پاره ډير آسان دي." نو د دے محکم مطلب بغير د دے نه بل هيڅ نه دے چه مونږه غوارو چه دا هلک د يو معجزے په حيثيت سره بني اسرائيلو ته پيش کړو. روستو چه بيا کوم تفصيلات بيان شوي دي هغه پخپله د دے خبرے تشريح کوي چه حضرت عيسیٰ عليه السلام څنګه د معجزے په طور پيش کړے شو.

۱۷ د لرے ځائے نه مراد بيت لحم دے. حضرت مريم چه د خپل اعتکاف نه را او وتله او هلته لاړه نو دا يو قدرتي خبره وه. د بني اسرائيلو پاک کورنۍ د بني هارون جينۍ، او بيا هغه جينۍ چه په بيت المقدس کښې د خدائے د عبادت د پاره وقف شوي ناسته وه، هغه ناساپه حامله شوه. په دے حالت کښې که چرے هغه پخپل ځائے په اعتکاف کښې ناسته پاتې شوي وے او خلقو ته دا پته لګيدلی وے چه حامله شوي ده نو يوازے د خپل خاندان خلقو به نه، بلکه د ټول قوم نورو خلقو به هم د هغې ژوند سخت کړے وُو. هغه په دے سخت آزميښت کښې اخته شوي وه. او د دے وجے نه هغه په خاموشۍ سره د خپل اعتکاف د کمرے نه را اووتله چه ترڅو پورے د الله مرضا پوره شوي نه وي نو چه د هغې پورے خو د قوم د لعنت ملامت نه او د عاصيد نامئ نه بچ شي. دا واقعه پخپله د دے واقعے يو غټ دليل دے چه حضرت عيسیٰ عليه السلام بغير پلاره پيدا شوے وُو. که چرے هغه واده شوي وے او بچے يے

رُطَبًا جَنِيًّا ﴿٢٥﴾ فَكُلِي وَاشْرَبِي وَقَرِّي عَيْنًا ۖ فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ
أَحَدًا فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنْسِيًّا ﴿٢٦﴾
فَأَتَتْ بِهِ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُ ۖ قَالُوا يَا مَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْئًا فَرِيًّا ﴿٢٧﴾
يَا أُخْتَ هَارُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ امْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾

کجورې را اُوغورزیږي. بس ته خوره او څکه او خپلې سترګې يخې کړه. بیا که چرې څوک سړے تا ته په نظر راشي نو هغهٔ ته اُووايه چې ما د رحمٰن د پاره د روژے نذر منلے دے، نو زهٔ به نن د چا سره خبرې[۱۸] نه کوم".

بيا هغې خپل بچے راغستے وو او خپل قوم ته راغله. خلقو اُووے "اے مریم، دا تا خو ډیر ناآشنا او بې ځایه کار اوکړو. اے د هارون خور[۱۹]، نهٔ ستا پلار بد سړے وو او نهٔ ستا مور شرمېدونکې (بدکاره) ښځه وه".

د خاوند نه وې نو بیا ولې د مونږ کور ته یا د مخکور ته نهٔ تلله او د بچي د پیدا کیدو د پاره اِلې بیابانِ یو لرې ځائے ته تلله.

۱۷ د دے الفاظو نه دا اندازه لګیدے شي چې حضرت مریم په هغه وخت کښې څومره پریشانه وه. د موقعې ته چې سړے اوګوري نو ښکاره پرېوځي چې د هغې د خولې نه دا الفاظ د دردونو د تکلیف د وجه نه نهٔ وو وتلي، بلکه د هغې سره دا فکر وو چې الله تعالیٰ په کوم خطرناک آزمیښت کښې هغهٔ اچولې وه چې هغه به څنګه په خیریت سره پوره شي. حمل خو ئې په څه طریقه د اوسه پورے پټ کړو. اوس دا بچے کوم ځا ته وړي. د دے روستنۍ فقرې نه چې فرښتې ورته اُووے چې "غم مهٔ کوه" دا معلومیږي چې حضرت مریم دا الفاظ ولې وئیلي وو. د واده شوې جنیئ چې کله اولنے بچے کیږي نو که د دردونو تکلیف ورته هر څومره وي، خو غم او پریشانیې ورسره هیڅ کله نه وي.

۱۸ مطلب دا دے چې د بچي په معامله کښې تا ته د وینا ضرورت نشته. د هغهٔ په پیدا کیدو چې څوک اعتراض کوي د هغې جواب کول اوس زمونږ ذمه دے. (په بنی اسرائیلو کښې د خاموشۍ د روژے نیولو عام رواج وو). د دے الفاظو نه هم دا خبره صفا معلومیږي چې د حضرت مریم اصلي پریشاني څه وه. دا رنګې دا خبره هم د غور کولو قابل ده چې د واده شوې جنیئ اولنے بچے که چرې د دنیا د عامې طریقې مطابق پیدا کیږي نو آخر څه ضرورت دے چې هغه د خاموشۍ روژه نیسي؟

۱۹ د دے الفاظو دوه مطلبونه کیدے شي. یو دا چې د دے ظاهري معنیٰ واخستلے شي یعنې چې هارون نومے یو سړے د حضرت مریم رورو وي. دویم دا چې د عربۍ ژبې مطابق د "اُختِ هارون" معنیٰ "د هارون د خاندان جینئ" واخستلے شي، ځکه چې په عربۍ ژبه کښې عام طور دا سې وئیلے کیږي. مثلاً د مُضر قبیلې سړي ته "یا اخا مُضر" (اے د مضر روره) وئیلے کیږي او د همدان قبیلې سړي ته

فَاَشَارَتْ اِلَيْهِ ؕ قَالُوْا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا ﴿۲۹﴾ قَالَ اِنِّيْ عَبْدُ اللّٰهِ ۛؕ اٰتٰىنِيَ الْكِتٰبَ وَجَعَلَنِيْ نَبِيًّا ﴿۳۰﴾ وَّجَعَلَنِيْ مُبٰرَكًا

مریم دَ بچي طرفته اشاره اُوکړه -
خلقو اُووې "مونږ به د دهٔ سره څه خبره اُوکړو چه په زانګو کښې پروت يو (ماشوم) بچے دے؟" ماشوم بچي اُووې "زهٔ دَ الله بنده يم. هغه ماله کتاب راکړو، او زهٔ ئے نبي جوړ کړم، او زهٔ ئے برکتي کړم

"يا اخا هٰرون" (اے دَ هارون روره) ويلے کيږي. دَ دلته معنٰی په حق کښې دليل دا دے چه په څينو روايتونو کښې پخپله دَ نبي صلی الله عليه وسلم نه دا معنٰی نقل کړے شوې ده. او دَ دوېمه معنٰی په تائيد کښې دليل دا دے چه دَ دے موقع او محل سره دا معنٰی لږي. ځکه چه دَ دے واقعے په وجه چه څنګوا کښکو مغضب راپورته شوې وه دَ هغې وجه دا نه شي کيدے چه هارون نومے يو ورک سړے وُو او دَ هغهٔ نا وادهٔ کړې خور په غيږ کښې بچے راغلے وُو او قوم ته راغلې وه، بلکه دَ خلقو دَ حيرانتيا د يوه وجه کيدے شي چه دَ بني اسرائيلو دَ پاکے کورنۍ يعنې دَ هارون دَ خاندان يوه پيغله په دا سے حالت کښې مبتلا وه. اګر چه دَ يو مرفوع حديث نه موږ وکي کښې بله معنٰی اُصولاً نه شي کيدے، په مُسلم، په نسائي او په ترمذي وغيره کښې چه دا حديث په کوم الفاظو نقل شوے دے دَ هغې نه دا مطلب نه راوځي چه دَ دے الفاظو معنٰی "خا ختا دَ هارون خور" ده. دَ مُغيرهؓ بن شُعبه په روايت کښې چه څه بيان شوي دي هغه دا دي چه دَ نجران عيسايانو حضرت مُغيرهؓ ته دا اعتراض پيش کړو چه په قرآن کښې حضرت مريم ته دَ هارون خور ويلي شوې ده، حالانکه حضرت هارون دَ هغې نه په سوونو کاله مخکښې تير شوے وُو. حضرت مُغيرهؓ دَ هغهٔ دَ دے اعتراض جواب ورنه کړے شو او راغے او نبي صلی الله عليه وسلم ته ئے دا قيصه اُوکړه. نبيؐ ورته اُوفرمايل چه "تا دا جواب ولے ورنه کړو چه بني اسرائيلو به خپل نومونه دَ پيغمبرانو او صالحانو خلقو په نومونو ايښودل" دَ نبيؐ دَ ارشاد نه صرف دا خبره راوځي چه دَ بے جوابه کيدو په ځائے په دے جواب سره اعتراض دفع کيدے شو-

۱۹ الف کوم خلق چه دَ حضرت عيسيٰؑ دَ معجزانه پيدائيښ نه منکر دي هغوي آخر دَ دے خبرے څه مناسب جواب ورکولے شي چه حضرت مريم ماشوم بچے په غيږ کښې نيولے وُو او راغله نو قوم پرولے غصه شو او ولے ئے په هغې طعن لګولو او ملامته کوله ئے؟

۲۰ کوم خلق چه دَ قرآن معنوي تحريف کوي هغوي د دے آيت نه دا مطلب اخستے دے چه "مونږ به دَ دهٔ سره څه خبره اُوکړو چه هغه پرونے بچے دے." يعنې دَ هغوي په نزد او وينا حضرت عيسيٰ دَ ځوانۍ په زمانه کښې شوې وه او دَ بني اسرائيلو مخوا او بودا کانو خلقو او وے چه بنه دے مونږ سره به مونږ څه خبرے اُوکړو چه پرون لا مونږ په مخکښې په زانګو کښې پروت وُو. خو چه څوک څه لږ ډير په موقع او په محل پانډ او په ورانډ روستو عبارت باندې غور اُوکړي نو هغه ته به معلومه شي چه دا هسي يوه بے مطلبه معنٰی ده چه دَ معجزے نه دَ بچ کيدو دَ پاره شوې ده- که نور هيڅ نه وے او

أَيْنَ مَا كُنتُ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴿٣١﴾
وَبَرًّا بِوَالِدَتِي وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ﴿٣٢﴾ وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ
وُلِدتُّ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا ﴿٣٣﴾ ذَٰلِكَ عِيسَى ابْنُ
مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴿٣٤﴾ مَا كَانَ لِلَّهِ أَن يَتَّخِذَ
مِن وَلَدٍ ۖ سُبْحَانَهُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٣٥﴾

هرچرته چه زهٔ یم، او د مانځهٔ او د زکواة د پابندئ کولو حکم ئې راته او کړو ترڅو پورې چه زهٔ ژوندے یم، او د خپلې مور حق اداکونکے ئې جوړ کړم[۲۰] او زهٔ ئې جبار او شقي جوړ نه کړم. سلام دے په ما باندې هرکله چه زهٔ پیدا شوم او هرکله چه زهٔ مړ شم او هرکله چه زهٔ بیا دوباره ژوندے راپاڅولے شم[۲۱].

دا دے عیسیٰ ابن مریم او دا ده د هغهٔ په باره کښې هغه رښتینې خبره چه خلق پکښې شک کوی. د الله دا کار نهٔ دے چه هغهٔ ځان له څوک ځوئے اونیسی. هغهٔ پاک ذات دے. هغهٔ چه کله د څه خبرې فیصله کوی نو وائی چه شه، او بس هغه کیږی[۲۲].

دے ظالمانو دا سوچ کړے وے چه په کومه خبره باندې د قوم خلقو اعتراض کړے وُو هغه خود بچی د پیدائش په وخت کښې پېښه شوې وه نهٔ چه د هغهٔ د ځوانئ په وخت کښې. د دے نه علاوه د سورة آل عمران آیت ۴۶ او د سورة مائده آیت ۱۱۰ دواړه قطعی طور دا خبره ښکاره کوی چه حضرت عیسیٰؑ دا خبرې په ځوانئ کښې نهٔ وے کړے بلکه د ماشوم بچی په حیثیت سره ئې په زانګو کښې کړے وے. په اولنی آیت کښې فرښته حضرت مریم له د ځوی زیرے ورکوی او ورته وائی چه هغهٔ به د خلقو سره په زانګو کښې هم خبرے کوی او په ځوانئ کښې هم. په دویم آیت کښې الله تعالیٰ پخپله حضرت عیسیٰؑ ته فرمائی چه تا به د خلقو سره په زانګو کښې هم خبرے کولے او په ځوانئ کښې هم.

[۲۰] دا ئې اونهٔ فرمائیل چه د مور او د پلار حق اداکونکے. صرف دا ئې او فرمائیل چه د مور حق اداکونکے. دا هم د دے خبرې دلیل دے چه د حضرت عیسیٰؑ پلار نهٔ وُو. او د دے یو ښکاره دلیل دا دے چه په قرآن کښې هر ځائے کښې هغهٔ ته عیسیٰ ابن مریم (عیسیٰ د مریم ځوئے) ویلے شوے دے.

[۲۱] دا ده هغه "نښه" چه د حضرت عیسیٰ علیه السلام په ذات کښې د بنی اسرائیلو وړاندې پیش کړے شوه. الله تعالیٰ غوښتل چه بنی اسرائیلو له د عیرتناکے سزا ورکولو نه مخکښې په هغوی باندې حجت تمام کړی. د دے د پاره الله تعالیٰ دا تدبیر او کړو چه د نبی هارون یو داسے پرهیزګاره او عبادت ګزاره پېغله جینئ چه په بیت المقدس کښې په اعتکاف کښې ناسته وه او حضرت زکریاؑ ئې پرورش کولو، هغهٔ ئې په نا واده کړې حالت کښې حامله کړه د پاره د دے چه کله هغه بچے په غېږ کښې راوړی نو چه ټول قوم الهیه هغه ورشی او د ټولو خلقو فکر هغې ته شی. بیا چه کله د دے تدبیر مطابق ټول خلقو په حضرت مریم

وَ اِنَّ اللّٰهَ رَبِّیْ وَ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِیْمٌ ﴿۳۶﴾
فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَیْنِهِمْ ۚ فَوَیْلٌ لِّلَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ
مَّشْهَدِ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿۳۷﴾ اَسْمِعْ بِهِمْ وَ اَبْصِرْ ۙ یَوْمَ یَاْتُوْنَنَا لٰكِنِ
الظّٰلِمُوْنَ الْیَوْمَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۳۸﴾ وَ اَنْذِرْهُمْ یَوْمَ الْحَسْرَةِ اِذْ قُضِیَ
الْاَمْرُ ۘ وَ هُمْ فِیْ غَفْلَةٍ وَّ هُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۹﴾ اِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْاَرْضَ وقف لازم

(او عیسیٰؑ وئیلی وُو چه) الله زمارب هم دے او ستاسو رب هم دے، پس تاسو د هغهٔ بندګی کوئ، هم دا نیغه لار ده.[۲۳] خو بیا مختلفو ډلو په خپلو کښې اختلاف شروع کړو. نو کومو خلقو چه کفر اوکړو د هغوئ دپاره به هغه وخت ډیر د تباهئ وی کله چه هغوی یوه لویه ورځ اُووینی - کله چه هغوی مونږ ته حاضریږی نو په هغه ورځ به ئے غوږ ونه هم ښهٔ اوریدل کوی او سترګے به ئے هم ښهٔ لیدل کوی لیکن نن دا ظالمان په ښکاره ګمراهئ کښے پراته دی - اے محمدؐ، هر کله چه دا خلق غافله دی او ایمان نهٔ راوړی نو په دے حالت کښے دوئ د هغے ورځے نه اُویروه کله چه فیصله اُوکړے شی او د ا فسوس نه سوا به بل هیڅ لار نهٔ وی. آخر دا چه یوازے مونږ به د ځمکے

بانڈِ الزام ا ولګو وُو نو الله تعالیٰ د دغے ماشوم بچی نه د دے غرض دپاره خبرے اُوویستلے چه کله دا بچے لوئی شی او پیغمبری ورته ملاؤ شی نو چه په قوم کښے په زرګونو خلق دا سے موجود وی چه هغوی ګواهی کوی چه په دے هلک کښے هغوی یوه نا آشنا معجزه لیدلی ده - په دے باندیم چه کله دا قوم د هغه د پیغمبری نه انکار اوکړی او د هغه پیروی قبوله نهٔ کړی بلکه د هغه نه مجرم جوړ کړی او دا کوشش اوکړی چه هغه په سولئ او خیژوی نو بیا د هغے ورله دا سے عبرتناکه سزا ورکړے شی چه په دُنیا کښے یو قوم له نهٔ وی ورکړے شوی. (د زیاتے تشریح دپاره اوګوره تفهیم القرآن اول جلد، آل عمران، حاشیه ۴۴، ۵۳ - النسآء، حاشیه ۲۱۳ - ۲۱۳ - دریم جلد، الانبیاء، حاشیه ۸۸ - ۸۹ - ۹۰ - المومنون حاشیه ۴۳)

[۲۳] د دے ځائے پورے چه کومه خبره عیسایانو ته وئیلے شوی ده هغه دا ده چه د حضرت عیسیٰ علیه السلام په حقله هغوی د ابن الله کومه عقیده اختیار کړی ده هغه باطله ده. لکه څنګه چه په یوه معجزه سره حضرت یحییٰؑ خدائے پیدا کړو او د دے معجزانه پیدائش په وجه هغه د خدائے ځوئے جوړ نهٔ شو نو دغه شان په یوه بله معجزه سره الله تعالیٰ عیسیٰؑ پیدا کړو، نو د حضرت عیسیٰؑ دا معجزانه پیدائش هم دا سے یو شیز نهٔ دے چه د هغے په وجه د کښی هغه د خدائے تعالیٰ ځوئے جوړ شی - د عیسایانو په خپلو روایتونو کښے هم دا خبره شته چه حضرت یحییٰؑ او حضرت عیسیٰؑ دواړه یو شان به معجزه سره پیدا شوی وُو. چنانچه د لوقا په انجیل کښے د دے دواړو معجزو ذکر د قرآن پشان په یوه سلسله کښے بیان کړے شوے دے. لیکن دا د عیسایانو د حد نه وریدلی چه



وَمَنْ عَلَيْهَا وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ۝٤٠ وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ إِبْرٰهِيمَ ۚ إِنَّهُ
كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ۝٤١ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يٰٓأَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا
لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْـًٔا ۝٤٢ يٰٓأَبَتِ إِنِّي

او دَدے دَ ټولو څیزونو وارثان یو او ټول به مونږ ته واپس کړے کیږی.[25] ع
او په دے کتاب کښے دَ ابراهیمؑ قیصه بیان کړه،[26] بے شکه هغهٔ یو رښتینے انسان او یو نبی ؤ.
(دوی ته لږ شان هغه وخت ور یاد کړه) کلہ چہ هغهٔ خپل پلار ته اُووے چہ" بابا جانه، ته ولے دَ هغے څیزونو عبادت کوے چہ هغه نهٔ اوری او نهٔ وینی او نهٔ ستا څهٔ کار جوړولے شی؟ بابا جانه، ما

هغوی په یوه معجزه سره پیدا کیدو نکی انسان ته دَ الله بندهٔ وائی او په یوه معجزے سره چہ کوم انسان پیدا شوے دے دَ هغهٔ نسے دَ الله ځوے جوړ کړے دے.

۲۳ ؎ دلته عیسایانو ته وئیلی شوی دی چہ دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دعوت هم هغه وُو کوم چہ دَ نورو ټولو پیغمبرانو وُو. هغهٔ دَ دے نه سِوا بل هیڅ څه چا ته نهٔ وُو ښودلی چہ صرف دَ یو خدائے بندگی اُوکړئ. اُوس چہ تاسو دَ هغهٔ نه دَ بندهٔ په ځائے خُدائے جوړ کړے دے او هغه په عبادت کښے دَ الله سره شریکوئ نو دا ستاسو خپل ایجاد دے. ستاسو پیغمبر دا تعلیم هیڅ کله نهٔ وُو. (دَ زیات تفصیل دَ پاره اُوګورئ تفهیم القرآن اول جلد، آلِ عمران، حاشیه ۶۸. المائدہ، حاشیه ۱۰۰-۱۰۱-۱۳۰ څلورم جلد، الزخرف حاشیه ۵۷ - ۵۸).

۲۴ ؎ یعنی دَ عیسایانو ډلے.

۲۵ ؎ دلته هغه نقل پرختم یږی کوم چہ عیسایانو ته دَ اوروکو دَ پاره نازل شوے وُو. دَ دے تقریر دَ عظمت صحیح اندازه هلته لګیدے شی چہ کله سړے دا ولی او هغه تاریخی حالاتو ته په نظر کښے وی کوم چہ مونږ دَ دے سورة په دیباچه کښے بیان کړی دی. دا تقریر په هغه موقع باندے نازل شوے ؤ کله چہ دَ مکے مسلمانان دَ ظلم دَ لاسه یو عیسائی وطن ته دَ پناه اغستلو دَ پاره تلل، او دَ دے غرض دَ پاره نازل کړے شوے وُو چہ کله هلته دَ مسیح په حقله دَ اسلامی عقیدے خبره چیړلے شی نو چہ دا "سرکاری بیان" عیسایانو ته واورولے شی. دَ دے نه زیات بل څهٔ ثبوت دَ دے خبرے کیدے شی چہ اسلام مسلمانانو ته په یو حالت کښے هم دَ حق او دَ صداقت په معامله کښے دَ خوشامند کیږی کولو تعلیم نهٔ دے ورکړے. بیا چہ کوم مسلمانانو حبشے ته هجرت کړے وُو دَ هغوی دَ ایمان قوت هم سړے حیرانوی چہ هغوی په شاهی دربار کښے پاسی او په داسے نازکه مرحله دا تقریر بادشاه ته اَوروی چہ دَ نجاشی بادشاه درباریانو رشوت خوړلے ؤ او په دے خبره زور لګوی چہ مسلمانان دِ دشمنانو ته حواله کړے شی. په هغه وخت کښے دَ دے خبرے پوره خطره وه چہ دَ عیسائیت په بنیادی عقیدو باندے دَ اسلام دَ دے غیر جانبداره تبصرے اوریدو سره نجاشی بادشاه هم غصه شی او دا مظلومان

قَدْ جَآءَنِيْ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِيْٓ اَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا ﴿۴۳﴾
يٰٓاَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطٰنَ ۭ اِنَّ الشَّيْطٰنَ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ عَصِيًّا ﴿۴۴﴾
يٰٓاَبَتِ اِنِّىْٓ اَخَافُ اَنْ يَّمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ فَتَكُوْنَ لِلشَّيْطٰنِ
وَلِيًّا ﴿۴۵﴾ قَالَ اَرَاغِبٌ اَنْتَ عَنْ اٰلِهَتِيْ يٰٓاِبْرٰهِيْمُ ۚ لَىِٕنْ لَّمْ تَنْتَهِ
لَاَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِيْ مَلِيًّا ﴿۴۶﴾ قَالَ سَلٰمٌ عَلَيْكَ ۚ سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيْ

یو داسې علم راغلے دے چه هغه تاته نۀ دے راغلے، ته په ما پسې راځه، زۀ به تاته نیغه لاره اُوښایم۔
پا پاجانه ته دَ شیطان بندګی مه کوه[۲۷]، شیطان خو دَ رحمٰن نافرمان دے۔ باباجانه، زۀ یریږم
چه ته چرته دَ رحمٰن په عذاب کښې مُبتلا نۀ شې او دَ شیطان ملګرے جوړ شې"۔
پلار ورته اُووے "ابراهیمه، ولے ته زما دَ معبودانو نه اوړیدلے ئې؟ که چرے ته منع نۀ
شوے نو زۀ به تا سنګسار کړم۔ بس ته دَ همیشه دَپاره زما نه جُدا شه"۔ ۲۷الف
ابراهیمؑ ورته اُووے "سلام دے تاته۔ زۀ به دَ خپل رب نه دُعا غواړم چه تا معاف کړی،

مسلمانان دَ قریشو ظالمانو ته حواله کړی۔ لیکن دَدے باوجود هغوی دَ حق په پیش کولو کښې دَ ذره هومره
نا راستی اُونۀ کړه۔
۲۶ دَدے ځائے نه خبره مکے والو ته شروع کیږی۔ مکے والو خپل ځامن، خپل رُونړه او خپل نور
رشته داران دَ خُدا پرستئ په جُرم کښې په کور پریښودلو باندِ هم هغے مجبور کړی وُو لکه څنګه چه
حضرت ابراهیمؑ خپل پلار او دَ خپلے رُورولئ خلقو دَ وطن نه ایستلے وُو۔ دَدے غرض دَپاره دَ نورو
پیغمبرانو په ځائے خاص طور دَ حضرت ابراهیمؑ قیصه په دے وجه بیان کړے شوه چه دَ قریشو خلقو
هغه خپل پیشوا منلو او په دے به ئې فخر کولو چه مونږه دَ ابراهیمؑ اولاد یُو۔
۲۷ اصل الفاظ دی لَا تَعْبُدِ الشَّيْطٰنَ یعنی "دَ شیطٰن عبادت مه کوه"۔ اګرچه دَ حضرت ابراهیمؑ
پلار او دَ قوم نورو خلقو دَ بُتانو عبادت کولو، لیکن چونکه هغوی خبره دَ شیطان منله، نو په دے
وجه حضرتِ ابراهیمؑ دَ هغوی دے کار ته چه دَ شیطان اِطاعت کوی او دَ هغه خبره منی، هم دَ
شیطان عبادت اُووئیلو۔ دَدے نه معلومه شوه چه عبادت یوازے دَ آداب او دَ تعظیم کولو
او دَ رسم ادا کولو نوم نۀ دے بلکه دَ اِطاعت او دَ حکم منلو نوم هم دے۔ دا رنګے دَدے نه دا هم
معلومه شوه چه که چرے څوک په چا باندِ لعنت هم وائی او دَ هغه بندګی کوی نو دا لکه چه دے
دَ هغه عبادت کوی او دے دَ هغه دَ عبادت کولو په وجه مجرم دے، ځکه چه شیطان په یوه زمانه کښې
هم دَ خلقو "معبود" (په عامه معنیٰ سره) نۀ دے پاتے شوے بلکه په هره زمانه کښې خلق دَ هغه په
نوم باندِ لعنت وائی۔ (دَ تشریح دَپاره اُوګوره تفهیم القرآن دریم جلد، الکهف حاشیه ۴۹ - ۵۰)۔

إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا ﴿٤٧﴾ وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَأَدْعُو
رَبِّي عَسَىٰ أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّا ﴿٤٨﴾ فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا
يَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا
نَبِيًّا ﴿٤٩﴾ وَوَهَبْنَا لَهُم مِّن رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ﴿٥٠﴾ ع
وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَىٰ ۚ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا ﴿٥١﴾

زما رب په ما باندې ډیر مهربان دے۔ زۀ تاسو هم پرېږدم او هغه هستیانے هم پرېږدم چه تاسو هغوی رابلئ او خدائے پرېږدئ۔ زۀ خو به خپل رب رابلم، اُمید دے چه زۀ به د خپل رب په رابللو سره نامراد پاتے نۀ شم۔"
نو هر کله چه هغۀ د هغې خلقو او د هغوی د هغه معبودانو نه چه غیر الله وُو جُدا شو نو مونږه ورله اسحٰقؑ او د یعقوبؑ غوندې اولاد ورکړل او د هر یو نه مو پیغمبر جوړ کړو او هغوی ته مو خپل رحمت اوبخښلو او رښتینې شهرت مو ورکړو۔[28] ع
او ذکر اوکړه په دے کتاب کښې د موسٰی۔ هغۀ یو غوره سړے وو[29] او رسول نبی وو[30]

[27] الف، د تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن دویم جلد، التوبه، حاشیه، ۱۱۲
[28] دا تسلی ده د هغه مهاجرینو د پاره چه هغوی د کورونو نه په وتلو باندې مجبوره شوی وُو. هغوی ته وئیلے کیږی چه لکه څنګه ابراهیم علیه السلام د خپل خاندان نه جُدا شو او تباه نۀ شو بلکه نړۍ عزتمند شو دغه شان به تاسو هم نۀ بربادیږئ او هغه عزت به بیا مومئ چه د قریشو دا جاهلان کافران به د هغې خیال هم نۀ شی کولے۔
[29] په اصل کښې لفظ مُخلَص استعمال شوے دے چه معنٰی ئې ده "خالص کړے شوے" مطلب دا دے چه حضرت موسٰی یو داسے سړے وو چه هغه الله تعالٰی ځان له خالص کړے وُو.
[30] د "رسول" معنٰی ده "استازے"، "لیږلے شوے" د دے معنٰی په لحاظ سره په عربئ ژبه کښې دا لفظ د قاصد، د پیغام رسان او د سفیر د پاره استعمالیږی۔ او په قرآن کښې دا لفظ یا خو د هغې فرښتو د پاره استعمال شوے دے چه هغوی د الله تعالٰی د طرفه د څه خاص کار د پاره لیږلے کیږی، یا بیا د هغه انسانانو د پاره استعمال شوے دے چه هغوی د الله تعالٰی مخلوق ته د خپل پیغام رسولو د پاره مقرر کړی دی۔
د "نبی" په معنٰی کښې د لُغت والو اختلاف دے۔ څینې وائی چه دا لفظ د "نَبَأ" نه مشتق دے چه معنٰی ئې ده "خبر"۔ او د دے معنے په لحاظ سره د نبی معنٰی ده "خبر ورکونکے"۔ څینې وائی چه د دے ماده نبوده او معنٰی ئې ده "اُوچتوالے"۔ د دے معنے په لحاظ سره د نبی مطلب دے "اُوچته مرتبه" او

وَنَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا ﴿۵۲﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗ

موږ هغهٔ ته د طور د ښي اړخ نه آواز اوکړو^۳۱ او د راز په خبرو موږ هغهٔ ځان ته رانږدې^۳۲ کړو او په خپله مهربانۍ

"اُوچت مقام"۔ ازهري د کسائي نه يو دريم قول هم نقل کړے دے هغه وائي چه دا لفظ په اصل کښې نبئ دے چه معنیٰ ئے ده "لار"۔ او پيغمبرانو ته نبي ځکه وائي چه هغوئ د الله تعالیٰ طرف ته د تللو لار ده۔

نو په سرې ته د "رسول نبي" ويلو مطلب يا خو "د اُوچته مرتبے پيغمبر" دے، يا د "الله تعالیٰ د طرفه خبرورکونکے پيغمبر"، يا "هغه پيغمبر چه د الله لار ښودونکے دے"۔

په قرآن مجيد کښې دا دواړه لفظونه عام طور په يو معنیٰ سره استعمال شوي دي. موږه وينو چه يو انسان ته په يو ځائے کښې صرف رسول ويلے شوے دے او په بل ځائے کښې ورته صرف نبي او په بل ځائے کښې ورته رسول او نبي دواړه ويلے شوي دي. ليکن په ځينو ځايونو کښې رسول او نبي په داسے طريقه هم استعمال شوي دي چه د هغې نه دا معلوميږي چه په دے دواړو کښې د مرتبے يا د کار په لحاظ سره څه اصطلاحي فرق شته. مثلاً د سورة حج په اُووم رکوع کښې فرمائي وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ اِلَّآ ...... "موږه ستا نه وړاندې نه دے ليږلے يو رسول او نه يو نبي مګر......" د دے الفاظو نه صفا معلوميږي چه رسول او نبي دوه داسے جُدا لفظونه دي چه د معنیٰ په لحاظ سره ئے په منځ کښې څه فرق ضرور شته. دا وجه ده چه د مفسرينو په منځ کښې دا بحث چليږي چه دا کوم قِسم فرق دے. ليکن حقيقت دا دے چه په قطعي دليلونو سره هيچا هم د رسول او د نبي په منځ کښې څه فرق نه دے کړے شوے. د زياتو نه زيات چه کومه خبره په يقين سره ويلے کيدے شي هغه دا ده چه د رسول لفظ د نبي په نسبت خاص دے، يعنې هر رسول نبي هم وي خو هر نبي رسول نه وي، يا په دے الفاظو سره چه په پيغمبرانو کښې د رسول لفظ د هغې قدرمنو هستو د پاره ويلے کيږي چه هغوي ته د عامو پيغمبرانو په نسبت زيات لوئ منصب حواله کړے شوے وي. د دے خبرے تائيد د هغې حديث نه هم کيږي چه امام احمد د حضرت ابو اُمامه نه او حاکم د حضرت ابوذر نه نقل کړے دے چه د نبي صلی الله عليه وسلم نه تپوس اُوکړے شو چه رسولان څومره دي نو نبي اُوفرمائيل چه درے سوه اُو ديارلس^۳۱۳ يا درے سوه اُو پنځلس^۳۱۵، او چه د نبيانو تپوس ترې اُوکړے شو چه نبيان څومره دي نو هغهٔ اُوفرمائيل چه يو لاکهه او څليرويشت زره^۱۲۴۰۰۰۔ اګرچه د دے حديث سندونه ضعيف دي خو چه کله د درے سند ونو نه يوه خبره نقل شي نو د ډيره حده پورے د هغې ضعف لرے کوي۔

^۳۱ د کوه طور د ښي طرف نه مراد د کوه طور ختيځ طرف دے۔ حضرت موسیٰ چه کله د مدين نه مصر ته تللو نو په هغه لار تللو چه کومه د کوه طور سويل ته ده۔ او د سويل د طرف نه چه سړے اُو کوري نو ښي طرف نه ئے ختيځ راځي او د کس طرف نه ئے لويديځ راځي، نو د حضرت موسیٰ د نسبت په وجه د طور ختيځ طرف ته "ښي اړخ" اُوويلے شو. ګنې نو دا خو ښکاره خبره ده چه د غر څه ښي يا

مِنْ رَّحْمَتِنَآ اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا ﴿۵۳﴾ وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ ز
اِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ﴿۵۴﴾ وَكَانَ يَاْمُرُ اَهْلَهٗ
بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهٖ مَرْضِيًّا ﴿۵۵﴾ وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ
اِدْرِيْسَ ز اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا ﴿۵۶﴾ قلے وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴿۵۷﴾

مو دَ هغه رُور هارونؑ نبي جوړ کړو او هغهٔ ته مو (دَ مددگار په طور) ورکړو۔
او په دے کتاب کښے دَ اسماعیلؑ ذکر اُوکړه۔ هغهٔ دَ وعدے رښتینے وُو او رسُول نبي وُو۔ هغهٔ به خپل کور والو ته دَ مونځ او دَ زکوٰة حکم کولو او دَ خپل رب په نزد یو غوره انسان وُو۔
او په دے کتاب کښے دَ ادریس[۳۲] ذکر اُوکړه۔ هغه یو رښتینے انسان او یو نبي وُو او هغهٔ مونږ یو لوړ مقام ته اُوچت کړے وُو[۳۳]

کس طرف نهٔ وی۔

[۳۲] دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن اول جلد، النسآء حاشیه ۔ ۲۰۹

[۳۳] دَ حضرت ادریس په باره کښے اختلاف دے۔ څینی وائی چه هغهٔ دَ بنی اسرائیلو نبي وُو۔ خو اکثره وائی چه هغه دَ حضرت نوحؑ نه هم مخکښے تیر شوے دے۔ په دے باره کښے دَ نبي صلی الله علیه وسلم نه صحیح حدیث مونږ ته نهٔ دے رارسیدلے، البته دَ قرآن یوه اشاره دَ دے خبرے تائید کوی چه هغه دَ حضرت نوحؑ نه مخکښے وُو۔ ځکه چه په روستنی آیت کښے دا فرمایلے شوی دی چه دا پیغمبران (دَ کوموذکر چه تیر شوے دے) دَ آدمؑ اولاد، دَ نوحؑ اولاد، دَ ابراهیمؑ اولاد او دَ اسرائیل اولاد دی۔ اُوس خو دا خبره معلومه ده چه حضرت یحیٰی، عیسٰی او موسٰی علیهم السلام خو بنی اسرائیلو نه دی، او حضرت اسماعیل، حضرت اسحٰق او حضرت یعقوب دَ ابراهیمؑ دَ اولاد نه دی، او حضرت ابراهیم دَ نوحؑ دَ اولاد نه دے۔ دَ دے نه روستو حضرت ادریسؑ داسے پاتے کیږی چه دَ هغهٔ په باره کښے دا خیال کیدے شی چه هغه دَ آدمؑ دَ اولاد نه دے۔

دَ مفسرینو عام خیال دا دے چه په بائیبل کښے دَ کوم بزرګ نوم حنوک (Enoch) ښودلے شوے دے هم هغه حضرت ادریسؑ دے۔ دَ هغهٔ په باره کښے دَ بائیبل بیان دا دے:

"او حنوک دَ پنځه شپیته[۶۵] کالو وُو چه دَ هغه نه متوسلح پیدا شو او دَ متوسلح دَ پیدائش نه روستو حنوک دَ دریه سوو کالو پورے دَ خدائے سره سره روان وُو..... او هغه غائب شو ځکه چه خدائے هغه اُوچت کړو۔" (پیدائش، باب ۵۔ آیت ۲۱۔۲۴)۔

دَ تلمود په اسرائیلی روایتونو کښے دَ حنوک حالات لږ زیات په تفصیل سره دی۔ دَ هغے خلاصه دا ده چه دَ حضرت نوح نه مخکښے کله دَ آدمؑ په اولاد کښے خرابتیا شروع شوه نو دَ خدائے فرښتے حنوک

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ مِنْ ذُرِّيَّةِ آدَمَ وَ
مِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَمِنْ ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْرَائِيلَ وَمِمَّنْ
هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا ۚ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا ۩ ﴿٥٨﴾
فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ

دا هغه پیغمبران دي چه الله پرانعام کړے دے، دَ آدمؑ د اولاد نه دي، او دَ هغه خلقو دَ نسل نه دي چه هغوی مونږ دَ نوحؑ سره په کشتۍ کښے سواره کړي وُو، او دَ ابراهیمؑ دَ نسل نه دي او دَ اسراءِیل دَ نسل نه دي. او دوی دَ هغه خلقو نه وُو چه مونږ هغوی ته هدایت کړے وُوا و مونږ هغوی خوښ کړي وُو. دَ هغوی دا حال وُو چه کله به دَ رحمٰن آیتونه هغوی ته اورولے کیدل نو په ژړا ژړا به په سجده پریوتل[۳۴] بیا دَ هغوی نه روستو هغه ناخلف (یعني بدعمله) خلق دَ هغوی په ځائے راغلل چه مونځونه ئے ضایع کړل[۳۵] او دَ نفس په خواهشاتو

تم. چه دَ خلقو نه به ئے ځان لرې کړو، دَ پرهیزکارۍ ژوند تیرولو، آوازئے وکړو چه ”اے حنوکه! پاسه دَکوټ نه راوُوځه او دَ زمکے په اوسیدونکو خلقو کښے اوګرځه راوګرځه او هغوی ته هغه لار اوښایه چه په کومه باندې هغوی له تلل پکار دي او هغه طریقه ورته اوښایه چه په کومه باندې هغوی له عمل کول پکار دي“. دَ دے حکم نه روستو هغه راوُوتو او ځائے په ځائے ئے خلق راجمع کړل او وعظ او نصیحت ئے ورته اوکړو او خلقو دَ هغه اطاعت قبول کړو او دَ الله بندګي ئے اختیار کړه. حنوک دَ دریه سوه درے پنځوس کالو پورے په انسانانو باندې حکمران وُو. دَ هغهٔ حکومت دَ انصاف او دَ حق پرستۍ حکومت وُو. دَ هغه په زمانه کښے په زمکه باندې دَ خدائے رحمتونه را اوریدل.

(The Talmud Selections P.P.18.21)

۳۴ دَ دے سیده ساده مطلب خو دا دے چه الله تعالیٰ حضرت ادریسؑ له اوچته مرتبه ورکړے وه، لیکن دَ اسرائیلي روایتونو نه دا خبره په مونږ کښے مشهوره شوه چه الله تعالیٰ حضرت ادریسؑ آسمان ته پورته کړو. په بائیبل کښے خو صرف دومره قدر له خبره ده چه هغه غائب شو ځکه چه خدائے هغهٔ اوچت کړو“. لیکن په تلمود کښے دَ دے یوه اوږده قیصه بیان شوې ده او هغه قیصه په دے ختمه شوې ده چه ”حنوک دَ هوا په یوه غولۍ کښے دَ وور دَ گاډۍ او دَ آسونو سره آسمان ته اوختو“.

۳۵ یعني مونځ کول ئے پریښودل، یائے دَ مانځه نه بے پروائي شروع کړه. دا دَ هر اُمت دَ زوال اولے قدم دے. مونځ هغه اولنۍ رابطه ده چه دَ مومن عملي تعلق دَ خدائے سره شپه او ورځ تړلے ساتي او هغه دَ خدائے پرستۍ دَ مرکز نه پراشته نهٔ پریږدي. دا تړون چه وُ شلیږي نو سړے دَ خدائے نه رُو رُو لرے کیږي ان تر دے پورے چه دَ عملي تعلق دَ ختمیدو سره دَ هغه خیالي تعلق هم دَ خدائے

فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴿٥٩﴾ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ
يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْئًا ﴿٦٠﴾ جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ
عِبَادَهُ بِالْغَيْبِ ۚ إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ مَأْتِيًّا ﴿٦١﴾ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا
سَلَامًا ۖ وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿٦٢﴾ تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ

پسې روان شو، نو نزدې ده چه هغوی د ګمراهۍ د انجام سره مخ شي.[۳۶] البته څوك چه توبه اُوباسي او ایمان راوړي او نیک عمل اختیار کړي نو هغوی به جنت ته داخلیږي او د ذرې هومره حق به د هغوی نه وهلے کیږي. د هغوی د پاره د همیشه اُوسیدو جنتونه دي چه د هغې وعده رحمان د خپلو بندګانو سره غائبانه کړې ده[۳۷] او یقیناً دا وعده به خامخا پوره کیږي. هلته به هغوی څه فضول خبره نه آوري، چه څه آوري، بس ټیک به آوري[۳۸] او د هغوی رزق به هغوی ته صبا بیګاه ملاویږي. دا ده هغه جنت چه د دې وارث به مونږ ده

سره باقي پاتے نه شي. دا وجه ده چه الله تعالیٰ دلته دا خبره د یوې عقیدې په طور بیان کړې ده چه د پخوانو پیغمبرانو په اُمتونو کښې خرابئیا د مونځ ضایع کولو نه شروع شوې ده.

[۳۶] د الله سره د تعلق کم ساتلو یا د تعلق نه ساتلو لازمي نتیجه ده. د مونځ پریښودلو په وجه چه کله زړه د خدائے د یاد نه بے پرواشي نو دا بے پروائي چه څومره زیاتیږي هغومره د نفس د خواهشاتو په بندګۍ کښې هم اضافه کیږي. آن تردے پورے چه د سرې اخلاق او د سرې ټول معاملات د خدائے د حکمونو په ځائے د خپلې خوښې د طریقو پابند شي.

[۳۷] یعنی د هغې وعده رحمان په دا سې حالت کښې کړې ده چه هغه جنتونه د هغوی د سترګو نه پناه دي.

[۳۸] په اصل کښې لفظ "سلام" استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے ده د عیب او د نقص نه محفوظ. په جنت کښې چه به کوم نعمتونه انسان ته ملاویږي په هغې کښې به یو لوئې نعمت دا وي چه هلته به څه بیهوده یا فضول یا ګنده خبره سړے نه آوري. هلته به ټول خلق پاك صفا او پاکیزه وي. هلته به هر سړے صحیح مزاج والا وي. هلته چه څوك اُوسیږي هغوی به غیبتونه، کنځلے بے حیا سندرے او نور غلط آوازونه نه آوري. هلته چه به هر سړے څه آوري، هغه به ښه او مناسب او صحیح خبره وي. د دې نعمت په قدر هغه سړے پوهیدے شي چه هغه په دے دنیا کښې پوپاکیزه او صفا طبیعت لري. ځکه چه هغه د دے خبرے احساس کولے شي چه د انسان د پاره په دا ګنده خلقو کښې اُسیدل څومره لوئې مصیبت دے چه هلته هر وخت دروغ، غیبت، د شر فسا او د شرارت خبرې او د ګندګۍ او د شهوت خبرې وي.

مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿۶۳﴾ وَمَا نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّكَ لَهٗ مَا بَيْنَ
اَيْدِيْنَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذٰلِكَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴿۶۴﴾
رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهٖ هَلْ
تَعْلَمُ لَهٗ سَمِيًّا ﴿۶۵﴾ وَيَقُوْلُ الْاِنْسَانُ ءَاِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ اُخْرَجُ حَيًّا ﴿۶۶﴾

په خپلو بندګانو کښې هغه څوك جوړوو چه پرهيزګاروي.

اے محمد[۳۹]، مونږه ستا د رب د حکم نه بغير نۀ راکوزيږو. څۀ چه زمونږ په وړاندې دي او څۀ چه زمونږ نه روستو دي او څۀ چه د دے په مينځ کښې دي د هر څيز مالك هم هغه دے او ستا رب هيرونکے نۀ دے. هغه د آسمانونو او د زمکے رب دے او څۀ چه د آسمانونو او د زمکے په مينځ کښې دي د هغے ټولو رب دے. پس تۀ د هغۀ بندګي کوه او د هغه په بندګئ باندې ټينګ اوسه[۴۰]. آيا ستا په علم کښې د هغه د مرتبے برابر يو هستي شته[۴۱]؟

انسان وائي چه آيا واقعي کله زۀ مړ شم نو بيا به ژوندے را اُوويستلے شم؟

[۳۹] دا ټول پيرګراف هسے په مينځ کښے يو خبره ده چه د يو کلام د ختميدو نه روستو او د بل کلام د شروع کيدو نه مخکښے بيان شوې ده. د کلام د انداز نه صفا معلوميږي چه دا سورة د ډير وخت نه روستو په داسے زمانه کښے نازل شوے دے چه نبي صلی الله عليه وسلم او د هغۀ ملګرې ډير د پريشانئ په حالت کښے وو. نبي او د هغۀ ملګرو ته هر وخت د وحي انتظار وو د پاره د دے چه څۀ لار ورته اُوښائي او څۀ تسلي ورته هم حاصله شي. څومره چه به په وحي راتلو کښے وخت زياتيدو هغومره به پريشاني زياتيده. په دے حالت کښے جبرئيل عليه السلام د فرښتو په يو ډله کښے تشريف راورو. اول ئے هغه فرمان واورولو چه په هغه موقع کښے د ضرورت په لحاظ سره فوراً پکار وو. بيا د الله تعالی په اشاره سره وړاندې دا يو څو کلمے د خپل طرفنه وائي چه په هغے کښے د ډير وخته پورے د نۀ حاضريدو معذرت هم دے، د الله تعالی د طرفنه پکښے تسلي هم ده او ورسره د صبر کولو نصيحت هم دے.

دا خبره يوازے د دے کلام نه پخپله نۀ راوځي بلکه ډير روايتونه ده صدي چه د دے تصديق کوي چه هغه ابن جرير او ابن کثير او روح المعاني صاحب او نورو مفسرينو د دے آيت په تفسير کښے نقل کړي دي.

[۴۰] يعني د الله تعالی د بندګئ په لار باندې په مضبوطيا سره ځه او په دے لار کښے چه کوم مشکلات او مصيبتونه مخے ته راشي د هغے مقابله په صبر سره کوه. که چرے د الله د طرفنه په مدد کولو کښے او په تسلئ کښے څه وخت اُولګي نو په هغے کبرا ويږه مه. او د يو فرمانبردار بنده په شان په هر حال

أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْئًا ﴿٦٧﴾ فَوَرَبِّكَ
لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾ ثُمَّ
لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴿٦٩﴾ ثُمَّ لَنَحْنُ
أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا ﴿٧٠﴾ وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ
رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴿٧٢﴾

آیا دَ انسان په یاد وکښې دا نهٔ راځي چې مونږ اول دَ پیدا کړے دَے هر کله چې دَے هیڅ هم نهٔ وُو؟ ستا په رب مې دِ قسم وی، مونږ به دوی ټول او دَ دوی سره شیطانان هم[٤١] ضرور راجمع کړُو، بیا به ئے دَ دوزخ نه چاپیره حاضر کړو او دَ گونډو په طرف به ئے (پړمخے) ورغورزوُو، بیا به دَ هر یو ډلے نه هغه سړے رابیل کړو چې هغه دَ رحمٰن په مقابله کښې زیات سرکشه جوړ شوے وُو[٤٢] بیا دا مونږ ته ښه ده چې په دوی کښې څوک دَ ټولو نه زیات جهنم ته دَ غورزولو مستحق دے ـ په تاسو کښې هیڅوک داسے نشته چې په دوزخ باندې به نهٔ ورځی[٤٣] داخو یوه فیصله شوی خبره ده چې پوره کول ئے ستا دَ رب ذمه ده. بیا به مونږ هغه خلق بچ کړو چې (په دنیا کښې) متقیان وُو او ظالمان به په کښې غورزیدلی پریږدو.

کښې دَ هغهٔ په کار باندې راضی نَه دے، او بیا په کلکه اراده سره هغه خدمت کوه کوم چې تا ته دَ یو بنده او دَ یو رسول په حیثیت سره حواله کړے شوے دے ـ

[٤١] په اصل کښې لفظ سَمِیَ استعمال شوے دَے چې لغوی معنٰی ئے ده "یو نوم والا". مطلب دا دے چې الله تعالیٰ خو اِلٰه دے آیا څوک بل اِلٰه هم ستا په علم کښې شته؟ که چرے نشته او تا ته معلومه ده چې نشته نو بیا ستا دَ پاره دَدے نه سِوا بله لار کومه ده چې دَ هغه بندگی اُوکړے او دَ هغهٔ دَ حکم بنده شے.

[٤٢] یعنی هغه شیطانان چې دوی ئے مُریدان جوړ شوی دی او چې دَ هغوی په ښودنه دَ دوی دا خیال راغلے دے چې ژوند هم بس دا دَ دُنیا ژوند دے، ددے نه روستو بل ژوند نشته چې مونږ په لا هلته خدا ئے ته حاضریږو او دَ عملونو تپوس به را نه کوی.

[٤٣] یعنی دَ هر باغی ډلے لیډر (مشر).

[٤٤] دَ "وَارِدُ" یعنی ورتللو معنٰی په څینو روایتونو کښې "داخلیدل" بیان شوی ده، لیکن په هغه روایتونو کښې دَ یو روایت سند هم نبی صلی الله علیه وسلم ته په قابلِ اعتماد ذریعے سره نهٔ دے رسیدلے ـ او بیا دا خبره دَ قرآن مجید او دَ هغه کثیرو صحیح حدیثونو نه هم خلاف ده چې په هغے کښې ددے خبرے قطعی نفی شوی ده چې گنی مومنان صالحان به دوزخ ته ځی. ددے نه علاوه دَ "وُرُود" معنٰی "داخلیدل" نهٔ ده. نو ددے صحیح

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا
أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿۷۳﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم
مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا ﴿۷۴﴾ قُلْ مَن كَانَ فِي الضَّلَالَةِ
فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا ۚ حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ
وَإِمَّا السَّاعَةَ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضْعَفُ جُندًا ﴿۷۵﴾
وَيَزِيدُ اللَّهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى ۗ وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ

دے خلقو ته چه کله زمونږه صفا صفا آیتونه اورولے کیږی نو انکار کوونکی ایمان والو ته وائی "چه په مونږه دوارو ډلو کښے کومه ډله په بهتر حالت کښے ده او د چا مجلسونه زیات شاندار دی"[۴۴] حالانکه د دوی نه مخکښے مونږه ډیر داسے قومونه هلاک کړی دی چه د هغوی سازوسامان د دوی نه زیات وو او په ظاهری شان و شوکت کښے هم د دوی نه زیات وو. دوی ته اُووایه "چه کوم سړے په ګمراهئ کښے مبتلا وی رحمٰن هغه له مهلت ورکوی آن تر دے پورے چه کله داسے خلق هغه څیز اووینی د کوم څیز چه د هغوی سره وعده شوی ده ـــــ خواه که هغه د الله عذاب وی او که د قیامت ساعت وی ـــــ نو هله ورته معلومه شی چه د چا حال خراب دے او د چا ډله کمزوری ده، ددے برعکس چه کوم خلق په نیغه لاره ځی نو الله تعالیٰ هغوی ته د نیغے لارے په تللو کښے ترقی ورکوی[۴۶] او باقی پاتے کیدونکی نیکیانے ستا د

مطلب دا دے چه په دوزخ باندے به تیریږی خو ټول خلق بیکن، لکه څنګه چه په روستنی آیت کښے دی، پرهیزګار خلق به د هغے نه بچ کړے شی او ظالمان به پکښے ورغورزا کړے شی۔

[۴۵] یعنی د هغوی دلیل دا وو چه وګورئ په دُنیا کښے په چا د الله فضل دے او چا له د الله نعمتونه ورکړے کیږی۔ د چا کورونه زیات شاندار دی؟ د چا ژوند ښه دے؟ د چا محفلونه په شان و شوکت کښے وی؟ که چرے دا ټول څه مونږ ته حاصل وی او تاسو د دے نه محروم یئ نو بیخپله سوچ اُوکړئ چه آخر دا څنګه کیدے شوه چه مونږ دِ په باطل باندے یُو او مره د کوو او تاسو دِ په حق باندے یئ او دا سے بد حاله دِ یئ؟ د زیاتے تشریح د پاره وګوره تفهیم القرآن دریم جلد، الکهف، حاشیه ۳۷ - ۳۸۔

[۴۶] یعنی د هر آزمیښت په وخت کښے الله تعالیٰ هغوی له صحیح فیصلے کولو او د صحیح لارے

عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا ﴿٧٦﴾ أَفَرَءَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ
لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿٧٧﴾ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ
عَهْدًا ﴿٧٨﴾ كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿٧٩﴾
وَّنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ﴿٨٠﴾ وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللّٰهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا
لَهُمْ عِزًّا ﴿٨١﴾ كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿٨٢﴾

رب په نزد جزا او د انجام په اعتبار سره بهتر دي.

آيا نو تا اُوليد و هغه سړے چه زمونږ د آيتونو منلونه انکار کوي او وائي چه ما لخو به مال او اولاد راکړے کيدے شي؟[47] آيا ده ته د غيبو څه پته لګيدلې ده يا ده د رحمٰن نه څه وعده اغستلې ده؟ ——— هرګز نه، څه بکواس چه دے کوي هغه به مونږ ليکو[48] او د ده د پاره به په سزا کښې نور هم زياتے کوو. د کوم ساز و سامان او د کوم لښکر چه دے ذکر کوي هغه ټول به زمونږ سره پاتے کيږي او دے به اِکي يوازے مونږ ته حاضريږي.

دے خلقو الله پريښودے[49] او خپل څه خدايان ئے جوړ کړي دي د پاره د دے چه هغوي د دوي ملا تړشي[50] هيڅ ملا تړ به نه وي. هغوي ټول به د دوي د عبادت نه انکار کوي[51] او اُلټا به د دوي مخالفين شي

اختيار ولو نو توفيق ورکوي، هغوي د بدو او د غلطو کارونو نه بچ کوي او د الله په هدايت او رهنمائي سره برابر په نيغه لار روان دي.

[47] يعني هغه وائي که تاسو هر څومره ماته ګمراه او بدکاره وائي او د عذاب الٰهي نه مې يروئ، خو زه نن هم ستاسو نه زيات خوشحاله يم او په راتلونکي وخت کښې به هم په ما باندې نعمتونه راوريږي. زما دولت اُوګورئ، زما مرتبه او زما سرداري اُوګورئ، زما مشهور وځامنو ته اُوګورئ، زما په ژوند کښې آخر تاسو ته څه څيز داسے ښکاري چه په ما باندې د خدائے غضب شوے دے؟ ——— دا قِسم خيالات په مکه کښې يوازے د يو سړي نه وُو بلکه د مکے په کافرانو کښې هر شيخ او هر سردار په دے سودا کښې اخته وُو.

[48] يعني د هغه په عملنامه کښې به د هغه د غرور دا وينا هم شامله کړے شي او د دے مزه به هم هغه څکي

[49] په اصل کښې لفظ عِزًّا استعمال شوے دے، يعني چه هغوي د دوي د پاره د عزت سبب وي. ليکن په عربئ ژبه کښې د عزت نه مراد داسے طاقت ورکيدل او زبردست کيدل وي چه په هغه باندې هيڅوک زياتے نه شي کولے او يو سړے د بل سړي د پاره د عزت سبب

أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿٨٣﴾ فَلَا تَعْجَلْ
عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿٨٤﴾ يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴿٨٥﴾
وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿٨٦﴾ لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ
اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٨٧﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا ﴿٨٨﴾ لَقَدْ جِئْتُمْ

آیا ته نه ګورې چه مونږه په کافرانو پسے شیطانان ورپسے کړی دی چه دوی ښه وتیزوی (دَ حق په مخالفت پائِ)؟ ښهٔ، نو اُوس ته په دوی باندِ دَ عذاب دَ نازلیدو دَپاره بےقراری مهٔ کوه. مونږه دَ دوی ورځے شمارو[51]. هغه ورځ راتلونکی ده چه متقیان خلق به مونږه دَ میلمنو په شان دَ رحمٰن په دربار کښے پیش کړو، او مجرمان به دَ تږو څناورو په شان دوزخ ته اُوشړو. په دغه وخت کښے به خلق دَ سفارش کولو قدرت نهٔ لری بغیر دَ هغه چا نه چه دَ رحمٰن نه ئے اجازت نامه حاصله کړی وی[52].
هغوی وائی چه رحمان ځان له ځوک ځوے نیولے دے —— ډیره نامناسبه خبره ده چه

جوړیږل دا معنیٰ لری چه هغوی به دَ هغوی حمایت کوی او دَ هغوی دَ دے حمایت په وجه به دَ هغوی مخالف هغوی ته ضرر هم نهٔ شی کولے.

۵۰ یعنی هغوی به وائی چه نهٔ مونږه دوی ته وئیلی وو چه زمونږه عبادت اُوکړئ او نهٔ مونږه دَ دے نه خبر وُو چه دا بیوقوفان ګنی زمونږه عبادت کوی.

۵۱ مطلب دا دے چه دَ دے دَ زیاتو په وجه ته بے صبره کیږه مهٔ. دَ دوی دَ تباهئ ورځے نږدے شوی دی. دَ دوی پیمانه ډکیدونکی ده. الله چه کوم مهلت دوی له ورکړے دے په هغے کښے څه ورځے باقی دی، پریږده چه هغه پوره شی.

۵۲ یعنی سفارش به دَ هغه چا په حق کښے کیږی چه چا اجازت نامه حاصله کړی وی، او هغه سړے به سفارش کولے شی چه چا ته اجازت نامه ملاؤ شوی وی. دَ آیت الفاظ دا سے دی چه دَ دواړو اړخونو یو شان وضاحت کوی.

دا خبره چه سفارش به صرف دَ هغه چا په حق کښے کیدے شی چه چا دَ رحمٰن نه اجازت نامه حاصله کړی وی، دَ دے مطلب دا دے چه چا په دُنیا کښے ایمان راوړے وی او دَ خدائے سره ئے څه تعلق جوړ کړے وی او خپل ځان ئے دَ خدائے دَ معافئ مستحق کړے وی. او دا خبره چه سفارش به صرف هغه سړے کولے شی چه چا ته اجازت نامه

شَيْـًٔا اِدًّا ﴿٨٩﴾ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنْشَقُّ الْاَرْضُ وَتَخِرُّ
الْجِبَالُ هَدًّا ﴿٩٠﴾ اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا ﴿٩١﴾ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ
اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ﴿٩٢﴾ اِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّآ اٰتِي
الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ﴿٩٣﴾ لَقَدْ اَحْصٰىهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ﴿٩٤﴾ وَكُلُّهُمْ اٰتِيْهِ
يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا ﴿٩٥﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ
لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا ﴿٩٦﴾ فَاِنَّمَا يَسَّرْنٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ

تاسو دَ ځان نه جوړه کړې ده. قریبه ده چه آسمانونه اُوشلیږي، زمکه توټې توټې شي او غرونه را اُوغورزیږي، په دې خبره باندې چه خلقو دَ رحمان دَ پاره دَ اولاد نیولو دعوی اُوکړه! او دَ رحمان دا شان نه دے چه هغه څوک ځوئے اُونیسي. په زمکه او په آسمانونو کښې چه څه دي دا ټول به رحمان ته دَ بندګانو په حیثیت پیش کیږي. ټول دَ هغه په احاطه کښې دي او هغه شمار کړي دي. ټول به دَ قیامت په ورځ هغه ته یو یو حاضریږي.

یقینًا چه کومو خلقو ایمان راوړے[۵۴] او نیک عملونه کوي ډیر زر به رحمان دَ خلقو په زړونو کښې دَ هغوی دَ پاره محبت پیدا کړي. پس اے محمدٌ، دا کلام مونږ دَ آسان کړو ستا په ژبه مونږ نازل کړو

ملاؤ شوی وي، دَ دې مطلب دا دے چه خلقو ځان له کوم سفارشیان نیولی دي هغوی به سفارش نه شي کولے بلکه خدائے چه چاله اجازت ورکړے وي صرف هغه به دَ شفاعت دَ پاره ویناکولے شي.

[۵۴] یعني ن خو دوی دَ مکے په کوڅو کښې ذلیله او خوار ګرځیږي شي، لیکن دا حالت به ډیر نه وي. هغه وخت ډیر نزدے دے چه دوی به دَ خپلو نیکو عملونو او دَ ښو اخلاقو په وجه دَ خلقو خوښ شي. زړونه به دَ دوی طرفته مایل شي. دَ دُنیا خلق به دَ دوی عزت کوي. دَ نافرمانئ او دَ ګناهونو په طاقت باندې، دَ غرور او دَ تکبر په طاقت باندې او دَ دروغو او دَ ریا کارئ په طاقت باندې چه کوم حکومت قائم وي، هغه خلق فرمانبردار کولے شي خو

الْمُتَّقِيْنَ وَتُنْذِرَ بِهٖ قَوْمًا لُّدًّا ﴿۹۷﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ ؕ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴿۹۸﴾

چه ته پرهيزګارو خلقو له زيرے ورکړے او ضدیان خلق اُويرَوے . دَ دوئ نه مخکښے مونږ ډير قومونه هلاک کړي دي، آيا نن تا سو دَ هغوی نښه چرته وينئ يا دَ هغوی کنګوسه قدرله چرته آورئ؟ .

خوز روند منفور کولے نه شي . دَ دے برعکس چه کوم خلق په صداقت او په ديانتدارئ سره په اخلاص او په ښو اخلاقو سره نيغے لارے ته خلق رابلي، دَ هغوئ نه اول اول خلق هر څو مره ځان لرے ساتي، خو آخر به دَ خلقو زړونه هغوئ ته مائله کيږي او د بد عمله خلقو دروغ دَ نياتو وحشت، پورے دَ هغوئ لار نه شي بندولے .

# طٰهٰ

**دَ نازلیدو زمانه** دَدې سورة دَ نازلیدو زمانه دَ سورة مریم دَ زمانې سره نژدې ده. کېدې شي چه دا دَ حبشې دَ هجرت په زمانه کښې یا دَ هغې نه روستو نازل شوې وي. بهرحال دا خبره یقیني ده چه دَ حضرت عمرؓ دَ اسلام قبلولو نه مخکښې دا سورة نازل شوې وُو.

دَ حضرت عمرؓ دَ اسلام قبلولو دَ تولو نه زیات مشهور او معتبر روایت دا دې چه کله هغهٔ دَ نبي صلی الله علیه وسلم دَ قتل په اراده اُووتو نو په لاره کښې ورته یو سړي اُووې چه اول دَ خپل کور خبر واخله، ستا خور او اُوښه دواړه په دې نوي دین کښې داخل شوي دي. دې خبرې په اَوریدو سره حضرت عمرؓ نیغ دَ خپلې خور کور ته لاړو. هلته دَ هغهٔ خور فاطمهؓ بنت خطاب او دَ هغه اُوښه سعید بن زید ناست وُو او دَ حضرت خبابؓ بن ارت نه ئې دَ یوې صحیفې تعلیم حاصلولو چه حضرت عمرؓ ورغے نو خور ئې صحیفه فوراً پټه کړه. لیکن حضرت عمرؓ دَ هغې دَ لوستلو آواز اَوریدلے وُو. هغه اول څه تپوس مپوس اُوکړو او بیائې په خپل اُوښي باندې دَ وهلو شروع اُوکړه. خور ئې دَ هغه دَ بچ کولو اراده اُوکړه نو هغهٔ ئې هم اُووهله اَن تر دې پورې چه دَ هغې سر زخمي شو. آخر دا چه خور او اُوښي دواړو ورته اُووې چه هو، مونږ ه مسلمانان شوي یُو، ته چه څه کولې شې هغه اُوکړه. حضرت عمرؓ چه اُولیدل چه دَ خور دَ سر نه ئې وینه بهیږي نو لږ پښیمانه شو او وې وئیل چه ښه ده ما ته هم هغه څیز اُوښایئ کوم چه تاسو لوستلو. خور ترې اول قسم واغستو چه نه به ئې شلوې. بیائې ورته اُووې چه تر څو پورې غسل نه وي کړے نو ته دې پاکې صحیفې له کوتے نه شې وروړلے. حضرت عمرؓ غسل اُوکړو بیائې هغه صحیفه راواغستله او په لوستلو ئې شروع اُوکړه. په هغې کښې هم دا سورة طٰهٰ لیکلې شوې وُو. دَ لوستلو په دوران کښې ئې ناساپه دَ خولې نه اُووتل "څه ښکلې کلام دے". دَدې خبرې په اَوریدو سره حضرت خبابؓ بن ارت چه دَ دوی نه پټ شوې وُو، بهر ته راأووتو او وې وئیل چه "قسم په خدائې، اُمید دے چه الله تعالیٰ به دَ خپل نبي په دعوت خوریدلو کښې ستا نه دیر خدمت واخلي، پرون ما نبي صلی الله علیه وسلم نه دا اَوریدلي دي چه به هغه دُعا غوښته، ایوالحکم بن هشام (ابوجهل) یا عمر بن خطابؓ په دواړو کښې یو دَ اسلام حامي او مددګار کړه. پس اے عمره دَ الله طرفته روان شه، دَ الله طرف ته روان شه." په دې خبره پاتې شوې کسے پوره شو او په هغه وخت باندې حضرت عمرؓ دَ حضرت خبابؓ سره لاړو او دَ نبي صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې ئې اسلام قبول کړو. دا قیصه دَ حبشې دَ هجرت نه لږه موده روستنۍ ده.

**موضوع او بحث** سورة په دې طریقه شروع شوې ده "اے محمدؐ، دا قرآن دَ دې دَ پاره په تا باندې نه دے نازل کړې شوې چه خامخا ته په مصیبت کښې واچولې شې. ستا نه دا مطالبه نه کیږي چه دَ کافرو ختا نو نه دَ ایمان ویالې جارې کړه، چه څوک نه مني په هغوي ئې په زور اُومنه، او دَ منډیا نو غلطو په زړه ونو کښې

ایمان راپیدا کړو. دا خو بس یو نصیحت دے او یو یادګیرنه ده چه د چا په زړه کښې د الله یره وی او چه څوک د الله د عذاب نه چیچ کیدل غواړی نو چه هغه دے واوری او ځان صحیح کړی. دا د زمکے او د آسمان د مالک کلام دے. او د هغه نه بغیر د بل هیچا خدائی نشته. دا دواړه حقیقتونه په خپل ځائے صحیح دی، خواه که څوک ئے منی او که ئے نه منی.

د دے نه روستو د حضرت موسیٰ قیصه شروع شوی ده. په ظاهره خو دا د یوے قیصے په شکل بیان شوی ده، د هغه وخت حالاتو ته پکښې هیڅ اشاره نشته. لیکن په کوم ماحول کښې چه دا قیصه اوروله شوی ده هغه حالاتو ته چه سړے اوګوری نو دا معلومیږی که چه دا قیصه د مکے خلقو ته په داسے رنګ کښې خپل مطلب بیانوی چه هغه د دے په الفاظو کښې نشته بلکه د دے د مغز نه هغوی راګرځی. د هغے د مطلب بیانولو نه مخکښے ځان په دے خبره بنه پوهه کول پکار دی چه په عربو کښې چونکه یهودیان په کثیر تعداد کښې اوسیدل، او د عربو په خلقو باندې د یهودیانو علمی باد وو، د ایک د رُوم او د حبشے د عیسائی حکومتونو اثر هم په عربو باندې وو، نو په دے وجه په عربو کښې عام طور حضرت موسیٰ علیه السلام منلے شوی نبی منلے شو. په دے حقیقت باندې پوهیدو نه روستو اوس ګورئ چه هغه د مطلب خبرے څه دی چه د دے قیصے په شکل کښې د مکے خلقو ته ښودلے شوی دی:

(۱) الله تعالیٰ چاله نبوت په دے طریقه نه ورکوی چه ډول تماشه اوغږولے شی او خلق را جمع کړے شی او بیا د یو جلس په شکل کښې اعلان اوکړے شی چه فلانے سړے مونږ د نن نه نبی مقرر کړو. نبوت چه چاته ورکړے شو هغه هم د هغے پټ په پټه ورکړے شوے دے لکه څنګه چه حضرت موسیٰ له ورکړے شوے وو. اوس تاسو په دے خبره تعجب ولے کوئ چه محمد صلی الله علیه وسلم تاسو نبی شو او تاسو له راغے، او د هغه د پیغمبرئ اعلان نه د آسمان نه اوشو او نه په زمکه باندې فرښتو د هغے شهرت اوکړو. دا سے اعلانونه د روميو پیغمبرانو په مقرر ولو باندې کله شوی وو چه نن دے هم اوشی؟

(۲) کومه خبره چه نن محمد صلی الله علیه وسلم پیش کوی (یعنی توحید او آخرت) تیک هم دغه خبره الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته ښودلی وه کله چه ئے ورته پیغمبری حواله کوله.

(۳) بیا لکه څنګه چه نن محمد صلی الله علیه وسلم بغیر د څه سازو سامان نه او بغیر د څه لښکرو نه اِکی یوازے د قریشو په مقابله کښې د دعوتِ حق د کار د پاره ودرولے شوے دے، هم دغه رنګه موسیٰ علیه السلام ته ناساپه دومره لوئی کار حواله کړے شوے وو چه لاړشه او د فرعون غوندې جبار باد شاه ته نصیحت اوکړه چه د سرکشئ نه منع شی. د هغه سره هم څه لښکرے وو لیږلے شوے. د الله تعالیٰ معاملے هم دغسے عجیبه دی. یو سړے د مدین نه مصر ته ځی هغه ئے په لاره کښې رانیسی او ځان ته ئے راغواړی او ورته وائی چه لاړشه او د وخت یو لوئی باد شاه سره اوجنګیږه. هغه د پرځه اوکړل خو په د ښواست باندې ئے ورله صرف د هغه رُور د مددګار په طور ورکړو. څه فوځ لښکرے او هاتیان او آسونه ئے ورله د دے لوئی کار د پاره ورنه کړل.

(۴) کوم اعتراضونه او شک شبهے او الزامونه او د ظلم او د مکر فریب چلونه چه نن د مکے خلق

دَ محمد صلی الله علیه وسلم په مقابله کښې کوی دَ دې نه زیات چلونه فرعون دَ موسیٰ علیه السلام په مقابله کښې کړی وُو. بیا اُوګوره چه هغه څنګه په چلو نه بیرو نو کښې نا کامه شو او آخر څوک غالب شو؟ آیا دَ خدائے هغه تش لاسے بنی؟ او که دَ لښکرو والا فرعون؟ په دې سلسله کښې مسلمانانو ته پټه هم اشاره یوه تسلی ورکړې شوې ده چه خپل تش لاس او دَ قریشو ساز و سامان ته مه ګوری، په کوم کار کښې چه دَ خدائے لاس وی هغه په آخر کښې خامخا غالب کیږی. دَ دې سره مسلمانانو ته دَ مصر دَ جادوګرانو نمونه پیش کړې شوې ده چه هر کله هغوی ته حق ښکاره شو نو بغیر د څه ویرې نه ئې پرې ایمان راوړو او بیا که فرعون هر څو مره په سزا ورکولو یرول خو هغوی ئې دَ وینئې هو مره هم دَ ایمان نه وانه روړلے شو.

(۵) په آخر کښې دَ بنی اسرائیلو دَ تاریخ نه یوه واقعه پیش کړې شوې ده او دا وښودلے شوې دی چه اوّل اوّل دیوتاګان او معبودان په کومه طریقه جوړیږی، او بیا دا وښودلے شوې دی چه دَ خدائے نبی هر وخت دا کوشش کړے دے چه دَ دیوتاګانو وغیره لوم نښان ختم شی. پس نن چه محمد صلی الله علیه وسلم دَ شرك او دَ بُت پرستئ کوم مخالفت کوی نو دا دَ نبوت په تاریخ کښې څه اوله واقعه نه ده.

دغه شان دَ موسیٰ علیه السلام دَ قیصے په شکل کښې هغه ټولې خبرې ښکاره کړې شوې دی کومې چه په هغه وخت کښې دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغوی په مقام کښې وې. دَ دې نه پس ستو بولندشان وعظ شوې دے چه دا قرآن یو نصیحت او یادګیرنه ده چه ستاسو ګټو دَ پاره ستاسو په خپله ژبه کښې در لیږلے شوې دے. که په دې مو عمل او کړو او عبرت مو تری واخستو نو دَ خپل ځان سره به نیکړه اُوکړئ. او که مو وُنه منلو نو بد انجام به په خپله اُووینئ.

بیا دَ آدم علیه السلام قیصه بیان شوې ده. په دې کښې دې خبرې ته اشاره شوې ده چه په کوم لاره تاسو روان یئ دا په اصل کښې دَ شیطان پیروی ده. کله نا کله دَ شیطان په دوکه کښې دا تلل خو خیر ده وختی خبره ده چه انسان ترې ډیر په مشکل سره بچ کیدلے شی. لیکن دَ انسان دَ پاره صحیح طریقه دا ده چه کله هغه ته خپله غلطی وراُوښودلے شی نو دَ خپل پلار آدم په شان دِ هغه صفا صفا اُومنی، توبه دِ اُباسی او بیا دِ دَ خدائے دَ اطاعت هیڅ ګټې ته واپس راشی. په خپله غلطئ باندې ټینګیدل، او په نصیحتونو باندې نه واپس کیدل خو خپله خپله په تبر باندې وهل دی، دَ دې نقصان به هغه سړی ته په خپله رسی، بل به هیڅ چا ته نه رسی.

په آخر کښې نبی او مسلمانانو ته وئیلے شوې دی چه دا کوم خلق دَ حق نه منکران دی دَ دوئ په معامله کښې تلوار او بے صبری مه کوئ. دَ خدائے قاعده دا ده چه هغه یو قوم ذکرا فدا نکار په وجه فوراً نه رانیسی بلکه ځان ښه کولو دَ پاره ورله کافی مهلت ورکوی. نو کبراو برئ مه، بلکه په صبر سره دَ خلقو زیاتیانے برداشت کوئ. او دَ نصیحت کولو حق ادا کوئ. په دې سلسله کښې دَ مونځ تاکید شوې دے دَ پاره دَ دې چه په مؤمنانو کښې صبر، برداشت، دَ خدائے په رضا او دَ ځان سره حساب کول، دا قسم صفتونه پیدا شی چه دَ دعوت حق دَ خدمت دَ پاره ضروری دی.

آیاتها ۱۳۵ ‏ سُوْرَةُ طٰهٰ مَكِّيَّةٌ ‏ رکوعاتها ۸

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

طٰهٰ ﴿۱﴾ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى ﴿۲﴾ اِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ﴿۳﴾

تَنْزِيْلًا مِّمَّنْ خَلَقَ الْاَرْضَ وَالسَّمٰوٰتِ الْعُلٰى ﴿۴﴾ اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ

اسْتَوٰى ﴿۵﴾ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ

الثَّرٰى ﴿۶﴾ وَاِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ فَاِنَّهٗ يَعْلَمُ السِّرَّ وَاَخْفٰى ﴿۷﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ

طٰهٰ. مونږه دا قرآن په تا باندې د دې دپاره نه دې نازل کړې چه ته دې په مصیبت کښې پریوځې. دا خو یوه یاد کیرنه ده د هر هغه چا دپاره چه یرېږي. نازل کړې شوې دې د هغه ذات د طرف نه چه زمکه او اوچت آسمانونه ئې پیدا کړي دي. هغه رحمان (د کائناتو) د بادشاهۍ په تخت باندې قائم دې.[2] مالک دې د هغه ټولو څیزونو چه په آسمانونو او په زمکه کښې دي او څه چه د زمکې او د آسمان په مینځ کښې دي او څه چه د خاورو لاندې دي. ته که په زوره خبره اوکړې، خو هغه په پټو خبرو او د نه هم په زیاتې پټې خبرې پوهه دې.[3] هغه الله دې، د هغه نه بغیر بل خدائ

[1] دا فقره د اولنۍ فقرې مطلب ښکاره کوي. چه د دواړو فقرو یو ځلئ اولوستلې شي نو دا مطلب ئې جوړېږي چه د قرآن په نازلولو سره مونږه ستا نه دا کار اخستل نه غواړو چه هغه نه کیدونکې وي تا ته دا خدمت نه دې حواله کړې شوې چه کوم خلق نه منل غواړي ته ئې په هغوي په زور اومنې، او چه د چا زړونو ته ایمان نه کوزېږي نو ته ئې ورته خامخا ورکوز کړې. دا خو بس یو نصیحت او یادکیرنه ده او د دې دپاره در لیږلې شوې دې چه د چا په زړه کښې د خدائ نه څه یره وي چه هغه ئې واوري او په هوش کښې راشي. اوس که چرې څه خلق داسې دي چه د هغوي په زړونو کښې د خدائ یره نشته، او هغوي دا هیڅ پروا نه لري چه حق څه دې او باطل څه دې، نو خامخا په هغوي پورې مختلوې ضرورت نشته.

[2] یعنې د پیدا کولو نه روستو چرته اوده شوې نه دې بلکه په خپله د خپل کائناتو نظام چلوي او په دې ټې پایاوه سلطنت باندې حکومت کوي. هغه یوازې خالق نه دې بلکه عملاً حکمران هم دې.

[3] یعنې چه کوم زور ظلم په تا باندې او ستا په ملګرو باندې کیږي او د کوم شرارتونو په ذریعه چه ستا سو د رسوا کولو کوشش کیږي، دا څه ضروري نه ده چه په دې باندې تاسو په اوچت آواز فریاد اوکړئ. الله ته ښه معلومه ده چه په تاسو باندې څه حالت تیرېږي. هغه ستاسو د زړونو خبرو نه هم خبر دې.

اِلَّا هُوَ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ﴿٨﴾ وَهَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ﴿٩﴾ اِذْ
رَاٰ نَارًا فَقَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا
بِقَبَسٍ اَوْ اَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى ﴿١٠﴾ فَلَمَّآ اَتٰىهَا نُوْدِيَ يٰمُوْسٰى ﴿١١﴾
اِنِّيْٓ اَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ ۚ اِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٢﴾

نشته، بهترین نومونه دَ هغهٔ دَ پاره دی[4]۔
او تا ته دَ موسیٰ څه خبر هم را رسیدلے دے؟ کله چه هغهٔ یو وُور اُولیدو[5] او خپل کور والو
ته ئے اُووے چه "لږ ودریږئ، ما یو وُور لیدلے دے۔ شاید چه ستاسو دَ پاره یوه لمبه
نیمه راورم، یا په دے وُور باندِ ما ته (دَ لارے په حقله) څه پته وُلږی[6]"
هلته چه اُورسیدو نو آواز ورته اُوشو "اے موسیٰ! زهٔ ستا ربّ یم، پیزار اُوباسه[7]۔ ته په مقدس مقام طُویٰ کښے[8] ئے۔

[4] یعنی هغهٔ دَ بهترینو صفتو نو مالک دے۔

[5] دا د هغه وخت قیصه ده کله چه حضرت موسیٰ دَ وطن نه اُوشړلے شو، هغهٔ مَدْیَن ته لاړو او هلته ئے واده اُوکړو او اُوږد وخت ئے تیر ولو، چه هلته ئے یو څو کاله تیر کړل نو دَ خپلے بی بی سره دَ مدین نه مصر ته واپس راروان وُو او دا قیصه اُوشوه۔ دَ دے نه مخکښے قیصه په سورة قصص کښے بیان شوی ده چه دَ هغے خلاصه دا ده چه کله دَ حضرت موسیٰ دَ لاسه یو مصری سړے هلاک شو نو هغهٔ دَ خپلے گرفتاری دَ وجے نه دَ مصر نه مدین ته تلے وُو او هلته ئے پناه اخستلے وه۔

[6] دا ښه معلومیږی چه دا شپه وه او دَ یخنی موسم وُو۔ حضرت موسیٰ دَ سینا په سوېلی علاقه کښے تیریدو۔ هغهٔ دَ لرے نه یو وُور اُولیدو، او دا خیال ئے اُوکړو چه یا خو به هلته لږ وُور ملاؤ شی او دَ بال بچ دَ گرمولو بند وبست به اُوشی، او یا به دَ هغه ځائے نه دا پته اُولږی چه وړاندے لار دَ کوم خوا تللے ده۔ خیال ئے دا وُو چه هلته به ورته دَ دُنیا لار ملاؤ شی، او ملاؤ شوه ورته دَ عقبیٰ لار۔

[7] غالباً دَ دے واقعے دَ وجے نه په یهودیانو کښے دا یو شرعی مسئله جوړه شوه چه دَ پیزار سره مونځ کول جائز نهٔ دی۔ نبی صلی الله علیه وسلم دَ دے غلطئ لیرے کولو دَ پاره اُوفرمائیل خالفوا الیهود فانهم لا یصلون فی نعالهم ولا خفافهم، "دَ یهودیانو خلاف عمل کوئ ځکه چه هغوی دَ پیزارا او دَ څرمنے دَ موزو سره مونځ نهٔ کوی" (ابوداؤد)۔ دَ دے دا مطلب نهٔ دے چه ضرور دَ پیزار سره مونځ کول پکار دی، بلکه مطلب دا دے چه دا سے کول جائز دی، نو په دواړو طریقو باندے عمل کوئ۔ په ابوداؤد کښے دَ عمرو بن عاص روایت دے چه هغه نبی صلی الله علیه وسلم په دواړو طریقو سره په مونځ کولو لیدلے دے۔ په مسند احمد او په ابوداؤد کښے دَ ابوسعید روایت دے چه نبی فرمائی" کله چه په تاسو کښے څوک جومات ته لاړشی نو پیزار ته دِ وا پس اُوگوری۔ که څه گندگی

وَاَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوْحٰى ﴿۱۳﴾ اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا

فَاعْبُدْنِيْ ۙ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ ﴿۱۴﴾ اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ اَكَادُ

او ما ته غوره کړے ئے، وا وره هغه چه شه وحی درته کیږی. زه الله یم، زما نه سوا بل خدائے نشته پس ته زما بندګی کوه او زما د یاد د پاره مونځ قایم کړه. یقیناً قیامت وخت ضرور راتلونکے دے

ورپورے لګیدلی وی نو په زمکه ئے اُومږی او صفا ئے کړی او د دغه پیزار سره مونځ اُوکړی." د ابوداؤد په روایت کښے د نبیﷺ دا الفاظ دی "که په تاسو کښے د چا پیزار په ګندګئ ککړ شوے وی نو خاوره د پاکولو د پاره کافی ده." او د حضرت اُمِّ سلمهؓ په روایت کښے دی، یطهره ما بعدهٗ، یعنی "په یو ځائے کښے په (پیزار بانډی) ګندګی لګیدلی وی نو د تلو تلو سره به په بل ځائے کښے د زمکے سره چنګل هغه ګندګی پاکه شوی وی." د دے کثیرو روایتونو په وجه امام ابو حنیفهؒ، امام ابو یوسفؒ، امام اوزاعیؒ او اسحاق بن راهویه وغیره عالمان د دے خبرے قایل دی چه پیزار په هر حال کښے د زمکے د خاورے سره پاکیږی. یو یو قول د امام احمدؒ او د امام شافعیؒ هم د دے په تائید کښے دے. لیکن د امام شافعیؒ مشهور قول د دے نه خلاف دے. غالباً چه هغه د پیزار سره مونځ کول د ادب نه خلاف ګنړی او په دے وجه ئے منع کوی، اګرچه وئیلے کیږی دا چه د هغه په نزد پیزار په خاورو سره په مږلو بانډی نه پاکیږی. (په دے سلسله کښے دا خبره د ذکر کولو قابله ده چه په مسجد نبوی کښے د پوزی انتظام هم نه وُو، بلکه نرئ باجری په هوریدلی وه. لهٰذا د دے حدیثونو په دلیل سره که څوک د دے زمانے جوماتونو ته د پیزار سره تلل غواړی نو دا به صحیح نه وی. البته په کیا بانډی یا په اَشنا میدان کښے د پیزار سره مونځ کیدے شی. پاتے شو هغه خلق چه پسے پیدلان کښے ځینا نه د مونځ کولو په وخت کښے هم په پیزار پیزار رایستلو بانډی زور ورکوی، نو هغوی په اصل کښے د حکمونو نه خبر نه دی).

۸ـه عام خیال دا دے چه "طویٰ" د دے میدان نوم وُو. لیکن مفسرینو د "وادی مقدس طویٰ" دا مطلب هم بیان کړے دے چه "هغه میدان چه د یو ساعت د پاره مقدس کړے شوے وُو."

۹ـه دلته د مونځ اصلی غرض بیان دلے شوے دے چه سړے د خدائے نه غافل نه شی، د دُنیا دا دوکه کونکی ښکاره نه هغه د دے حقیقت ته بے فکره نه کړی چه زهٔ د چا بنده یم، آزاد او خود مختاره نه یم. د دے فکر د تازه کولو د پاره او تخلیقے سره د تعلق جوړولو د پاره د ټولو نه غوره ذریعه مونځ ده چه هره ورځ څو څو ځله سړے د دُنیا د کشالو نه د خدائے طرف ته بوځی.

ځینو خلقو د دے نه دا مطلب هم اخستے دے چه مونځ قایم کړی د پاره د دے چه زه تاسو یاد کړم. لکه څنګه چه په بل ځائے کښے فرمائی فَاذْكُرُوْنِيْٓ اَذْكُرْكُمْ، "ما یاد کړئ زهٔ به تاسو یاد کړم."

ورسره ورسره د دے آیت نه دا مسئله هم را اُوځی چه د که څوک سړی د مونځ هیر شی نو څنګه ورته وریاد شی نو پکار دی چه مونځ اُوکړی. په حدیث کښے د حضرت انسؓ نه روایت دے چه نبیﷺ اُوفرمائیل مَنْ نَسِیَ صَلٰوةً فَلْیُصَلِّهَا اِذَا ذَكَرَهَا لَا كَفَّارَةَ لَهَا اِلَّا ذٰلِكَ، "د چا نه چه په شه وخت کښے مونځ هیر

أُخْفِيهَا لِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعَىٰ ﴿١٥﴾ فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَا يُؤْمِنُ
بِهَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ فَتَرْدَىٰ ﴿١٦﴾ وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ يَا مُوسَىٰ ﴿١٧﴾ قَالَ
هِيَ عَصَايَ أَتَوَكَّأُ عَلَيْهَا وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِي وَلِيَ فِيهَا مَآرِبُ أُخْرَىٰ ﴿١٨﴾

پټ ساتل غواړم، دپاره د دے چه هر نفس د خپل کوشش مطابق بدل بیا مومی[۱۱]. نو بودا سے سړے چه په هغې ایمان نهٔ راوړي او د خپل نفس د خواهشاتو بنده جوړ شوے دے، هغه تا چرته د ګې وخت د فکر نه منع نهٔ کړي، کنې نو په هلاکت کښې به پریوزې ـــــ او اے موسیٰ، دا ستا په لاس کښې څهٔ دي[۱۲]؟"

موسیٰ جواب ورکړو" دا زما همسا ده زهٔ د دے په سهاره کړځم، په دے پاڼې خپلو ګډو بیزوله پاڼې راڅنډوم، او نور هم ډیر کارونه دي چه زهٔ ئې د دے نه اخلم[۱۳]"

شوے وی نو هغهٔ له پکار دی چه کله ورپادشی نو ؤ ئے کړي، د دے نه بغیر د هغې بله هیڅ کفاره نشته" (بخاري، مسلم، احمد) هم د د غې معنیٰ یو روایت د حضرت ابوهریرهٔ نه هم روایت کړے شوے دے چه مسلم، ابوداؤد او نسائي وغیره راخستے دے. او د ابو قتادهٔ روایت دے چه د نبیؐ نه تپوس اُوکړے شو چه که چرے مونږه د مانځهٔ په وخت کښې اُوده پاتے شوي نو بیا څه اُوکړو؟ نبیؐ ورته اُوفرمایل" په خوب کښې هیڅ قصور نشته، قصور خو د ویښې په حالت کښې دے. هرکله چه په تاسو کښې د یو سړی نه هیر شی یا اُوده شی نو چه کله هغه راپید ار شی یا وریاد شی نو مونځ د اُوکړي" (ترمذی، نسائی، ابوداؤد)

[۱۰] د توحید نه روستو دویم حقیقت آخرت دے چه په هره زمانه کښې تولو پیغمبرانو ته ښکاره کړے شوے دے او هر پیغمبر ته د آخرت په تعلیم ورکولو باندې حکم شوے دے. دلته نهٔ یوازے دا حقیقت بیان کړے شوے دے بلکه د دے مقصد هم ښکاره کړے شوے دے. دا د انتظار وخت به ځکه راځی چه هر سړي په دُنیا کښې کوم کوشش کړے دے چه د هغې بدله په آخرت کښې بیا مومی. او د قیامت د راتلو وخت ځکه پټ ساتلے شوے دے چه د آزمېښت کولو مقصد پوره شی. د چا مرام چه د انجام څهٔ فکروی د هغه سړي به هر وخت د دغې ساعت یره وی او دا یره به هغهٔ د بے لاره کید و نه بچ ساتی. او څوک چه په دُنیا کښې ډوب اُوسیدل غواړي د هغهٔ به دا خیال وی چه قیامت لا لرے هم چرته په نظر نهٔ راځی.

[۱۱] دا تپوس د علم دا وستو د پاره نهٔ وو. دا خو الله تعالیٰ ته معلومه وه چه د موسیٰ په لاس کښې همسا ده. د تپوس کولو مقصد دا وو چه د حضرت موسیٰ په ذهن کښې دا خبره بښه کیني چه دا همسا ګبړه څهٔ نهٔ دي، او بیا د الله د قدرت معجزه ته اُوګوري.

[۱۲] اګرچه په جواب کښې صرف دومره وئیل کافي وو چه جناب دا همساده، لیکن حضرت موسیٰ چه د دے تپوس اُوږد جواب ورکړو نو دا د هغهٔ د هغه وخت د زړهٔ د حالت یوه نقشه پیش کوی. د علمه قاعده خبره ده چه کله یو سړي ته د یو غټ شخصیت سره د خبرو کولو موقع ملاؤ شی نو هغه د خپله

قَالَ اَلْقِهَا يٰمُوْسٰى ﴿۱۹﴾ فَاَلْقٰىهَا فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰى ﴿۲۰﴾ قَالَ خُذْهَا
وَلَا تَخَفْ سَنُعِيْدُهَا سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى ﴿۲۱﴾ وَاضْمُمْ يَدَكَ
اِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ اٰيَةً اُخْرٰى ﴿۲۲﴾
لِنُرِيَكَ مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى ﴿۲۳﴾ اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ﴿۲۴﴾

الله ورته اُوفرمائیل" دا اُوغورزه وه اے موسیٰ"۔
هغهٔ اُوغورزوله او یو دم هغه یو مار وُو چه منډې ئې وهلې۔
الله اُوفرمائیل" دا را اُونیسه اؤ مه یریږه، مونږ به بیا دا هغه کوو لکه څنګه چه وه۔ او دا خپل لاس دِ لیړ شان په ترخ کښې ورکړه، ځلیږ وکښې به را اُوځی بغیر د څه تکلیف نه[13] دا دویمه نښه څکه چه مونږ به تا ته خپلې لوئې نښې ښایو۔ اُوس ته فرعون ته لاړ شه، هغه سرکشه شوے دے"ع

خبره د ا ورېدو لو کوشش کوی د پاره د دے چه د هغه سره ورته د ریا تو خبرو کولو شرف حاصل شی۔

[13] یعنی روښانه به داسے وی لکه نمر، لیکن ما ته به د هغے نه هیڅ تکلیف نه وی۔ په بائیبل کښې د یدِ بیضاء یوه بله معنیٰ شوې ده چه د هغه ځائے نه بیا ز مونږه په عام تفسیرو نو کښې لیکلې شوی ده هغه دا چه حضرت موسیٰ کله په ترخ کښې لاس ورکړو او بیلے را بهر کړو نو ټول لاس ئے لکه د برګی د مریض په شان سپین وُو، چه دوباره ئے بیا په ترخ کښې کیښودو نو په خپل اصل حالت شو په تلمود کښې هم د دے معجزے دا معنیٰ بیان کړے شوې ده او د هغے دا حکمت ښودے شوے دے چه په فرعون باندې برګے وُوا او هغهٔ دا مرض پټ کړے وُو، نو د هغهٔ په مخکښې دا معجزه حکمه پیش کړے شوه چه وګوره دا په یو ساعت کښې د برګی مرض را پیدا کیږی هم او بیا ختمیږی هم۔ لیکن اول خو صحیح طبیعت دا خبره نه خوښوی چه یو نبی له د برګی معجزه ورکړے شی او دهٔه و بیا د یو بادشاه دربار ته اُولیږلے شی۔ دویم دا که چرے فرعون ته پته د برګی بیماری وه نو د یدِ بیضاء معجزه صرف د هغهٔ د ذات د پاره کیدے شوه، د هغهٔ په دربار یانو باندې د دے معجزے هیڅ رُعب نه راتلو۔ لهٰذا صحیح خبره هم هغه ده کوم چه مونږه بره بیان کړې ده چه په دغه لاس کښې به د نمر په شان برقا پیدا کیدلے چه سترګے به ورته بر بیښیدلے۔ په پخوانو مفسرینو مفسرینو د دے دا معنیٰ کړې ده۔

قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ﴿۲۵﴾ وَيَسِّرْ لِيْٓ اَمْرِيْ ﴿۲۶﴾ وَاحْلُلْ
عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ﴿۲۷﴾ يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ﴿۲۸﴾ وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ

موسیٰ عرض اُوکړو، پروردګاره، زما سینه فراخه کړه[۱۳] او زما کار زما دَ پاره آسان کړه او زما دَ ژبې غوټه پرانیزه چه خلق زما په خبره پوهه شی[۱۴] او زما دَ پاره زما دَ خپل خاندان نه یو وزیر

[۱۳] یعنی زما په زړه کښې دَ دے لوئ منصب دَ سنبالولو همت پیدا کړه او زما حوصله زیاته کړه. چونکه دا یو داسے لوئ کار حضرت موسیٰ ته حواله کیدو چه دَ هغه دَ پاره دَ غټ حوصلے ضرورت وُو، نو دَ دے دَ پاره هغهٔ دُعا اوغوښتله چه ماله هغه صبر، هغه صبرا ثنا او هغه برداشت، هغه بهادری او هغه کلکه اراده راکړه کوم چه دَ دے کار دَ پاره پکار دہ.

[۱۵] په بائیبل کښې چه دَ دے کومه تشریح بیان شوی ده هغه دا ده چه حضرت موسیٰ عرض اُوکړو "اے خداونده، زهٔ صفا خبره نهٔ شم کولے، نهٔ اول صفا کولے شوم او نهٔ دَ هغه وخت نه چه تا کالهٔ خپل بندهٔ سره کلام اُوکړو. بلکه بنده بند خبره کوم او زما ژبه تته ده" (خروج ۴:۱۰) لیکن په تلمود کښې دَ دے یو لویه قیصه بیان شوی ده. په هغے کښې دی چه حضرت موسیٰ کله ورکے وُو او دَ فرعون په کور کښې غټیدو، نو یوه ورځ هغهٔ دَ فرعون دَ سر نه تاج راواخستلو او په خپل سر ئے کیښودو. په دے باندے اخبره پیدا شوه چه آیا دے بچی دا کار په اراده سره کړے دے او که نهٔ صے دَ بې پوهے کار دے. آخر دا فیصله اُوشوه چه دَ بچی مخے ته دَ سرهٔ زر او دَ اور دوا په کیښودے شی. هم دغسے اُوشوه دوا ره شیز ونه ئے ورته مخے ته کیښودل او حضرت موسیٰ دَ اور بلا اُوچت کړو او په خوله کښې ئے واچوو. دَ مرګ نه خو بچ شو لیکن په ژبه ئے دَ همیشه دَ پاره تتوالے راغے.

دا قیصه دَ اسرائیلی روایتونو نه زمونږ په تفسیرونو کښې هم اُولیکلے شوه. لیکن عقل دَ دے دَ منلو نه انکار کوی. ځکه چه که چرے بچی دَ اور لاس وروړے هم وی نو دا ممکنه کیدے شی چه هغه وسکرو ته لاس اُوچت کړی او خوله دِ ئے پورې نه وړی. بچے خو چه دَ وُور په ګرموالی پوهه شی نو لاس راغونډوی. خولے ته ورل کښې ځنګه راتلے شی؟ دَ قرآن دَ الفاظو نه چه کوم مخبره زمونږ په پوهه کښې راځی هغه دا ده چه حضرت موسیٰ علیه السلام په خپل ځان کښې دَ خطابت کولو یعنی بل چاته دَ خبرو کولو طاقت نهٔ لیدلو او دَ هغهٔ سوچ فکر وُو چه دَ نبوت دَ کار دَ پاره که چرته دَ تقریر کولو ضرورت راشی (چه تر دغه وخته پورے هغهٔ چرته تقریر نهٔ وُو کړے) نو دَ هغه دَ طبیعت شرمګیری به پکښې په منځ کښې خنډ جوړ شی. دَ دے وجے نه هغهٔ دُعا اُوغوښتله چه اے الله زما دَ ژبې غوټه پرانزه چه په خپله خبره خلق پوهه کړے شم. دا شیز وُو چه په دے فرعون هغهٔ له پیغوره ورکړو چه "دا سړے خو خپله خبره هم پوره نهٔ شی بیا نولے" (وَلَا يَكَادُ يُبِيْنُ) (الزخرف ـ ۵۲) او دا هغه کمزوری وه چه حضرت موسیٰ ته معلومه وه او دَ مدد دَ کار په طور ئے خپل مشر ورور حضرت هارون دَ خدائے نه اُوغوښتو. په سورة قصص کښې دَ هغهٔ دا قول نقل کړے شوے دے "وَاَخِيْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّيْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْاً" زما ورور هارون زما

أَهْلِي ﴿٢٩﴾ هٰرُونَ أَخِي ﴿٣٠﴾ اشْدُدْ بِهِ أَزْرِي ﴿٣١﴾ وَأَشْرِكْهُ فِي أَمْرِي ﴿٣٢﴾
كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا ﴿٣٣﴾ وَنَذْكُرَكَ كَثِيرًا ﴿٣٤﴾ إِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيرًا ﴿٣٥﴾
قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يٰمُوسٰى ﴿٣٦﴾ وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً أُخْرٰى ﴿٣٧﴾
إِذْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ مَا يُوحٰى ﴿٣٨﴾ أَنِ اقْذِفِيهِ فِي التَّابُوتِ فَاقْذِفِيهِ
فِي الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِي وَعَدُوٌّ لَهُ

مقرر کړه. هارون چه زما ورور دے[۱۶]. دَ هغهٔ په ذریعه زما ملا مضبوطه کړه او هغه زما په کار کښے شریک کړه، دَ پاره دَ دے چه مونږه به ستا پاکی بیان کړو او به ستا شهرت اُوکړو. ته همیشه زمونږ په حال باندے نګران یے."

الله اُوفرمائیل، "درکړے شو هغه څه چه تا غوښتل اے موسیٰ. مونږ بیا یو ځل په تا باندے احسان اُوکړو[۱۷]. یاد کړه هغه وخت چه کله مونږ ستا مور ته اشاره اُوکړه، دا سے اشاره چه د وحی په ذریعه کیدے شی چه دا بچے په صندوق کښے واچوه او صندوق په دریاب کښے پریږده دریاب به ئے غاړے ته اُوغورزوی او هغه به اوچت کړی چه هغه زما او دَ دے بچی دُشمن دے

نه زیات په صفائی سره خبری کولے شی، هغه زما سره دَ مددګار په طور اُولیږه." ورپسے بیا دا معلومیږی چه دَ حضرت موسیٰ دا کمزوری لرے شوی وه او هغهٔ به زور دار تقریر کولے شو، چنانچه په قرآن کښے او په بائیبل کښے چه دَ هغهٔ کوم روستنی تقریرونه راغلی دی په هغے کښے دَ ژبے ښهٔ صفائی او روانی ده.

دا خبره دَ عقل نه خلاف ده چه الله تعالیٰ دِ هغهٔ سرے خپل رسول مقرر کړی چه دَ هغهٔ ژبه دِ تته وی او سے دوغه روغه خبره دِ نه شی کولے. رسولان همیشه دَ شکل او دَ شخصیت او دَ صلاحیتونو په لحاظ سره بهترین خلق وی دَ هغوی ظاهر او باطن دواړه داسے وی چه هم په زړونو اثر کوی او هم په سترګو اثر کوی. یو رسول هم دَ داسے عیب سره نهٔ دے رالیږلے شوے، او نهٔ رالیږلے کیدے شو چه دَ هغے په وجه هغهٔ په خلقو کښے په خندا جوړه شی یا ورته په سپک نظر اُوکتے شی.

[۱۶] دَ بائیبل دَ روایت مطابق حضرت هارون دَ حضرت موسیٰ نه درے کاله مشر وُو (خروج ۷:۷).

[۱۷] دَ دے نه روستو الله تعالیٰ حضرت موسیٰ ته هغه یو یو احسان وریاد وی چه دَ پیدائش دَ وخت نه تر دے وخته پورے په هغهٔ باندے کړی وُو. دَ دے واقعاتو تفصیل په سورة قصص کښے بیان شوے دے. د لته صرف اشارات شوی دی چه مقصد ئے دا دے چه حضرت موسیٰ ته دا وښائی چه ته دَ څه کار دَ پاره پیدا کړے شوے یے او دَ څه کار دَ پاره دَ نن ورځے پورے ستا پرورش خاص طور په سرکاری نګرانی کښے کیدو کوم چه اوس تا ته حواله کیږی

وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي ۚ وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي ﴿۳۹﴾ إِذْ
تَمْشِي أُخْتُكَ فَتَقُولُ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن يَكْفُلُهُ ۖ فَرَجَعْنَاكَ
إِلَىٰ أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ۚ وَقَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنَاكَ
مِنَ الْغَمِّ وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا ۚ فَلَبِثْتَ سِنِينَ فِي أَهْلِ مَدْيَنَ
ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ يَا مُوسَىٰ ﴿۴۰﴾ وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي ﴿۴۱﴾ اذْهَبْ
أَنتَ وَأَخُوكَ بِآيَاتِي وَلَا تَنِيَا فِي ذِكْرِي ﴿۴۲﴾ اذْهَبَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ
طَغَىٰ ﴿۴۳﴾ فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ ﴿۴۴﴾

ما دَ خپل طرفه په تا باندې محبت راخور کړو او ددې انتظام مې اوکړو چه ته زما په نګرانۍ کښې اُوپالَلے شې. یادکړه (هغه وخت) کله چه ستا خور روانه وه، بیا چه ورغله نو وائي، آیا زه درته دَ هغه چا پته درکړم چه دَ دے بچي به ښه پالنه اوکړي؟ دغه شان مونږه ته بیا خپلې مور ته اوروسولې چه دَ هغې سترګے (د ربانۍ) خوږے شي او هغه غمژنه نه شي. او (دا هم یادکړه چه) تا یو سړے قتل کړے وُو، مونږه ته دَ هغه مصیبت نه راأوویستلے او دَ مختلفو آزمیښتونو نه مو واړولے او ته کُمَدیَن په خلقو کښې دیرکلونه اُوُسیدلے. بیا اُوس ټیک په خپل وخت باندې راغلے یې ته اے موسیٰ. ما ستا نه دَ خپل کار سړے جوړ کړے دے لاړشه، ته او ستا رُور زما دَ نښو سره اوګورئ، تاسو زما په یاد و نو کښې کے مه کوئ، ځئ لاړشئ تاسو دواړه فرعون ته، ځکه چه هغه سرکشه شوے دے. دَ هغه سره په نرمۍ خبره اُوکړئ کیدے شي چه هغه نصیحت قبول کړي یا اُویَریږي.[18]

[18] دَ سړي نیغ لاره ته دَ راتلو دوه طریقے دي. یا خو هغه دَ پوهے او دَ نصیحت په ذریعه صحیح لار اختیار وي. یا بیا دَ بد انجام نه اُویَریږي او صحیح شي.

قَالَا رَبَّنَآ اِنَّنَا نَخَافُ اَنْ يَّفْرُطَ عَلَيْنَآ اَوْ اَنْ يَّطْغٰى ﴿۴۵﴾ قَالَ لَا تَخَافَآ
اِنَّنِيْ مَعَكُمَآ اَسْمَعُ وَاَرٰى ﴿۴۶﴾ فَاْتِيٰهُ فَقُوْلَآ اِنَّا رَسُوْلَا رَبِّكَ فَاَرْسِلْ
مَعَنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ۭ قَدْ جِئْنٰكَ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ ۭ وَالسَّلٰمُ
عَلٰي مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى ﴿۴۷﴾ اِنَّا قَدْ اُوْحِيَ اِلَيْنَآ اَنَّ الْعَذَابَ عَلٰي مَنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ﴿۴۸﴾

۱۸ الف
دواړو عرض اوکړو "پروردګاره، موږ سره يره ده چې هغه به په موږ باندې زياتے اوکړي يا به مو
اوو هي."

الله اوفرمائيل "يرېږئ مه، زه درسره يم، هر څه اورم او وينم. دواړه هغه له ورشئ او ورته
اووايئ چې موږ دواړه ستا د رب استازي يو، بني اسرائيل پرېږده چې زموږ سره لاړ شي او هغوئ له
تکليفونه مه ورکوه. موږ درته ستا د رب نښه راوړي ده او سلامتيا ده د هغه چا د پاره چې په
نيغه لار روان شي. موږ ته دا خبره د وحي په ذريعه ښودلے شوې ده چې عذاب دے د هغه
چا د پاره چې هغه دروغ اوګڼړي او مخ واړوي."[۱۹]

۱۸ الف معلومېږي چې دا کله وخت خبره ده چې کله حضرت موسیٰ مصر ته اورسيد او حضرت هارون
ورسره عملاً په کار کښې شريک شو. په دغه وخت کښې به فرعون ته د ورتللو نه مخکښې دواړو الله تعالىٰ ته دا درخواست
کړے وي.

۱۹ دا واقعه چې په بائبل او په تلمود کښې په کومه طريقه بيان کړے شوې ده هغه هم يو نظر اوګورئ
چې دا اندازه درته معلومه شي چې قرآن مجيد د پيغمبرانو ذکر په کوم شان سره کوي او د بني اسرائيلو په
روايتونو کښې د هغې کوم شکل پيش کړے شوے دے. د بائبل بيان دے چې کله په اول ځل خدائے موسیٰ ته
اووے چې "اوس تا زه فرعون ته ليږم چې ته زما قوم بني اسرائيل د مصر نه راوباسے" نو حضرت موسیٰ ورته
په جواب کښې اووئيل "چې زه څوک يم چې فرعون ته به ورشم او بني اسرائيل به د مصر نه راولم." بيا
خدائے پاک حضرت موسیٰ ډيرڅه پوه کړو، حوصله ئې ورله اوچته کړه، معجزے ئې ورله ورکړے،
ليکن حضرت موسیٰ بيا دا اووے چې "اے خداونده، زه درته منت کوم چې بل هرڅوک چې ته غواړې
د هغه په لاس دا پيغام اوليږه" (خروج ۴). د تلمود روايت د دے نه هم يو څو قدمه وړاندې دے. د
هغه بيان دے چې د الله تعالىٰ او د حضرت موسیٰ په مينځ کښې د اوو ورځو پورے په دے خبره باندې بحث
کيدو. الله به وئيل چې نبي شه، خو موسیٰ به وئيل چې زما ژبه نه پرانستلے کيږي زه څنګه نبي شم.
آخر الله اووئيل چې زه په دے خوشحاله يم چې ته نبي شے. حضرت موسیٰ ورته اووئيل چې د لوط د بچ کولو
د پاره تا فرښتے رالېږلے، هاجره چې کله د ساره د کور نه راؤوتله نو د هغې د پاره دې پينځه فرښتے
رالېږلے، او اوس خپل خاص بچي (بني اسرائيل) د مصر نه د ايستلو د پاره ته ما ليږے ...

قَالَ فَمَنْ رَّبُّكُمَا يٰمُوْسٰى ﴿۴۹﴾ قَالَ رَبُّنَا الَّذِيْٓ اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ

فرعون[۲۰] اُووئے "بنه، نو بیا ستاسو دَ دواړو رب څوک دے اے موسیٰ؟"[۲۱]
موسیٰ ورته اُووئے "زمونږ رب هغه دے چه هر شیز ته ئے خپل شکل ورکړو،

یانې خدائے ناراضه شو او پیغمبرئ کښے ئے ورسره حضرت هارون شریک کړو او دَ موسیٰ اولاد ئے دَ کهانت د کار نه (یعنې دَ غیبو خبرو ښودلو نه یا دَ علم نجوم نه) محروم کړو او دا کار ئے دَ هارون اولاد ته ورکړو — دا هغه کتابونه دی چه دَ دے په حقله په شرمه خلق وائي چه په قرآن کښے دا قیصے دَ دے کتابونو نه رانقل کړے شوی دی.

[۲۰] دلته دَ قیصے دا تفصیلات پرینبودے شوی دی چه حضرت موسیٰ څنګه فرعون ته ورورسید او خپل دعوت ئے ورته څنګه پیش کړو. دا تفصیلات دَ سورة اعراف په دیارلسم رکوع کښے تیر شوی دی او ورانبو دَ سورة شعراء په دویم دریم رکوع کښے، دَ سورة قصص په څلورم رکوع کښے او دَ سورة نازعات په اوله رکوع کښے راروان دی.
دَ فرعون په حقله دَ ضروری معلوماتو دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن دویم جلد، الاعراف، حاشیه ۸۵.

[۲۱] په دواړو رونړو کښے چونکه اصلی دعوت ورکونکے موسیٰ علیه السلام وُو نو په دے وجه فرعون هغه خبرو اُوکړه. او کیدے شی چه هغه ته دَ خبرو کولو دا مقصد هم وُو چه حضرت هارون له دَ خبرو کولو موقع ورنه کړی ځکه چه هغه په خبرو کښے چالاک وُو او دَ حضرت موسیٰ دَ غیر چالاکئ نه فائده واخلی.
دَ فرعون دَ دے تپوس مطلب دا وُو چه تاسو دواړو څوک شان له رب جوړ کړے دے. دَ مصر او دَ مصر دَ خلقو خو زهٔ رب یم. په سورة نازعات کښے دَ هغهٔ دا قول نقل کړے شوے دے چه اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى "اے مصروالو، ستاسو رب اعلیٰ زهٔ یم". په سورة زخرف کښے هغه په ډک دربار کښے وائي يٰقَوْمِ اَلَيْسَ لِيْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِيْ "اے قومه، آیا دَ مصر پادشاهی زما نه ده؟ او دا نهرونه زما لاندے نه بهیږی؟" (آیت ۵۱). په سورة قصص کښے هغهٔ دَ خپلو درباریانو په مخکښے دا لاپه کړه يٰاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِيْ فَاَوْقِدْ لِيْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ فَاجْعَلْ لِّيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَطَّلِعُ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى "اے دَ قوم سردارانو، ما ته نه دی معلوم چه زما نه بغیر ستاسو بل اِلٰه شته. اے هامانه، لږ خښتے پخے کړه او یو دنګ عمارت زما دَ پاره تیار کړه چه لږ شانے بره اُوخیژم او وګورم چه دا دَ موسیٰ خدائے دے" (آیت ۳۸) په سورة شعراء کښے هغهٔ حضرت موسیٰ ته په رټنه سره وائي چه لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِيْ لَاَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ "که چرے تا زما نه بغیر بل څوک المعبود کړو نو یاد ساته چه زهٔ به تا جیل ته اُولیږم" (آیت ۲۹).
دَ دے دا مطلب نه دے چه فرعون دَ خپل ځان یو معبود وُو او هغه دَ هغهٔ نه بغیر دَ بل چا عبادت نه کیدو. دا خبره مخکښے تیره شوی ده چه فرعون به ویل چه زهٔ نمرديوتا (رع یا راع) یم او په انسانی شکل کښے راغلے یم او ما ته دَ بادشاهئ کولو حق حاصل دے، او دَ مصر دَ تاریخ نه دا خبره هم ثابته ده چه دَ هغوی

ثُمَّ هَدٰى ﴿٥٠﴾ قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُوْنِ الْاُوْلٰى ﴿٥١﴾

او بیا ئې ورته لار اُوښودله ؐ۳۳

فرعون اُووې" او هغه چې کوم نسلونه تېر شوی دی نو د هغوئ بیا څه حالت وُو ؟ ۳۴

په مذهب کښې به د ډېرو دیوتاګانو او دیویانو عبادت کیدلو. نو د فرعون دعوٰی دا نه وه چې زه یوازې د عبادت مرکزیم. بلکې د هغه دعوٰی دا وه چې عملاً د مصر انتظام او پالنه او سیاسي خدائي زما ده او د نظریې په لحاظ سره په اصلي معنو کښې د ټولو انسانانو سیاسي پالنه زما حق دے، هغه دے خبره منلو ته تیار نه وُو چې زما د پاسه د یوه بل حکمرانه هستي وي او د هغه نمائنده دې په ما حکم اوکړي او د هغې د منلو مطالبه د زمانه اوکړي. فرعون چې کومے اُوچتې خبرې کولے د هغې په وجه ځینې خلق دوکه شوی دی او وائي چې فرعون د الله تعالیٰ نه منکر وُو او ځان له ئې د خدائي دعوٰی کړې وه. لیکن دا خبره د قرآن نه ثابته ده چې هغه په عالم بالا کښې د بل چا حکمراني او بادشاهي منله. سورة مؤمن آیتونه د ۲۸ نه د ۳۴ پورې او سورة زخرف آیت ۵۳ په غور سره اُوګورئ. دا آیتونه په دې خبره ګواهي کوي چې د الله تعالیٰ نه او د فرښتو نه د هغه انکار نه وُو. البته هغه چې د کوم څیز منلو ته تیار نه وُو هغه دا وُو چې د هغه په سیاسي خدائي کښې ځوک دخل اوکړي او د الله رسول پرې راشي او په هغه دې حکم اُوچلوي. (د زیاتې تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن دریم جلد، القصص، حاشیه ۵۳).

۳۳ یعني موږ په هر لحاظ سره صرف هغه رب منو. زموږ په نزد پالونکے، مالک، حاکم او بادشاه هر څه هغه دے. د هغه نه بغیر بل رب موږ په هیڅ لحاظ سره نه منو.

۳۴ یعني د دُنیا هر څیز چې په کوم شکل جوړ شوے دے، دا د هغه په حکم جوړ شوے دے. د هر څیز چې کوم جوړښت او شکل دے، او هر څیز کښې چې کوم طاقت او صفت دے دا د هغه بخښش دے. لاس ته په دُنیا کښې د خپل کار کولو د پاره د کوم شکل ضرورت وُو هغه ئې هغه له ورکړو او خپو ته چې د کوم مناسب شکل ضرورت وُو هغه ئې هغوئ له ورکړو. انسان، ښتاور، کاڼي، بوټي، هوا، اُوبه، رڼا او هر څیز ته الله تعالیٰ هغه خاص شکل ورکړے دے چې په کائنات کښې د خپل خپل کار د پوره کولو د پاره هغه ته د هغې ضرورت وُو.

بیا الله تعالیٰ دا هم نه دی کړي چې په خاص شکل باندې د پیدا کولو نه روستو ئې هر څیز هم داسې پرېښودو بلکې د پیدا کولو نه روستو هغه د هر څیز رهنمائي هم کوي یعني هر څیز ته خپله خپله لاره هم ښائي. د دُنیا یو څیز داسې نشته چې هغه ته ئې د خپل شکل نه د کار اخستلو او د خپل مقصد پوره کولو طریقه نه وي ښودلې. غوږ ته اوریدل او سترګو ته لیدل هغه ښودلي دی. ماهي ته لامبو وهل او مرغۍ ته الوتل هغه ښودلی دی. وَنې ته میوې او ګل نیول او زمکے ته بوټي راټوکول هغه ښودلي دی. غرض دا چې هغه یوازې د ټول کائنات او د هر څیز خالق نه دے، بلکې د ټولو ښودونکے او د ټولو معلم هم دے.

په دے مختصره او کوتلې جمله کښې ورته حضرت موسٰی صرف دا اُونه ښودل چې د هغه رب څوک دے،

قَالَ عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ فِيْ كِتٰبٍ ۚ لَا يَضِلُّ رَبِّيْ وَلَا يَنْسَى ﴿۵۲﴾

موسیٰ اُووے "د هغوی علم زما د رب سره په یو کتاب کښې محفوظ دے. زما رب نه خطا کیږی نه ئے هیریږی"۲۵

بلکه دا ئے ورته هم اُوښودل چه هغه ولے رب دے او په څه وجه د هغه نه بغیر بل رب نه شی کیدے. د دغې سره د دے دلیل هم په دے وړو فقرو کښې راغلے دے. بیکاره خبره ده چه هر کله فرعون او د هغه د رعیت هر سړے د خپل وجود د پاره د الله احسانمند دے، او هر کله چه په هغوی کښې یو تن هم ترمخے د یو سیکنډ د پاره ژوندے نه شی پاتے کیدے ترڅو چه د هغه زړه او د هغه پرپوس او د هغه معده د الله د ښودلی شوی لارې مطابق خپل کار او نه کړی، نو د فرعون دا دعوی چه هغه د خلقو رب دے، او د خلقو دا خبره منل چه هغه واقعی رب دے، د ټیټے بیوقوفتیا نه بغیر بل هیڅ نه شی کیدے.

د دے نه علاوه، په دے وړه شان فقره کښې حضرت موسیٰ اِشارتاً د رسالت دلیل هم پیش کړو چه هغه فرعون نه منلو. د هغه په دلیل کښې دا اشاره معلومیږی چه خدائے پاک چه ټولو کائناتو ته لار ښودونکے دے، او هر څیز ته د هغه د حالت او د ضرورت مطابق لار ښائی، نو د هغه د دے عالمگیر هدایت تقاضا دا ده چه هغه انسان ته د ژوندون تیرولو لار هم اُوښائی. او د انسان د ژوند تیرولو د پاره د رهنمائی هغه شکل موزون نه شی کیدے کوم چه د مچۍ او د چرګے د پاره موزون دے. د دے د ټولو نه زیات مناسب شکل دا دے چه د الله تعالیٰ د طرفه د انسانانو د هدایت د پاره یو عقلمند انسان مقرر کړے شی او هغه د انسانانو عقل او فکر ته اپیل اُوکړی او هغوی ته نیغه لار اُوښائی.

۲۴ یعنی که چرے خبره داوی چه چا هر څیز له خپل شکل ورکړو او په ژوند کښې ئے ورته د کار کولو لار اُوښودله د هغه نه بغیر بل هیڅوک رب نشته، نو دا زمونږ د ټولو پلرونو نیکونو چه د سوونو کالو راسے پشت په پشت د نورو خدایانو بندګی کوی، ستاسو په نزد د هغوی څه حالت دے؟ آیا هغوی ټول ګمراهان وو؟ آیا هغوی ټول د عذاب مستحق وو؟ آیا هغوی ټول بے عقله وو؟ ۲۰ او دا د فرعون سره د حضرت موسیٰ د دے دلیل جواب. کیدے شی چه هغه دا جواب د ناپوهیٰ په وجه ورکړے وی او کیدے شی چه د شرارت په وجه ئے ورکړے وی. او دا هم کیدے شی چه په دے کښې د یو څه څیرے شانطے وی یعنی هغه چیلم په دے خبره باندے سخت غصه شوے وی چه په مذهب کښې خو زمونږ د ټولو نیکونو نیکان په ګمراهۍ کښې راځی، او کیدے شی چه دا مقصد ئے هم وُو چه د خپلو درباریانو او د مصر د عام خلقو په زړو کښې د حضرت موسیٰ د دے دعوت خلاف تعصب را پیدا کړی. د حق پرستو د تبلیغ خلاف هیشه دا دوکه درکے شوی دی او د ناپوهه خلقو په غصه کولو کښې ئے ډیر اثر کړے دے. خاص طور په هغه زمانه کښې کله چه د قرآن دا آیتونه نازل شوی وو، په مکه کښې د نبی صلی الله علیه وسلم د دعوت خلاف کافر د ټولو نه زیات په دے طریقه کیدو، نو ځکه د حضرت موسیٰ په مقابله کښې د فرعون د دے چالاکۍ ذکر دلته بالکل په موقع باندے وُو.

۲۵ د حضرت موسیٰ دا جواب د حکمت نه ډک جواب دے او د دے نه د تبلیغ حکمت ...



الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ مَهْدًا وَّ سَلَكَ لَكُمْ فِيْهَا سُبُلًا وَّ

اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ؕ فَاَخْرَجْنَا بِهٖۤ اَزْوَاجًا مِّنْ نَّبَاتٍ شَتّٰى ﴿۵۳﴾

كُلُوْا وَارْعَوْا اَنْعَامَكُمْ ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى النُّهٰى ﴿۵۴﴾ مِنْهَا

خَلَقْنٰكُمْ وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى ﴿۵۵﴾

---

۲۶ هم هغه چه ستاسو دَ پاره ئے دَ زمکے فرش اُوغوړوُو، او په هغے کښے ئے ستاسو دَ تلو دَ پاره لارے جوړے کړے، او دَ بره نه ئے اُوبه رااُووَرولے. بیا ئے دَ هغے په ذریعه قسما قسم پیدا وار دَ بوټو جوړے خوړئ او خپل څاروی هم څروئ. بیشکه چه په دے کښے ډیرے نخښے دی دَ عقلمندو خلقو دَ پاره. ۲۷ دَ دے زمکے نه مونږ تاسو پیدا کړی یئ، ۲۸ دَ دے نه به مو واپس بوزو او دَ دے نه به مو دوباره رااُوباسو. ۲۹

---

دَ فرعون دا مقصد وُو چه دَ ټول قوم خلق حضرت موسیٰ ته په غصه کړی. که حضرت موسیٰ دا ویلے وے چه هَو هغوئ ټول گمراهان او جاهلان وُو او هغوی ټول به دَ دوزخ خشاک وی، نو اگرچه دا به دَ حق وینا کولو یوه زبره ستنمونه وه، لیکن په دے جواب سره به دَ حضرت موسیٰ په مقابله دَ فرعون مقصد زیات ترسره شوے وے. ځکه ورته حضرت موسیٰ ډیر په هوښیارتیا سره داسے جواب ورکړو چه منصف هم وُو او دَ فرعون نهریله مقصد ترهم ترسره نه شو. هغهٔ ورته اُوفرمائیل چه هغوی که هر څنگه وُو خو په دُنیا کښے ئے خپل کار کړے دے او خپل خدائے له تلی دی. زما سره دَ هغوئ دَ عملونو او دَ هغوئ دَ نیتونو معلومولو هیڅ ذریعه نشته چه زهٔ دَ هغوئ په باره کښے څه حکم اُولگوم. دَ هغوئ ټول عمل دَ الله سره محفوظ دے. دَ هغوئ یو یو حرکت الله ته معلوم دے. نه دَ خدائے دَ نظر نه څه هیڅ پاتے کیدے شی او نه دَ هغهٔ نه څه هیریږی. دَ هغوئ سره چه خدائے هر څه کوی هغه الله ښهٔ پیژنی. ما او تاسو له دا فکر نهٔ دے پکار چه هغوئ څه کول او دَ هغوی انجام به څه وی. مونږ له خو دَ دے خبرے فکر پکار دے چه زمونږ عمل څنگه دے او زمونږ به څه انجام وی.

۲۹ دَ کلام دَ الله انداز نه صفا معلومیږی چه دَ حضرت موسیٰ جواب په "نه ئے هیریږی" باندے ختم شو او دَ دے ځائے نه دَ پیرگراف دَ آخره پورے ټول عبارت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ تشریح او یادگیرنے په طور ارشاد شوے دے. په قرآن کښے دغسے مثالونه ډیر زیات دی چه کله یوه تیره شوی یا راتلونکی واقعه بیانیږی او په هغے کښے دَ یو سړی یو قول نقل کړے شی نو دَ هغه نه روستو زر پوښو فقرے دَ نصیحت په طور یا دَ تشریح او وضاحت په طور زیاتے بیانیږی او صرف دَ کلام دَ انداز نه دا پته لگی چه دا دَ هغه سړی قول نهٔ دے چه اول ئے ذکر کیدو، دا دَ الله تعالیٰ خپل قول دے.

یاد ساتئ چه دَ دے عبارت تعلق یوازے دَ دے تردے فقرے "زما رب نه خطا کیږی او نه ئے هیریږی" سره نهٔ بلکه دَ حضرت موسیٰ دَ ټول کلام سره دے چه دَ رَبُّنَا الَّذِىْٓ اَعْطٰى كُلَّ شَىْءٍ نه شروع شوے دے.

وَلَقَدْ اَرَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَاَبٰى ﴿۵۶﴾ قَالَ اَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ اَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يٰمُوْسٰى ﴿۵۷﴾ فَلَنَاْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِّثْلِهٖ فَاجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا لَّا نُخْلِفُهٗ نَحْنُ وَلَآ اَنْتَ مَكَانًا سُوًى ﴿۵۸﴾

موږ فرعون ته خپلې ټولې نښې اُوښودلې ^۲۹ خو هغهٔ دروغ اُوګڼلې او انکار ئې اُوکړو. ده وئیل "اے موسیٰ، آیا ته موږ ته دَدے دَپاره راغلے یې چه دَ خپل جادو په زور موږ دَ خپل ملک نه بهر اُوباسې؟ ^۳۰ ښه ده، موږ هم ستا په مقابله کښې دَ غسې جادو راوړاندې کوو. مقرر کړه چه کوم ځائے کښې به مقابله وی او کله به وی. نه به موږ دَ دے مقررے وعدے نه اوړو او نه به ته ـ ښکاره میدان ته را وړاندې شه."

۲۷ یعنی کوم خلق چه دَ پاک عقل نه کار اخلی او حق تلاش کول غواړی نو هغوی ته دے نښو په مدد سره دَ حقیقت منزل ته دَ رسیدو لار معلومولے شی. دا نښے به هغوی ته دا حقیقت اُوښائی چه دَدے کائنات رب دے او دَ هر څیز پالنه هغه کوی. دَ بل رب دَپاره دلته هیڅ ګنجائش نشته.

۲۸ یعنی هر انسان به خامخا دَ درېو مرحلو نه تیریږی. یو مرحله په دُنیا کښې دَ پیدائش نه تر مرګه پورې. دویمه مرحله دَ مرګ نه دَ قیامته پورې او دریمه دَ قیامت په ورځ دَ دوباره ژوندی کیدو نه روستنئ مرحله. دا دریه واړه مرحلے به دَ دے آیت ترجمه په دے زمکه باندې تیریږی.

۲۹ یعنی دَ دُنیا او دَ نفس دَ دلیلو نه هم او هغه معجزے هم کوم چه حضرت موسیٰ ته ورکړے شوے وے. په قرآن کښې په دیرو ځایونو کښې دَ حضرت موسیٰ هغه تقریرونه هم شته کوم چه هغهٔ دَ فرعون دَ پوهه کولو دَپاره کړی وُو. او دَ هغه معجزو ذکر کښې هم شته کوم چه فرعون ته مسلسل ښودلی شوی وے.

۳۰ دَ جادو نه مراد دَ همسا او دَ ځلنده لاس (یعنی ید بیضا) معجزه ده چه تفصیل ئې په سورة اعراف او په سورة شعراء کښې شوے دے. او دَ دغے تفصیل مطابق حضرت موسیٰ دَ اول ملاقات په وخت کښې دا معجزه په ډک دربار کښې پیش کړی وه. او دَ دے معجزے په لیدو سره چه کومه وارخطائی په فرعون باندې راغلې وه دَ هغے اندازه دَ هغهٔ دَ دے فقرے نه لګیدے شی چه "ته دَ جادو په زور موږ دَ خپل ملک نه بهر ایستل غواړې". دَ دُنیا په تاریخ کښې نه مخکښې چرے داسے واقعه راغلې وه او نه روستو چرے راغله چه یو جادوګر دَ خپل جادو په زور یو ملک فتح کړے وی. دَ فرعون په خپل ملک کښې په سوګونو او په زرګونو جادوګران موجود وُو چه خلقو ته به ئې تماشے ښودلے او انعامونه به ئې تری غوښتل. نو فرعون چه یو طرفته دا وئیل چه ته جادوګرئے، او بل طرفته ئې دا خطره ظاهروله چه ته زما نه باداشاهی اخستل غواړې، نو دا دَ هغهٔ دَ وارخطائی ښکاره ثبوت دے. په اصل کښې هغهٔ چه دَ حضرت موسیٰ کوم دَ عقل نه ډک او مدلل تقریرونه واوریدل او بیا ئې دَ هغه معجزه اولیدله نو په دَ پوهه شو چه دَ دے اثر به نه یوازے زما په درباریانو باندې کیږی بلکه زما دَ رعیت په عامو خاصو

قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّيْنَةِ وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ﴿۵۹﴾ فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ

فَجَمَعَ كَيْدَهٗ ثُمَّ اَتٰى ﴿۶۰﴾ قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوْا عَلَى

موسیٰ اُوویل چه دَ جشن ورځ مقرر شوه، او په رڼا ورځ دِ خلق راجمع شی.[۳۱]
فرعون واپس شو او خپله ټوله اګے دُوکے ئے راجمع کړه او مقابلے له راغے.[۳۲]
موسیٰ (عین په موقع باندِ دَ مخالفو ډلے خلقوته مخاطب) او وے "بد نصیبو، دَ دروغو تهمتونه په

خلقو باندِ مه کیږی. نو په دے وجه هغهٔ دا کوشش شروع کړو چه په دروغه او په دوکه سره خلق راغٹه
کړي. نو وے وئیل چه دا معجزه نهٔ ده جادو دے او زمادَ وطن هر جادوګر د غه شان دَ همسا نه مار جوړولے
شی. هغهٔ خلقوته اُوویل چه لږ شان سوچ اُوکړئ دے خو وائی چه ستاسو پلار نیکه ګمراهان وُو او
هغوی دروغجن دی. هغهٔ خلقوته اُووے چه اے خلقو هوښیار وُ شئ، دا پیغمبر میغمبر نهٔ دے، دا دَ
اقتدار وږے دے، دے غواړی چه دَ یوسف دَ زمانے پشان بیا دلته دَ بنی اسرائیلو بادشاهی قائمه شی او دَ
قبطیانو نه بادشاهی واخستے شی. په دے چل ول هغهٔ دا غوښتل چه دَ حق دعوت ختم شی او لاندِ شی. (دَ
زیاتے تشریح دَپاره اُوګورئ تفهیم القرآن، دوئم جلد، الاعراف، حاشیے ۸۷، ۸۸، ۸۹، یونس، حاشیه ۵۷)
دلته په دے خبره باندِ هم نظر ساتل پکار دی چه په هره زمانه کښے دَ اقتدار خلقو دَ حق په داعیانو باندِ
هم دا الزام لګولے دے چه دوئ په اصل کښے دَ اقتدار وږی دی او ټوله خبره هم دَ دے مقصد دَپاره
کوی. دَ مثال دَپاره اُوګورئ الاعراف، آیت ۱۱۰، ۱۲۳، یونس، آیت ۷۸، المومنون، آیت ۲۴.

[۳۱] دَ فرعون مقصد دا وُو چه یو ځل زما جادوګران دَ همسا کانو او دَ رسو نه ماران جوړ کړی او خلقو
ته ئے اُوښائی نو دَ موسیٰ دَ معجزے چه کوم اثر دَ خلقو په زړونو باندِ شوے دے هغه به لرے شی. حضرت
موسیٰ هم دا غوښتل. هغهٔ اُوفرمائیل چه دَ یلے ورځ، او دَ بل ځلهٔ دَ مقرر ولو ضرورت نشته دے. دَ
جشن ورځ نزدے ده، او دَ ټول وطن خلق صد رمقام ته راځی. هم دغلته دِ دَ میلے په میدان کښے
مقابله اُوشی چه ټول قوم ئے اُووینی. او وخت هم رڼا ورځ پکار ده چه هیڅ شک شبهه پکښے
پاتے نهٔ شی.

[۳۲] دَ فرعون او دَ هغهٔ دَ درباریانو دا خیال وُو چه هم په دے فیصله باندِ دَ هغوی دَ قسمت فیصله
ده. په ټول ملک کښے ئے سړی اُوګرځول چه دَ هر ځائے نه ښه ماهران جادوګران راغونډ کړی او
میدان ته ئے راولی. عام خلقوته هم ښه په کلکه اُووئیلے شو چه په کثرت سره دِ کښے راجمع شی او په خپلو
سترګو دِ جادو کمالات اُووینی او دَ موسیٰ دَ همسا رُعب او دبدبه ختمه شی. صفا به ئے وئیل چه
اوس زمونږه دین دَ جادوګرو په لاس کښے دے. که هغوی اُوګټله خو زمونږ دین به بچ شی.
ګنی نو دَ موسیٰ دین به خور شی. (اُوګوره سورة شعراء رکوع ۳).
دلته دا حقیقت هم په نظر کښے ساتل پکار دی چه دَ مصر دَ شاهی خاندان او دَ امیرانو مذهب
دَ عامو دَ مذهب نه ښهٔ کافی مختلف وُو. دَ دوی ارو دیوتا او مندرګے اُجد اُوو، مذهبی

اللّٰهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُم بِعَذَابٍ ۖ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرَىٰ ﴿٦١﴾ فَتَنَازَعُوا
أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ وَأَسَرُّوا النَّجْوَىٰ ﴿٦٢﴾ قَالُوا إِنْ هَٰذَانِ لَسَاحِرَانِ يُرِيدَانِ أَن

په الله پورے مه تړئ کنځل نو هغهٔ به مو په یو سخت عذاب سره نیست ونابود کړي. دروغ
چه چا جوړ کړل هغهٔ نامراد شو"
دَ دے په اوریدو سره دَ هغوی په مینځ کښے اختلاف راغے او پټه پټه مشوره ئے شروع کړه ۳۵ - آخر
دا چه ځه خلقو اُووے چه ۳۶ "دا دواړه خو تش جادوګران دی. دَ دوی مقصد دا دے چه دَ خپل جادو په

رسمونو ئے هم پوشان نه وُو، او دَ ژوند نه روستو دَ مرګ په معامله کښے هم دَ دواړو په انجام کښے ډیر لوئ فرق
وُو (اُوګوره دَ Toynbes کتاب A study of History صفحه ۳۱-۳۲). دَ دے نه علاوه په
مصر کښے چه کوم مذهبی انقلاب بونه راغلی وُو دَ هغے په وجه هلته دا سے خلق راپیدا شوے وُو
چه دَ شرک مذهب له به ئے ترجیح نهٔ ورکوله او دَ توحید مذهب له به ئے ترجیح ورکوله. مثلاً بنی اسرائیل
بیخپله او دَ کوم خلق چه دَ هغوی په مذهب وُو هغوی تول کم نه کم دَ آبادئ لسمه حصه وه. دَ دے نه علا
فرعون اَمینوفس یا اخناتون (۱۳۷۷ ق م - ۱۳۶۰ ق م) چه کوم مذهبی انقلاب دَ حکومت په زور
راوستے وُو او په هغه کښے ئے نور تول معبودان ختم کړی وُو او صرف یو معبود آتون ئے پاتے کړے وُو، دَ هغه
لا پوره یو نیم سل کاله هم نهٔ وُو شوی. اګر چه دا انقلاب بیا دَ حکومت په زور سره ختم کړے شو، لیکن ځه
نه ځه خپل اثرخو ئے هم پریښودے وُو. چه کَسري دا حالات په نظر کښے وی نو بیا په هغه سبب بنهٔ
پوهیږی دَ کوم سبب په وجه چه فرعون په دغه موقع کښے یریدو.
۳۳ ے دا خبره هغه هوا مونږ نهٔ وه چه په میدان کښے را غونډ شوی وُو او دَ حضرت موسیٰ په باره
کښے به دا فیصله کوی چه آیا دَ هغهٔ سره معجزه ده او که جادو، بلکه دا خبره فرعون او دَ هغهٔ درباریا
ته وه چه موسیٰ ته ئے جادوګر وئیلو.
۳۴ ے یعنی دَ هغهٔ معجزه ته جادو منهٔ وائی او دَ هغهٔ پیغمبرئ ته دروغژن او جادوګر منهٔ وائی.
۳۵ ے دَ دے نه معلومیږی چه دے خلقو خپل ځان کمزوره لیدو. هغوی ته معلومه وه چه حضرت
موسیٰ دا څه ښودلی دی دا جادو نه دے. دَ هغوی په زړهٔ کښے دَ اول نه یره موجوده وه، او کله چه وَ حضرت
موسیٰ عین په موقع باندے خبردارے ورکړو نو دَ هغوی حوصله خرابه شوه. کیدے شی چه دَ هغوی اختلاف
په دے خبره باندے راغلے وی چه آیا دَ دے غټ جشن په ورځ چه دَ تول ملک نه خلق را غونډ شوی وی
په رڼا ورځ په دے قسمه میدان کښے مقابله کول ټیک دی او که نهٔ. که چرے دلته موږه شکست اُوخوړ
او دَ تولو په مخکښے دَ جادو او دَ معجزے فرق ښکاره شو نو بیا خبره په هیڅ شان نه شی جوړیدے.
۳۶ ے او دا وینا به خامخا دَ فرعون دَ پلے هغه مندیانو خلقو کړی وی چه هغوی دَ حضرت موسیٰ په مخالفت
کښے هر لوبه کولو ته تیار وُو. هو نبیا دا نو او یو هم خلقو به دَ وړاندے قدم اخستو نه دوه کړی وی. او دَ مندیانو ځه
به وئیلی وی چه خامخا مقابله سوچو نه کول پریږدئ، زړهٔ ټینګ کړئ او مقابله ته را وړاندے شئ.

يُخْرِجٰكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيْقَتِكُمُ الْمُثْلٰى ﴿٦٣﴾
فَاَجْمِعُوْا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوْا صَفًّا ۚ وَقَدْ اَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلٰى ﴿٦٤﴾
قَالُوْا يٰمُوْسٰۤى اِمَّاۤ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّاۤ اَنْ نَّكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَلْقٰى ﴿٦٥﴾ قَالَ
بَلْ اَلْقُوْا ۚ فَاِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا
تَسْعٰى ﴿٦٦﴾ فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى ﴿٦٧﴾ قُلْنَا لَا تَخَفْ اِنَّكَ اَنْتَ

نور تاسو دَ ځپلے زمکے نه به دخله کړی او ستاسو دَ ژوند مثالی لاره به ختمے کړی[37]. خپل ټول تدبیرونه نن را جمع کړئ او په اتفاق سره میدان ته راشئ. بس داسے وګنړئ چه نن څوک غالب شو نو هغه اُوګټله!"

[39] جادوګرانو اُووے "موسیٰ، ته غورزوے که اول مونږه اُوغورزوُو؟"

موسیٰ اُووے، "نه، تاسو اُوغورزوئ."

فوراً دَ هغوئ رسئ او دَ هغوئ همسا ګانے دَ هغوئ دَ جادو په زور سره موسیٰ ته داسے ښکاره شوے لکه چه منډې وهی،[40] او موسیٰ په خپل زړه کښے اُویریدو.[41] مونږ ورته اُووے "مه یریږه هم ته به غالب

[37] یعنی دَ هغه خلقو مطلب په دوه خبرو کښے وُو. یو دا چه که جادوګرانو هم دَ موسیٰ په شان دَ همسا ګانو نه ماران جوړ کړل او خلقو ته اُوښودل نو عامو خلقو ته به دا ثابته شی چه موسیٰ جادوګر دے. دویم دا چه هغوئ دا غوښتل چه حکمران طبقه په غصه کړی او دا یره ورسره کړی چه که چرے موسیٰ غالب شو نو دا وطن به ستاسو دَ لاس نه لاړ شی او ستاسو دَ ژوند هغه مثالی (Ideal) او شاندار طریقه به ختمه شی. هغوی دَ ملک باا ثره خلق یرول چه که چرے دَ موسیٰ په لاس کښے اقتدار راغے نو دا ستاسو دَ ژوند دا ښکلے طریقے، او دا ستاسو فنکاری، او دا ستاسو ښائسته استوګنه، او دا ستاسو لوبے تماشے او دا ستاسو دَ ښځو آزادی (چه یو شاندار مثال ئے دَ یوسفؑ دَ زمانے ښځو پیش کړے وُو) فرض دا چه هغه ټول هر څه چه دَ هغے نه بغیر دَ ژوند هیڅ مزه نه وی، هغه ټول به تباه او برباد شی. بیا خو به صرف یو "مذهبی" ژوند وی چه دَ هغے نمرک به نه دے.

[38] یعنی دَ دوئ په مقابله کښے ټول یو ډله شئ. که په دے وخت کښے په تاسو کښے بے اتفاقی راغله او دَ مقابلے په وخت کښے موږ دَ عام اُولس په مخکښے دا یره او دَ غورزیدے شروع کړے نو دَ اوس نه به کمزوری ئی او خلق به دربانډے پوه شی چه تاسو ته خپل ځان چنبله په حق نه ښکاری او په لړ دنو کښے مو یره پرته ده.

[39] په منځ کښے دا تفصیل پریښودے شو چه په دے باندے دَ فرعون دَ خلقو حوصله اُوچته شوه او دَ مقابلے کولو فیصله ئے اُوکړه او جادوګرانو ته ئے حکم اُوکړو چه میدان ته راشئ.

الْأَعْلَىٰ ﴿۶۸﴾ وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوا ۖ إِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ سَاحِرٍ ۖ وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ أَتَىٰ ﴿۶۹﴾ فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوا

یې - اُوغورزوه دا څه چه ستا په لاس کښې دی، اوس به دا ټول جوړ کړی څیزونه تیر کړی دوئ چه څه جوړ کړی دی دا خو تش د جادوګر فریب دے، او جادوګر هیڅکله کامیابیدے نه شی خواه که په هر شان سره راشی". آخر دا اُوشو چه ټول جادوګران په سجده پریوتلے شو او چغے ئے کړے

۴۱ په سورۃ اعراف کښې بیان شوی وو چه "فَلَمَّا أَلْقَوْا سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ" "کله چه هغوئ خپل جادو غوزار کړو نو د خلقو نظرونه ئے بند کړل او په هغوئ ئے یره راوستله" (آیت ۱۱۶) دلته داوئیلے کیږی چه دا اثر یوازے په عام و خلقو نه وو شوے، بلکه په حضرت موسیٰ باندې هم د جادو اثر شوے وو۔ یوازے د هغه سترګو ته داسے نه ښکاریدهٔ بلکه د هغه په خیال باندې هم دا اثر اُوشو چه کښی همسا او رسیانے په رښتیا ماران دی او منډے وهی۔

۴۲ داسے معلومیږی چه څنګه د حضرت موسیٰ د خولے نه دا خبره اُووتله چه "غوزار کړئ" نو په هغه ساعت جادوګرانو خپلے همساګانے او رسیانے د هغه طرفته غوزار نه کړے او د هغه اُولیدل چه سوونو ماران د هغه طرفته په منډه روان دی. په دے سره که فوری طور د حضرت موسیٰؑ په زړهٔ کښې یره راغلی وو نو دا څه د حیرانتیا خبره نه ده. انسان په هر حال کښې انسان وی۔ خواه که هغه پیغمبر وی خو د انسانیت تقاضے د هغه نه جدا کیدے نه شی. د دے نه علاوه دا هم ممکنه ده چه په هغه وخت کښې د حضرت موسیٰ سره دا فکر راپیدا شوے وی چه د جادو او د معجزے سره یو شان دے په دے به عام خلق دوکه شی او خامخا به په فتنه کښې پریوزی۔

دلته د دے خبرے ذکر مناسب ښکاری چه قرآن په دے ځائے کښې د دے خبرے تصدیق کوی چه د عام انسانانو په شان په پیغمبر هم د جادو اثر کیدے شی۔ اګرچه جادوګر دا طاقت نه لری چه د پیغمبر پیغمبری ختمه کړی، یا چه کومه وحی په هغه نازلیږی په هغے کښې څه خلل راولی او یا د جادو په زور هغه بے لارے کړی، لیکن هسے د لږ ساعت د پاره د هغه په قوتونو باندې یو قسم اثر ضرور اچولے شی۔ په دے سره د هغه خلقو خیال غلط ثابتیږی څوک چه په احادیثو کښې دا اُولولی چه په نبی صلی الله علیه وسلم باندې د جادو اثر شوے وو نو هغوئ نه یوازے دغه احادیثو ته دروغ وائی بلکه د ټولو احادیثو په متعلق وائی چه دا هیڅ اعتبار

۴۳ کیدے شی چه په معجزے سره کومه اژدها پیدا شوی وه هغے هغه ټولے همساګانے او رسیانے تیرے کړے وی کوم چه ښاماران ښکاریدل. لیکن په کومو الفاظو سره چه دلته او د قرآن په نورو ځایونو کښې دا واقعه بیان کړے شوی ده د هغے نه په ظاهره د سرې دا ګمان راپیداکیږی چه هغے اژدها د هغه همساګانے او رسیانے تیرے نه کړے بلکه د جادو هغه اثر ئے ختم کړو چه د هغے په وجه هغه ښاماران ښکاریدل۔ په سورۃ اعراف او په سورۃ شعراء کښې الفاظ دا دی چه "تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ" "کوم دروغ چه هغوئ جوړول هغه ئے تیرول" او دلته الفاظ دا دی چه "تَلْقَفُ مَا صَنَعُوا" "هغه به تیر کړی هغه څیز

اٰمَنَّا بِرَبِّ هٰرُوْنَ وَمُوْسٰى ۞ قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّهٗ

"موږه اُومنو د هارون او د موسیٰ رب"۴۳

فرعون اُووے "تاسو زما د اجازت نه مخکښې په هغهٔ باندې ایمان راوړو؟ معلومه

کوم چه هغوی جوړ کړے دے." اوس دا ښکاره خبره ده چه د هغوی "دروغ" او د هغوی "بناوټ" خو دغه همسا کانړے او رسیانړے نه وے بلکه په اصل کښې د هغوی دروغ او بناوټ هغه جادو وُو چه د هغوی دغه همسا کانړے او رسیانړے بښامارانړ ښکاریدل. په دے وجه زما دا خیال دے چه دغه اژدها به کوم خوا تلله نو هغه همسا کانړے او رسیانړے به ئې تیرولے او شانته به ئې دا هغه فورزولے چه هغه همسا به، همسا او هغو رسئ به رسئ ښکاره شوه.

۴۳ ـه یعنی هرکله چه هغوی د موسیٰ د همسا کارنامه اُولیدله نو د هغوی فوراً یقین راغے چه دا بیشکه معجزه ده، جادو هرگز نه دے، ځکه هغوی بے اختیاره په سجده دا سے پریوتل لکه چه چا ټوټک ئې اُوچتکړی او په زمکه ئې را پریباسی.

۴۴ ـه د دے مطلب دا دے چه هر چا ته دا معلومه وه چه دا د دغه مقابله ده. په ټول مخلوق کښې پیدا د انه وئیل چه مقابله د موسیٰ او د جادوگرانو د کمالونو ده او فیصله د دے خبرے ده چه د چا کمال به لوئ او بهتروی. ټولو ته دا معلومه وه چه یو طرفته موسیٰ خپل ځان د الله تعالیٰ د پیغمبر په حیثیت سره پیش کوی، او د خپلے پیغمبرئ په ثبوت کښې دا دعویٰ کوی چه د هغه د همسا د معجزے په طور اژدها جوړیږی او بل طرفته فرعون جادوگران راغوښتلی دی او خلقو ته دا ثابتول غواړی چه د همسا نه اژدها جوړیدل معجزه نه ده بلکه د جادو کمال دے. یعنی هلته فرعون او جادوگران او ټول تماشگیر خلق د معجزے او جادو د فرق نه واقف وُو. او د اهمیت د دے خبرے وُو چه موسیٰ کوم څیز پیش کوی چه آیا هغه جادو دے او که معجزه ده. او دا وجه ده چه جادوگران کله په خپل جادو کښې ناکام شو نو هغوی اُونه وئیل چه "موږه اُومنله چه موسیٰ زموږ نه په کمال کښې زیات دے" بلکه د هغوی فوراً دا یقین راغے چه موسیٰ واقعی د الله رب العٰلمین رښتینے پیغمبر دے او هغوی چغے کړے چه موږه هغه خدائ اُومنو چه موسیٰ او هارون د هغه د پیغمبرانو په حیثیت سره راغلی دی.

د دے نه اندازه لګیدے شی چه په هغه ګنړو خلقو به د دے شکست څه اثر پریوتی وی او بیا به ټول ملک کښې به د دے څومره غټ اثر شوے وی. فرعون په غټه او مرکزی میله کښې دا مقابله د دے غرض د پاره مقرر کړے وه چه د مصر د هر کوټ نه خلق راشی او په خپلو سترګو دا اُووینی چه د همسانه مار جوړول د موسیٰ څه نا اشنا کمال نه دے، بلکه هر جادوګر دا کمال ښودے شی، نو د موسیٰ د معجزے زور به پخپله ختم شی. لیکن د هغه دا تدبیر پخپله د هغه مخالف ثابت شو، او د ملک د هر کلی نه چه کوم خلق راغلی وُو د هغوی په مخکښے پخپله جادوګرانو په اتفاق سره د دے خبرے تصدیق اُوکړو چه موسیٰ څه پیش کوی دا جادو نه دے، دا په حقیقت کښې معجزه ده چه صرف د خدائے پیغمبر ئے ښودلے شی.

لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۚ فَلَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ ۡ وَلَتَعْلَمُنَّ اَيُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّ اَبْقٰى ﴿۷۱﴾ قَالُوْا لَنْ نُّؤْثِرَكَ عَلٰى مَا جَآءَنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ

شوه چه دا ستاسو مشر اُستاذ دے چه تاسو ته ئے جادو ښودلے وُو.[۴۵] ښه ده نوزهٔ اُوس ستاسو لاسونو او ښپې د مخالفو طرفونو نه پریکوم[۴۶] او د کجورو په ډډونو باندې تاسو په سُولئ خیژوم[۴۷]. بیا به تاسو ته پته اولږی چه په مونږ دواړو کښے د چا عذاب زیات سخت او محکم دے"[۴۸] (یعنی چه زهٔ درله زیاته سخته سزا درکولے شم او که موسیٰ).

جادوګرانو ورله جواب ورکړو "قسم دے په هغه ذات چه مونږ ئے پیدا کړی یو، دا هیڅکله کیدے نه شی

[۴۵] په سورت اعراف کښے الفاظ دا دی "اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِي الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا" "دا یو سازش دے چه تاسو د ملک په دے ښار کښے په دے غرض کړے دے چه د دے ملک مالکان ئے قتدار نه بے دخله کړئ" (آیت ۱۲۳). د لته د دے قول سره دا خبره زیاته کړے شوی ده چه ستاسو په منځ کښے یو زړه ساز باز نه دے شوے، بلکه دا هم معلومیږی چه دا موسیٰ ستاسو مشر دے او ستاسو اُستاذ دے. تاسو د هغه نه شکست نه دے خوړلے بلکه د خپل استاذ د جادو نه مو شکست خوړلے دے او تاسو په خپلو کښے دا فیصله کړی ده چه خپل اُستاذ به غالب کوو او دا غلبه به د هغه د پیغمبری یو ثبوت شی او د لته به یو سیاسی انقلاب راولو.

[۴۶] یعنی د یو طرف نه لاس او د بل طرف نه خپه.

[۴۷] د صلیب یا د سولئ خیژولو پخوانئ طریقه دا وه چه د یو ښاخ یا د اوبدو لرګی یو په بل باندې ئے صلیب غوندې وهل او بیا به ئے په هغه باندې سړے په زمکه کښے ښخ کړو، یا چرته به ئے د یوے زړے ونے ډډ د دے د پاره استعمالولو، او د هغه په بره سر کښے به ئے یو تخته په ترس اُوترله، بیا به ئے مجرم بره اُوخیژولو او د واړه لاسونه به ئے ورله خوا له کړل او د هغے تختے د پاسه به ئے پرِ میخونه ټکوهل. دغه شان به مجرم د تختے نه ښکته ځړیدو او ډیر وخت به ئے ساتلو هغه او مړ به شو. د غه مجرم به ډیره موده هم دغسے ځړیدو د پاره د دے چه خلق ترسیدلی واخلی.

[۴۸] د بائیبل شوی لوبے د کتلو د پاره دا د فرعون آخری کوشش وُو. هغه غوښتل چه جادوګران د ډیرے سختے سزا په وجه اُویرَدوم او د هغوی نه دا بیان واخلم چه واقعی دا د هغوی او د موسیٰ علیه السلام په منځ کښے صلاح مشوره شوی وه او د حکومت خلاف ئے یو سازش جوړ کړے وُو. خو د جادوګرانو د مضبوط ایمان په وجه د هغه دا آخری کوشش هم اُلټا ثابت شو. جادوګرانو د هغے سختے سزا ته غاړه کیښوده او ټولو خلقو ته ئے دا ثابته کړه چه د فرعون نه اُوس خبره ورانه شوی ده. هغه د خپلے خبرے جوړولو د پاره په مونږ باندې د سازش کولو الزام لګوی دا هسے یو سیاسی چال

وَالَّذِيْ فَطَرَنَا فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ ۭ اِنَّمَا تَقْضِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ
الدُّنْيَا ۝٧٢ اِنَّآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطٰيٰنَا وَمَآ اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ
مِنَ السِّحْرِ ۭ وَاللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ۝٧٣ اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ
لَهٗ جَهَنَّمَ ۭ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ۝٧٤ وَمَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا قَدْ
عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰۗىِٕكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى ۝٧٥ جَنّٰتُ عَدْنٍ

چه روښانه نښې مخې ته دَ راتلونه روستو هم مونږه تاله (په صد اقت باندې) ترجيح ورکړو. نو ته چه هر څه کول غواړې هغه اُوکړه. ته خو دَ دنيا تو ته ژوند بس دَ دے دُنيا دَ ژوند فيصله کولے شے.
مونږه خو په خپل رب ايمان راوړو، دَ پاره دَ دے چه مونږ ته خپلے خطاګانے معاف کړي او دا جادو
راته معاف کړي په کوم چه تا مونږه مجبور کړي وُو. الله بهتر دے او هغه باقي پاتے کيدونکے دے
حقيقت دا دے چه څوک خپل رب ته دَ مجرم په حيثيت ورشي دَ هغهٔ دَ پاره دوزخ دے چه نهٔ به
په کښے مري او نهٔ به ژوندې. اوچه څوک ورته دَ مؤمن په حيثيت ورشي، چه نيک عملونه
کړي وي، نو دَ دا سے ټولو خلقو دَ پاره اُوچتے مرتبے دي، دَ هميشه سپرلي باغونه دي

دے او سراسر دروغ دي، او اصلي حقيقت دا دے چه مونږه په ربتيا سره په موسىٰ عليه السلام باندې
دَ پيغمبر په حيثيت سره ايمان راوړے دے.

۵۲ دَ دے آيت دويم ترجمه دا هم کيدے شي: "دا هيڅکله کيدے نهٔ شي چه دَ هغه روښانه نښو په
مقابله کښے کومے چه مونږه مخے ته راغلي دي او دَ هغے ذات په مقابله کښے چه مونږ پيدا کړي يو مونږ
تاله ترجيح ورکړو."

۵۳ دا دَ جادوګرانو په قول باندې دَ الله جل جلاله يو زياتي بيان دے. دَ کلام دَ انداز نه ته پخپله معلوم
چه دا عبارت دَ جادوګرانو دَ قول حصه نهٔ ده.

۵۴ يعني کهٔ مرګ او دَ ژوند په مينځ کښے به وي. نهٔ به مري چه دَ تکليفونو او مصيبتونو نه خلاص
شي او نهٔ به ژوندې چه دَ ژوند په مزه پوهه شي او ژوند له په مرګ باندې ترجيح ورکړي. دَ ژوند
نه به ويزاره وي، خو مرګ به ورته نهٔ نصيب کيږي. مرګ به غواړي خو مړ کيږي به نهٔ. په
قرآن مجيد کښے چه دَ دوزخ دَ عذاب څومره تفصيلات راغلي دي په هغه کښے دَ ټولو نه زيات دَ
يره عذاب هم دا دے چه سړے ورته خيال اُوکړي نو روح بسے دَ يره نه اُور پيښيږي.

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى ﴿٧٦﴾
وَلَقَدْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى ۙ اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْ فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيْقًا فِي
الْبَحْرِ يَبَسًا ۙ لَّا تَخٰفُ دَرَكًا وَّلَا تَخْشٰى ﴿٧٧﴾ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُوْدِهٖ
فَغَشِيَهُمْ مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ﴿٧٨﴾ وَاَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهٗ وَمَا هَدٰى ﴿٧٩﴾

چې لاندې به ترې نهرونه بهیږي، په هغې کښې به هغوی همیشه اوسیږي. دا جزاده د هغه سړي چې پاکوالے اختیار کړي. ع

مونږه موسیٰ ته دې اوکړه چې اوس شپه په شپه زما بندګان د خپل ځان سره بونه او په سمندر کښې د هغوی د پاره وچ سړک جوړ کړه،[52] دا یره مه کوه چې څوک به در پسې رو ستو در رسي او (په سمندر کښې تیریدو نو) زړه له یره مه راوله.

روستو ورپسې فرعون د خپل لښکر سره ورورسیدو او بیا سمندر په هغوی باندې داسې ورخور شو لکه څنګه چې د سمندر د ورخوریدو حق وو.[53] فرعون خپل قوم بې لارې کړوو او سمه لاره ئې ورته نه وه ښودلې.

[52] په منځ کښې هغه ټول تفصیل پریښودلے شوے دے کوم چې د دې نه روستو په مصر کښې په هغه تیر شو. د دغې تفصیلا تو د پاره اوګورئ سورة اعراف رکوع ۱۵-۱۶، سورة یونس رکوع ۹، سورة مومن رکوع ۴ تا ۵ او سورة زخرف رکوع ۵.

[53] د دې تفصیل دا دے چې آخر الله تعالیٰ یوه شپه مقرر کړه چې په هغې کښې به اسرائیلیان او غیر اسرائیلیان ټول مسلمانان (چې د هغوی د پاره لفظ "زما بندګان" استعمال کړے شوے دے) د مصر د هر ځائے نه د هجرت د پاره راوځي. دا ټول خلق یو خاص ځائے ته راجمع شو او د یوه قافلې په شکل کښې روان شو. په هغه زمانه کښې نهر سویز نه وو. د بحر احمر نه د بحر روم (میډیټیرینین) پورې ټول علاقه فراخه وه. خو د دې علاقې په ټولو لارو باندې فوجي چاؤنړۍ مقررې وې چې د هغې نه سړے صحیح سلامت نه شو تیرے. نو په دې وجه حضرت موسیٰؑ د بحر احمر په لاره روان شو. غالباً چې د هغه به دا خیال وو چې د سمندر په غاړه غاړه به لاړ شي او د سینا طرف ته به اوځي. لیکن د هغې طرف نه ورپسې فرعون د لوئې لښکر سره تیک په هغه موقع ورا ورسید و چې لا دا قافله د سمندر په غاړه وه. په سورة شعراء کښې ویلے شوي دي چې د مهاجرینو دا قافله د فرعون د لښکرا و د سمندر په منځ کښې راګیره شوي وه. بالکل په دغه وخت کښې الله تعالیٰ موسیٰؑ ته حکم اوکړو چې "اِضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ" په خپله همسا سمندر راووهه. "فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ"، فوراً سمندر اوشلیدو او هره حصه د یوه لوئې غونډۍ پشان ودریده." او په منځ کښې د قافلې د تللو د پاره لار جوړه شوه بلکه دا لاره د دې آیت مطابق د یو وچ سړک پشان جوړه شوه.

دَ دے بیان نه معلومیږی چه دا یوه ښکاره معجزه وه، او دَ هغے خلقو خبره غلطه ده چه وائی په ډیرو دَ طوفان په وجه یا دَ اوبو دَ ډیره کیدو او ښکته کیدو په وجه په سمندر کښے لار جوړه شوی وه. ځکه چه په دے طریقه اوبه دَ غرونو په شان نه ودریږی، او نه په مینځ کښے دَ وچ سړک په شان لار جوړیږی (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اوګورئ تفهیم القرآن دریم جلد الشعراء، حاشیه ۴۷).

۵۴ په سورة شعراء کښے ویلے شوی دی چه دَ مهاجرینو پورے پورے توسره فرعون او دَ هغه لښکر دَ سمندر په دغه لار ورغلل (آیت ۶۳-۶۶). دلته وئیلی شوی دی چه هغه او دَ هغه لښکر په سمندر کښے ډوب شو. په سورة بقره کښے دی چه فرعون او دَ هغه لښکر کله غرق کیدو نو بنی اسرائیلو دَ سمند رغاړے نه لیدل (آیت ۵۰). او په سورة یونس کښے دی چه دَ ډوبیدو په وخت کښے فرعون چغه کړی "اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِیْٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا اِسْرَآءِیْلَ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ" ما اومنله چه بل خدائے نشته سوا دَ هغه خدائے نه چه په هغه بانـدے بنی اسرائیلو ایمان راوړے دے او زه هم دَ مسلمانانو نه یم". خو دَ هغه دَ دے آخری وخت ایمان قبول نه کړے شو او په جواب کښے ورته اوویلے شو "آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِیْنَ ۝ فَالْیَوْمَ نُنَجِّیْكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُوْنَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰیَةً" اوس ایمان راوړے؟ او اول دِ دا حال وو چه نافرمانی دِ کوله او فساد دِ کوو. بنه ده نو نن مونږه ستا کالبوت بچ کوو چه دَ روستنو نسلونو دَ پاره دَ عبرت نښه جوړه شی" آیتونه ۹۰-۹۲.

۵۵ دیر په بائیبل الله زسره دَ مکے کافرانو ته خبردار یے ورکړے کیږی چه ستاسو سرداران او لیډران هم تاسو په هغه لار روان په کومه لار چه فرعون خپل قوم بوتللو. اوس تاسو ځنپله اوګورئ چه دغه سمه لار خونه وه.

دَ دے قیصے په آخر کښے پکار دی چه دَ بائیبل دَ بیانونو هم جائزه واخستے شی دَ پاره دَ دے چه دَ هغے خلقو دَ دروغو حقیقت ښکاره شی چه هغوئ وائی چه په قرآن کښے دا قیصے دَ بنی اسرائیلو نه را نقل کړے شوی دی. دَ بائیبل په خروج کتاب (Exodus) کښے چه دَ دے قیصے کوم تفصیلات بیان شوی دی دَ هغے لاندینئ خبرے دَ توجه قابل دی:

(۱) په باب ۴، آیت ۲-۵ کښے ویلے شوی دی چه دَ همسا معجزه حضرت موسیٰ له ورکړے شوی وه. او په آیت ۱۷ کښے هغه ته دا هدایت شوے دے چه "ته دا همسا په خپل لاس کښے را واخله او دَ دے نه معجزه خلقو ته ښایه". خو وړاندِ دا پته نه لګی چه په کومه طریقه دا همسا دَ حضرت هارون په قبضه کښے ورغلله او هغه دَ دے نه معجزے ښودل شروع کړل. دَ اووم باب نه را واخله په روستنو تولو بابونو کښے مونږ ته ښکاری چه حضرت هارون دَ همسا معجزه ښایی.

(۲) په پنځم باب کښے دَ فرعون او دَ حضرت موسیٰ دَ اولنی ملاقات حال بیان شوے دے، او په هغه کښے هغه بحث هډو شته دے نه کوم چه دَ هغه او دَ فرعون په مینځ کښے دَ الله تعالیٰ دَ توحید او دَ الله دَ ربوبیت په باره کښے شوے وو. فرعون وائی چه "خداوند څوک دے چه زه دَ هغه خبره اومنم او بنی اسرائیل پریږدم؟ زه خداوند نه پیژنم". خو حضرت موسیٰ او هارون ورله دَ دے نه سیوا بل جواب ورنه کړو چه "دَ عبرانیانو خدائے

مونږ سره ملاؤ شوے دے" (باب ۵۔ آیت ۲-۳)۔

(۳) د جادوګرانو سره د مقابلې کولو ټوله قیصه بس په دې یو څو فقرو کښې راجمع شوې ده:

"او خداوند موسٰی او هارون ته اُووې چه کله فرعون تاسو ته اُووائي چه تاسو خپله معجزه اُوښایئ نو هارون ته اُووایه چه خپله همسا د فرعون مخې ته غورزاره کړي چه د هغې نه مار جوړ شي۔ او موسٰی او هارون فرعون ته لاړل او د خداوند د حکم مطابق کار ئے اُوکړو او هارون خپله همسا د فرعون او د هغه د خادمانو مخې ته غورزاره کړه او د هغې نه مار جوړ شو. بیا فرعون هم هوښیاران او جادوګران راوغوښتل او د مصر جادوګرانو هم په خپل جادو سره دغسې کار اُوکړو. ځکه چه هغوی هم خپله خپله همسا مخې ته غورزاره کړه او د هغې نه ماران جوړ شو. لیکن د هارون همسا د هغوی ټولې همسا ګانې تیرې کړې" (باب ۷، آیت ۸-۱۲)۔

چه سړے د دې بیان مقابله د قرآن د بیان سره اُوکړي او ګوري نو پته لږي چه د قیصې اصلي مطلب دا نه دے بیان کړے شوے. د ټولو نه زیاته عجیبه خبره داده چه د جشن په ورځ په یو آزاد میدان کښې مقابله کول او بیا د شکست نه روستو د جادوګرانو ایمان راوړل، چه دا د قیصې اصلي مطلبي ځائے دے، د دې هم دلته هیڅ ذکر نشته۔

(۴) قرآن وائي چه د حضرت موسٰیؑ مطالبه دا وه چه بني اسرائیل آزاد کړي. بائبیل دا وائي چه مطالبه صرف دا وه چه "مونږ له اجازت راکړه چه مونږ د درې ورځو په فاصله بیابان ته لاړ شو او د خداے خپل خداے د پاره قرباني اُوکړو" (باب ۵۔ آیت ۳)

(۵) د مصر نه د وتلو او د فرعون د غرق کیدو تفصیلي حالات د باب ۱۱ نه د باب ۱۴ پورې بیان شوي دي. په دې کښې ډیرې فائدې معلومات، او د قرآن د مختصر ځایونو تفصیلات هم مونږ ته ملاوېږي، او ورسره ډیرې عجیبه عجیبه خبرې هم ملاوېږي مثلاً په باب ۱۴، آیتونو ۱۵-۱۶ کښې حضرت موسٰیؑ ته حکم کېږي چه "ته خپله همسا (هو ګ اُوس همسا حضرت هارون نه وه پس حضرت موسٰی له ورکړے شوې ده) اُوچته کړه او خپل لاس د سمندر د پاسه راأوږد کړه او دا دوه حصې کړه او بني اسرائیل به د سمندر په منځ کښې په وچه لار روان شي او وبه وځي" لیکن وړاندې په آیتونو ۲۱-۲۲ کښې ویلې کېږي چه "بیا موسٰی خپل لاس په سمندر باندې دراز کړو او خداوند ټوله شپه تیزه هوا تیره تیره اُوچلوله او سمندر ئې را روستو کړو، وچه زمکه ئے جوړه کړه او اُوبه دوه حصې شوې او بني اسرائیل د سمندر په منځ کښې په وچه لار لاړل او د هغوی ښي طرف او ګس طرفته اُوبه د دیوال په شان ولاړې وې" په دې پوهه نه شو چه آیا دا معجزه وه او که یوه عامه طبعي واقعه وه؟ که معجزه وه نو د همسا د وهلو سره به شوې وه، لکه ځنګه چه په قرآن کښې ویلې شوي دي. او که عامه واقعه وه نو دا څو عجیبه کار دے چه تیزې هوا سمندر په منځ اُوشلولو او اُوبه ئے دواړو طرفته د دیوال په شان ودرولې او په منځ کښې ئے وچه لار جوړه کړه۔ آیا په عام حالاتو کښې تیزه هوا داسې کار کوي؟

د تلمود بیان نسبتاً د بائبیل نه مختلف دے او د قرآن بیان ته نزدې دے لیکن چه سړے د دواړو مقابله اُوکړي نو صفا معلومیږي چه په یو ځائې کښې واقعات د علم وحي په بنیاد بیانیږي او په بل ځائې کښې د سوګونو کالو په داسې زړو روایتونو کښې چه پټ پرته د خاندان په خلقو کښې یو بل ته منتقل کېږي، د

يٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ قَدۡ أَنجَيۡنَٰكُم مِّنۡ عَدُوِّكُمۡ وَوَٰعَدۡنَٰكُمۡ جَانِبَ ٱلطُّورِ ٱلۡأَيۡمَنَ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَنَّ وَٱلسَّلۡوَىٰ ﴿٨٠﴾ كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقۡنَٰكُمۡ وَ

اے بنی اسرائیلو! مونږه تاسو ستاسو دُشمن نه خلاص کړئ، او د طور په ښي طرف مو ستاسو د حاضریدو د پاره وخت مقرر کړو[۵۶] او په تاسو مو منّ او سلوٰی نازل کړل[۵۷] ــــ کوم پاک رزق چه مونږ درکړے دے هغه خورئ

واقعات تر اصلی شکل بدل کړے شوے دے، اُوګورئ ( The Talmud Selections

H. Polano PP 150-154

[۵۶] د سمندر د پورې غاړې ته راوتلو د سینا د غرد لن پورې تر له قیصه په منځ کښې پرېښودلے شوې ده. د تفصیلات د سورة اعراف په رکوع ۱۶-۱۷ کښې تیر شوی دی. هلته دا خبره هم شوې ده چه بنی اسرائیل کله د مصر نه اُووتل او په سینا کښې ئے یو منزل راُولیږلو نو هلته ئے د یو بناوتی خدائے مطالبه کړې وه. (تفهیم القرآن دویم جلد، الاعراف حاشیه ۹۸).

[۵۷] یعنی د طور په غر ختیځه لن کښې.

[۵۸] د سورة بقره په رکوع ۶ کښې او د سورة اعراف په رکوع ۱۷ کښې دا بیان شوے دے چه بنی اسرائیلو ته د شرعي کتاب ورکولو د پاره الله تعالیٰ د څلویښتو ورځو میعاد مقرر کړے وُو. د دے نه روستو حضرت موسیٰ ته د کانړي په تختو باندې لیکلی شوی حکمونه ورکړے شو.

[۵۹] د من او سلوٰی د تفصیل د پاره اُوګورئ تفهیم القرآن اول جلد البقرة، حاشیه ۷۳. الاعراف، حاشیه ۱۱۹. د بائیبل بیان دے چه بنی اسرائیل کله د مصر نه اُووتل او د سین په دشت کښې د ایلم او د سینا په منځ کښې تیریدل او خوراک ورسره ختم شو او لوږے تندے پرتیریدل، نو په دغه وخت کښې د من او سلوٰی نازلیدل شروع شو، او د فلسطین آباده علاقے ته د رسیدو پورې څلویښت کاله دا خوراک جاری وُو. (خروج باب ۱۶. گنتی باب ۱۱، آیت ۷-۹. یشوع، باب ۵، آیت ۱۲). په خروج کتاب کښې د من و سلوٰی دا حالت بیان کړے شوے دے:

"او دا سے وَشوه چه د ماښام د وخت مرزان را غلل چه د هغوی د خیمو ځلئے پټ کړو. او سحر مهال خوا وُشاته پرخه پرته وه، او هر کله چه دغه پرخه وچه شوه، نو په بیابان کښې د پرخے غوندې وړه وړه غونډ غونډ څیزونه په زمکه باندې پراته وُو. بنی اسرائیلو چه دغه څیز اُولید نو یو بل ته ئے اُووئیل چه مَن؟ ځکه چه هغوی ته دا پته نه وه چه دا څه څیز دے" (باب ۱۶. آیت ۱۳-۱۵).

"او بنی اسرائیلو د هغے نوم من کیښودو او هغه د دنیا د تخم په شان سپین وُو او د هغے مزه داسے وه لکه چه د شهدو نه چه ترکاری جوړه شی" (آیت ۳۱).

په کتاب گنتی کښې د دے زیاته تشریح داده:

"خلق به آخوا دیخوا تلل او هغے به ئے راجمع کول او په میچن به ئے دُوره کول یا به ئے په هاونګ کښې کوټل

لَا تَطْغَوْا فِيهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِيْ ۚ وَمَنْ يَّحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِيْ
فَقَدْ هَوٰى ﴿۸۱﴾ وَاِنِّيْ لَغَفَّارٌ لِّمَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ
اهْتَدٰى ﴿۸۲﴾ وَمَآ اَعْجَلَكَ عَنْ قَوْمِكَ يٰمُوْسٰى ﴿۸۳﴾ قَالَ هُمْ اُولَآءِ عَلٰٓى اَثَرِيْ
وَعَجِلْتُ اِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى ﴿۸۴﴾ قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْۢ بَعْدِكَ

د هغې په خوراك کښې سرکشي مه کوئ، کنې نو زما غضب به در باندې راشي، او په چا چې زما غضب راغې هغه بیا غورزیدلې پاتې شو. البته په ځوك توبه اوباسي او ایمان راوړي او نیك عمل اوکړي او بیا نیغ روان وي، نو د هغه د پاره زه ډیر بخښونکې یم ۵۶

او (الله) وپوښته ته د خپل قوم نه مخکښې په تلوار راغلې اے موسیٰ ۵۷؟

هغه عرض اوکړو "هغوی خو بس په ما پسې روستو راروان دي. زه په تلوار تا ته راغلم اے زما ربه، ځکه چې ته زما نه خوشحاله شې"

الله اوفرمائیل، "بنه ده نو واوره، مونږ ستا نه روستو ستا قوم په آزمېښت کښې واچولو

بیا به ئې هغه په کټوړو کښې پښوول او د ودۍ به ئې ترې جوړولې. د هغې خوند د "تازه تیلو" شان وو. او د شپې چې به کله د لښکر په ځائے کښې پرخه پریوتله نو د هغې سره به مَن هم راپریوتل" (باب ۱۱، آیت ۸-۹)

دا هم یوه معجزه وه. ځکه چې څلویښت کاله روستو بیا کله د بني اسرائیلو د پاره د خوراك فطري ذریعې جوړې شوې نو دا سلسله بنده کړې شوه. اوس په هغه علاقه کښې نه زیات مرزان شته او نه مَن. ډیر خلق په هغه علاقه کښې ګرزیدلي دي په کومه علاقه کښې چې د بائیبل د بیان مطابق بني اسرائیلو څلویښت کاله پورې ګرزیدلي وُو، خو مَن ئې چرته بیا نه موندل. البته کاروباري خلق د خلقو د دوکه کولو د پاره د مَن حلوا خرڅوي.

۵۶ یعنی د بخښنې د پاره څلور شرطونه دي. اول توبه، یعنی د سرکشۍ او نافرمانۍ نه یا د شرك او کفر نه واپس کیدل. دوئم ایمان، یعنی الله او رسول او کتاب او آخرت د زړه په صدق سره منل. دریم نیك عمل، یعنی د الله او د رسول د هدایاتو مطابق نیك عمل کول. څلورم اهتداء، یعنی په نیغه لاره کلك وُسیدل او غلطې لارې ته بیا نه اوړیدل.

۵۷ د دې ځائے نه د بیان سلسله د هغه ځائے سره لګیږي کوم چې اوس بره بیان شوې ده. یعنې د بني اسرائیلو سره د وعده شوې وخت ته د طور ښۍ طرف ته د رسیدو او څلویښت ورځې پس به درته هدایت نامه درکړې شي.

۵۸ د دې فقرې نه معلومیږي چې حضرت موسیٰ خپل قوم روستو پریښودلې وُو او د خپل رب د ملاقات په شوق کښې د هغوی نه وړاندې تلې وُو. د طور ښۍ اړخ ته، یعنی د کوم ځائے وعده چې د بني اسرائیلو سره

وَ اَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ ﴿۸۵﴾ فَرَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۚ قَالَ

او سامری هغوئ گمراه کړل"۶۳

موسیٰؑ د سختے غصے او د غم په حالت کښے خپل قوم طرفته واپس راغے. د ورتلو سره ئے ورته اووے

شوی وه، لا قافله رسیدلی نه وه چه حضرت موسیٰؑ یوازے روان شو او الله ته حاضر شو. په دغه موقع باندے چه د بندۀ او د خدائے په منځ کښے څه معامله اوشوه هغه د سورة اعراف په رکوع ۱۷ کښے په تفصیل سره بیان شوی ده. حضرت موسیٰؑ د الله د دیدار د پاره درخواست اوکړو او الله ورته اوفرمائیل چه ته ما نه شے لیدلے، بیا الله تعالیٰ خپله تجلی یو غره ته ښکاره کړه او هغه ریزه ریزه شو او موسیٰؑ بے هوشه راپریوتو، بیا ورته د کا نړی په تختو باندے لیکلی شوی حکمونه ورکړے شو، دا ټول هغه وخت واقعات دی. دلته د دے واقعاتو نه صرف هغه واقعه بیانیږی کوم چه د بنی اسرائیلو د سختی سره تعلق لری. د دے بیان مقصد د مکے کافرانو

يٰقَوْمِ اَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ۬ؕ اَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ يَّحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَخْلَفْتُمْ مَّوْعِدِيْ ﴿۸۶﴾

"اے زما د قوم خلقو، آیا ستاسو رب ستاسو سره ښۀ وعدہ[۶۳] نۀ وه کړې؟ آیا په تاسو ډیرے ورځے تیرے شوې دی[۶۴]؟ یا تاسو د خپل رب غضب په ځان راوستل غواړئ چه زما د وعدے[۶۵] نه مو خلاف اوکړو

یا دوه ځایونه قطعاً نۀ وو۔ حالانکه سُمیری نومے قوم د پخوانی تاریخ یو مشهور قوم وو چه د حضرت ابراهیم علیه السلام په زمانه کښے په عراق او په خواؤشا علاقو باندے خوارۀ شوی وو، او د دے خبرې ډیر قوی امکان دے چه د حضرت موسیٰ په زمانه کښے به د دے قوم خلقو ته په مصر کښے سامری ویلے کیدو۔ بیا پخپله د سامریہ اصل ته اُوګورئ چه د دے په نسبت سره د شمالی فلسطین خلقو ته سامری ویل شروع شو۔ د بائیبل بیان دے چه د اسرائیلی حکومت بادشاه عمری د "سمر" نومے یو سړی نه هغه غرا خستلے وو چه بیا ئے پرِ روستو خپل دارالسلطنت جوړ کړو۔ او چونکه د غرۀ پخوانی مالک نوم "سمر" وو نو ځکه د هغے ښار نوم سامریہ کیښودے شو (سلاطین ۱، باب ۱۶۔ آیت ۲۴)۔ د دے نه صفا دا معلومیږی چه د سامریہ ښار جوړیدو نه مخکښے "سمر" نومے سړی موجود وو او د هغوی په نسبت سره د هغوی د نسل یا د هغوی د قبیلے نوم سامری، یا د یو ځائے نوم سامریہ کیدل کم از کم ممکن ضرور وو۔

[۶۳] "ښۀ وعده نۀ وه کړې" دا ترجمه هم کیدے شی۔ په متن کښے چه کومه ترجمه موږ کړې ده د هغے مطلب دا دے چه د نن پورے ستاسو رب ستاسو سره د ښیګړے څومره وعدے کړې دی هغه ټولے تاسو ته حاصلے شوی دی۔ تاسو ئے د مصر نه په خیریت سره اُوویستلئ، د غلامئ نه ئے خلاص کړئ، ستاسو دشمن ئے تس نس کړو، ستاسو د پاره ئے په صحرا کانو او غرونو کښے د سورې او خوراک بند وبست اُوکړو۔ آیا دا ټولے ښه وعدے پوره نۀ شوے؟ د دویمے ترجمے مطلب به دا وی چه تاسو ته د شریعت او د هدایت نامے د رکولو کومه وعده شوی وه، نو آیا هغه ستاسو په نز د خیرا او د ښیګړے وعده نۀ وه؟

[۶۴] دویمه ترجمه دا هم کیدے شی چه "آیا په وعده پوره کیدو کښے ډیر وخت اُولږید چه تاسو بے صبره شوئ؟" د اولنئ ترجمے مطلب به دا وی چه په تاسو باندے الله تعالیٰ وس ؤس کوم عظیم الشان احسانات کړی دی، آیا په هغے څه ډیره موده تیره شوی ده چه کئ ستاسو نه هغه هیر شوی دی؟ آیا ستاسو د مصیبتونو په زمانه باندے په سوؤنو کلونه تیر شوی دی چه ستاسو په سرو نو کښے مستی راغلے او بے لارے شوئ؟ د دویمے ترجمے مطلب صفا دے چه د هدایت نامے ورکولو کومه وعده شوی وه، د هغے په پوره کیدو کښے څه تاخیر خونۀ دے شوے چه هغه تاسو د ځان د پاره عذر او بهانه جوړه کړئ۔

[۶۵] د دے نه مراد هغه وعده ده چه هر قوم ئے د خپل نبی سره کوی۔ یعنی په هغه چه د تللو وعده۔ د هغه په هدایت باندے د مضبوطو اُوسیدلو وعده۔ د الله نه بغیر د بل چا د بندګئ د نۀ کولو وعده۔

قَالُوْا مَآ اَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَآ اَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ اَلْقَى السَّامِرِيُّ ﴿۸۷﴾ فَاَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا

هغوئ جواب ورکړو "مونږه په خپل اختيار سره ستا د وعدے نه خلاف نه دے کړے، کار داسے اوشو چه د خلقو ګالی په مونږه بوج کړے شوی وُو او مونږه هغه غورزولی وُو"[۶۷] ——— بيا دغسے سامری هم څه اوغورزول[۶۸] او د هغوئ د پاره ئے د يو سخی شکل جوړ کړو او بهرته ئے راوويستو چه د هغے نه

[۶۷] د کوم خلق چه د سامری په فتنه کښے اخته شوی وُو دا د هغوئ عذر وُو. د هغوئ د وينا وه چه مونږه ګالی غورزولی وُو. نه زمونږ نيت د سخی د جوړولو وُو او نه را ته دا معلومه وه چه څه به تر جوړيږی. د هغے نه روستو چه کومه معامله پيښه شوه هغه وه څه دا رنګ چه د هغے په ليد وسره مونږ به بے اختياره په شرک کښے مبتلا شو.

"د خلقو ګالی په مونږه را بوج کړے شوی وُو" د دے سيده ساده مطلب خو دا دے چه زمونږه ناريينو او ښځو کوم درانه درانه ګالی د مصر د رواج مطابق اچولی وُو هغه د دے صحرا په چکرو کښے په مونږه باندے بوج شوی وُو او مونږه پريشانه وُو چه دا بوج به تر کومه حده پورے ګرځوو. ليکن د بائيبل بيان دے چه د مصر نه د تللو په وخت کښے د هر اسرائيلی د کور ښځو او ناريينو د خپل مصری ګاونډيانو نه دا ګالی غوښتی وُو او دغه شان هر يو اسرائيلی خپل ګاونډی لوټلے وُو او شپه په شپه ئے "هجرت" کړے وُو. دا اخلاقی کارنامه صرف د دے حده پورے نه وه چه کوم هر اسرائيلی دا کار په خپله کړے وُو، بلکه دا د خير کار هغوئ ته د الله نبی حضرت موسیٰ ښودلے وُو، او نبی ته هم د الله د طرفه حکم شوے وُو. د بائيبل په خروج کتاب کښے دی چه:

"خدائے تعالیٰ موسیٰ ته اُووے ....... لاړشه او اسرائيلی بزرګان يو ځائے ته را جمع کړه او هغوی ته اُووايه.... چه تاسو کله وځئ نو خالی لاس به نه وځئ بلکه ستاسو يوه يوه ښځه به د خپلے ګاونډئ نه او د خپل خپل کور د ميلمه نه د سرو سپينو ګالی او جامے اُوغواړی. هغه به تاسو خپلو ځامنو او لونړو ته ورواغوندوئ او مصريان به لوټ کړئ" (باب ۳- آيتونه ۲۱ تا ۲۲).

"او خداوند موسیٰ ته اُووے..... اُوس ته د خلقو په غوږ کښے دا خبره واچوه چه په هغوی کښے هر سړے د خپل ګاونډی نه او هره ښځه د خپلے ګاونډئ نه د سرو سپينو ګالی واخلی، او خدائے به هغه خلقو باندے مصريان مهربانه کړل" (باب ۱۱- آيت ۲-۳).

"او بنی اسرائيلو د موسیٰ د وينا مطابق دا هم وکړل چه د مصريانو نه ئے د سرو سپينو ګالی او جامے اوغوښتلے او خداوند د مصريانو په نظر کښے دا خلق داسے عزتمند کړل چه څه ئے ترے غوښتل هغه ئے ورله ورکړل. په دے طريقه هغوی مصريان لُوټ کړل" (باب ۱۲- آيت ۳۵-۳۶).

افسوس دے چه زمونږ مفسرينو هم د قرآن د دے آيت په تفسير کښے د بنی اسرائيلو دا روايت په پټو سترګو را نقل کړے دے او د هغوی د دے غلطئ د وجه نه په مسلمانانو کښے هم دا خيال عام شوے دے چه د

لَهٗ خُوَارٌ فَقَالُوْا هٰذَآ اِلٰـهُكُمْ وَاِلٰهُ مُوْسٰى ۬ فَنَسِيَ ﴿۸۸﴾ اَفَلَا يَرَوْنَ
اَلَّا يَرْجِعُ اِلَيْهِمْ قَوْلًا ۬ وَّلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ﴿۸۹﴾ وَلَقَدْ
قَالَ لَهُمْ هٰرُوْنُ مِنْ قَبْلُ يٰقَوْمِ اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ ۚ وَاِنَّ رَبَّكُمُ
الرَّحْمٰنُ فَاتَّبِعُوْنِيْ وَاَطِيْعُوْٓا اَمْرِيْ ﴿۹۰﴾ قَالُوْا لَنْ نَّبْرَحَ



غوبي پشان آواز راوتلو۔ خلقو چغې کړې ''دا دے ستاسو خدائ او د موسیٰ خدائ، دا د موسیٰ هیر شوے دے'' آیا دوی نه کتل چه هغه نه دوی له د خبرې جواب ورکوی او نه د دوی د نفع او د نقصان څه اختیار لری؟
هارونؑ دغه خلقو ته (د موسیٰ د راتلو نه) مخکښے ویلی وُو چه ''اے خلقو، تاسو د دے په وجه په فتنه کښے اخته شوی یئ، ستاسو رب خو رحمٰن دے، پس تاسو زما پیروی اوکړئ او زما خبره اومنئ''۔ خو هغوی هغه ته اُووے چه ''مونږ خو به هم د

کالو د ایوج د دے لوټ بوج وُو۔
د آیت د دویمے ټوکړے او موږه هغه غورزولی وُو، زما په نزد مطلب دے چه خلق به د کالو د ګڼو له تنګ شوی وُو او په خپل منځ کښے به ئے په دے خبره مشوره کړی وی چه ټول کالی د یو ځائے ته راجمع کړے شی، او د هرچا د کالو مقدار د ځان له ځان له اُولیکلے شی چه د چا څومره سره زر دی او د چا څومره سپین زر دی، بیا د هغه ویلی کړے شی او ښختے او سیخونه ئے ترے جوړ کړے شی، د پاره د دے چه د خلقو د سامان سره په خروار وپه غویانو باندے په وړلو کښے آسان شی۔ چنانچه د دے فیصلے مطابق به هر سړی خپل خپل کالی راوړی وی او یو ډیری ته به ئے غورزولی وی۔
۶۸ د دے ځائے نه د پیراګراف د آخره پورے چه کوم عبارت دے د هغے نه صفا معلومیږی چه د قوم جواب په ''غورزولی وُو'' باندے ختم شوے دے او د هغے نه را روستنے تفصیل الله تعالیٰ پخپله بیانوی۔ د دے نه دا معلومیږی چه واقعه داسے ده چه خلق د دے نه ناخبره چه روستو به څه فتنه جوړیږی خو خپل خپل کالی ئے راوړل او ډیره ئے ترے جوړه کړه او سامری صاحب هم په دوی کښے شامل وُو۔ روستو بیا سامری صاحب د کالو د ویلو کولو خدمت په خپله ذمه واخستو او څه داسے چل ئے ورسره اُوکړو چه د سرو زرو د ښختو او سیخانو په ځائے د یو سخی شکل د بتځی نه را اُووتو چه د هغه نه د غوبی پشان آواز راوتلو۔ دغه شان سامری قوم له دوکه ورکړه او ورته ئے اُووے چه ما خو صرف سره زر ویلی کړی دی، دا ستاسو خدائ پخپله په دے شکل کښے راغلے دے۔

عَلَيْهِ عٰكِفِيْنَ حَتّٰى يَرْجِعَ اِلَيْنَا مُوْسٰى ۞۹۱ قَالَ يٰهٰرُوْنُ مَا مَنَعَكَ

عبادت کوؤ ترڅو چه موسیٰ موږ ته واپس نهٔ وی راغلے[۶۹]".

موسیٰ (چه قوم له ئې زورنه ورکړه نو بيا هارون ته متوجه شو او) ووئيل "اے هارونه، تا چه کله اوکتل چه

[۶۹] د دے برعکس بائيبل په حضرت هارون باندے الزام لګوی چه سخی جوړ ولو او د هغه د عبادت کولو لويه ګناه د هغه نه شوی ده:

"او هر کله چه خلقو اوليدل چه موسیٰ د غره نه را کوزيدو وناوخته کړو نو هغوئ د هارون خواته راجمع شو او ورته ئې اُووے چه پاسه او موږ له خدائے جوړ کړه چه زموږ نه مخکښې روان وی، ځکه چه موږ ته پته نهٔ لګی چه په هغه موسیٰ، چه موږ ئې د مصر نه رااُوويستلو، څه اُوشو. هارون هغوئ ته اُووے چه ستاسو د ښځو او د هلکانو او د جينکو په غوږونو چه کومے د سرو زرو والئ دی هغه اوباسئ او ما له ئې راوړئ. نو ټولو خلقو د هغوئ د غوږونو نه د سرو زرو والئ رااُويستلے او هارون له ئې راوړے. هارون د هغوئ نه هغه والئ واخستلے او يو قالب شوے سخے ئې ترے جوړ کړو چه شکل ئې ورله په اوزارو ټيک راټيک کړو. پس د هغے نه هغوئ اُووے چه اے اسرائيل! هم دا ستا هغه خدائے ده چه ته ئې د مصر نه رااُوويستلے. د دے په ليدو سره هارون د هغه مخے ته د قربانئ يو ځائے جوړ کړو او هغه اعلان اُوکړو چه صباله به د خداوند د پاره اختروی" (خروج، باب ۳۲-آيت ۱-۱۵)۔

دا خبره ډيره ممکنه ده چه په بنی اسرائيلو کښے دا غلط روايت په دے وجه مشهور شوے وی چه د سامری نوم به هم هارون وُو، او روستنو خلقو به دا هارون د نبی هارون سره خلط ملط کړے وی. ليکن تر ننه عيسائی تبليغيان او د مشرقی ژبو مغربی ماهران په دے خبره زور ورکوی چه قرآن دلته هم په غلطئ ده، په اصل کښے د هغوئ پاک نبی د سخی نه خدائے جوړ کړے وُو او قرآن چه د هغه د لمن نه دا داغ صفا کړے شو نو دائے احسان نهٔ دے کړے بلکه اُلټا ګناه ئې کړے ده. دا دے د دے خلقو د ضد حال، دوئ ته دا په نظر نهٔ راځی چه هم په دے باب کښے يو څو کرښے وړاندے بائيبل څنګه د خپل غلطيان راڅرګنده ښکاره کوی. د دے باب په آخری لس آيتونو کښے بائيبل دا بيان کوی چه حضرت موسیٰ د دے نه روستو نی لاوی قبيله راجمع کړه او د الله تعالیٰ دا حکم ئې ورته واورو چه کومو خلقو د شرک دا لويه ګناه کړے ده هغوی دِ قتل کړے شی، او هر مومن دِ خپل لاس خپل هغه رور او ملګرے او ګاونډی قتل کړی چا چه د سخی عبادت کړے وُو. چنانچه په دغه ورځ دريه زره سړی قتل کړے شو. اُوس خبره دا ده چه حضرت هارون ولے پرينښودے شو؟ که چرے هغه د دے جرم بنيا دايښودونکے وُو نو هغه د عام قتل نه څنګه معاف کړے شو؟ آيا نبی لاوی به دا نه وئيل چه اے موسیٰ، ته خو موږ ته حکم کوے چه موږ دِ خپل ګنهګار رُونړه او ګنهګار ملګری او ګنهګار ګاونډيان په خپلو لاسونو قتل کړو، خو خپل رور ته هيڅ نهٔ وايے حالانکه اصلی ګنهګار هم هغه وُو؟ وړاندے بيا بيان کوی چه موسیٰ خداوند له لاړو او عرض ئې اُوکړو چه اُوس که بنی اسرائيلو ګناه معاف کړه، کنه نو زما نوم د خپل کتاب نه اُوباسه. الله ورله جواب ورکړو چه

إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوٓا۟ ﴿۹۲﴾ أَلَّا تَتَّبِعَنِ ۖ أَفَعَصَيْتَ أَمْرِى ﴿۹۳﴾ قَالَ يَبْنَؤُمَّ
لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِى وَلَا بِرَأْسِىٓ ۖ إِنِّى خَشِيتُ أَن تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ
بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِى ﴿۹۴﴾ قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَٰسَٰمِرِىُّ ﴿۹۵﴾

دوئی بے لارے کېږی نو تۀ چا منع کړې وې چه زما په طریقه دِ عمل نۀ کوې؟ آیا تا زما دَ حکم خلاف ورزی اوکړه؟
هارون ورله جواب ورکړو" اے زما دَ مور ځویه، زما دیږو مۀ رانیسه، او زما دَ سر ویښته مۀ راکاږه،
زما سره خو دے خبرې ېره وه چه تۀ به راشې او وایې به چه تا په بنی اسرائیلو کښې بے اتفاقی راوستله
او زما دَ خبرې لحاظ دِ اُو نۀ کړو"
موسیٰؑ اُووے او سامریه، ستا څه معامله ده؟

"چا زما گناه کړې ده زۀ به دَ هغه نوم دَ خپل کتاب نه لرے کوم" لیکن مونږه وینو چه دَ حضرت هارون نوم لرے نۀ کړے شو. بلکه دَ دے برعکس هغۀ ته او دَ هغۀ اولاد ته په بنی اسرائیلو کښې دَ ټولو نه عزتمند عُهده. یعنی دَ بنی لاوی سرداری او دَ مقدس کهانت ورکړے شو (گنتی، باب ۱۸-آیت ۱-۷). آیا دَ بائیبل دا خپل شهادت په خپله دَ خپل هغکینی بیان تردید نۀ کوی او دَ قرآن دَ بیان تصدیق نۀ کوی؟
^۳^ دَ حکم نه مراد هغه حکم دے کله چه حضرت موسیٰؑ غرته تلو او حضرت هارونؑ ئے په خپل ځائے دَ بنی اسرائیلو سردار جوړ کړو او حکم ئے ورته اُوکړو. په سورة اعراف کښې دا حکم په دے الفاظو سره بیان کړے شوے دے، وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَٰرُونَ ٱخْلُفْنِى فِى قَوْمِى وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ ٱلْمُفْسِدِينَ
"موسیٰؑ (چه کله تلو) خپل رور هارون ته اُووے چه تۀ زما په قوم کښې زما په ځائے کار کوه او اصلاح کوه، دَ مفسد انو په لاره مۀ ځه" (آیت ۱۴۲).
^۴^ دَ دے آیت په ترجمه کښې مونږه دَ دې خبرې لحاظ ساتلے دے چه حضرت موسیٰ کشر رور وُو خو دَ منصب په لحاظ سره مشر وُو، او حضرت هارون مشر وُو خو دَ منصب په لحاظ سره کشر وُو.
^۵^ دَ حضرت هارون دَ دے جواب مطلب هرگز دا نۀ دے چه کنی دَ قوم اتحاد زیات اهمیت لری دره خبرې نه چه هغوی په نیغه لاره وی، یعنی دَ قوم اتحاد اگر که په شرک باندِ وی خو دَ بے اتفاقی نه بهتر دے خواه که بے اتفاقی دَ حق او که باطل په بنیاد باندِ وی. څوک چه دَ دے آیت نه دا مطلب اخلی نو هغه به دَ قرآن نه دَ هدایت په ځائے گمراهی اخلی. دَ حضرت هارون په پوره خبره باندِ دَ ځان پوهه کولو دَ پاره دا آیت دَ سورة اعراف دَ آیت ۱۵۰ سره یو ځائے لوستل پکار دی. هلته هغه فرمائی چه
"ابْنَ أُمَّ إِنَّ ٱلْقَوْمَ ٱسْتَضْعَفُونِى وَكَادُوا۟ يَقْتُلُونَنِى فَلَا تُشْمِتْ بِىَ ٱلْأَعْدَآءَ وَلَا تَجْعَلْنِى مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ" "زما دَ مور ځویه، دے خلقو زۀ دیا ئو کړم او قریب وه چه زۀ ئے وژلے وے. پس تۀ دشمنانو له دا موقع مۀ ورکوه چه په ما پورے اُوخاندی او په دے ظالمو خلقو کښې ما مۀ شماره" اوس دا دواړه آیتونه را یو ځائے کړه او اُوگوره نو اصل واقعه دا معلومیږی چه

قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوْا بِهٖ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ فَنَبَذْتُهَا وَ كَذٰلِكَ سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ ﴿۹۶﴾

هغه جواب ورکړو "ما هغه څیز اُولیدو کوم چې دې خلقو ته په نظر رانغې، نوما د رسول د قدم د نښه نه یو موټے را اُوچت کړو او هغه مې ورواچوو، زما نفس ماته څه داسې ښکاره کړو"

حضرت هارون خپل ښه کوشش اُوکړو چې خلق د دے ګمراهئ نه منع کړي، لیکن خلقو د هغه خلاف سخت فساد راپورته کړو او د هغه مرګ ته تیار شو. هغه مجبوره شو او د دے ویرے نه خاموش شو چې هسې نه د حضرت موسیٰؑ د راتلو نه مخکښې دلته خانه جنګي شروع شي، او چې بیا هغه راشي او دا شکایت اُوکړي چې تا حالات سمولے نه شو نو خرابوو دې څله، او زما د راتلو انتظار دې ولے اُو نه کړو. د سورة اعراف د آیت د آخری فقرے نه دا هم معلومیږي چې په قوم کښې د دواړو وروڼو دشمنان موجود وو.

۷۳ د دے آیت په تفسیر کښې دوؤ ډلو عجیبه عجیبه خبرې کړي دي.

د پخوانو مفسرینو یوے ډلے د دے دا مطلب بیان کړے دے چې "سامري رسول یعنې حضرت جبرئیلؑ په تلو کښې لیدلے وو، او د هغه د قدم د نښے نه ئې یو موټے خاورے را اُوچته کړے وه، او دا د هغه خاورے کرامت وو چې د دے غوسي په بُت باندې واچولے شوه نو په هغه کښې ژوند راپیدا شو او د ژوندي سخي په شان آواز ونه ئې شروع کړل". حالانکه قرآن دا نه وائي چې په حقیقت کښې هم دا سے شوي وه. قرآن صرف دا وائي چې د حضرت موسیٰؑ د تپوس په جواب کښې سامري دا خبره د ځانه جوړه کړه. نو اُوس موږ په دے نه پوهیږو چې د مفسرینو څنګه دا یقین راغلے دے چې دا واقعي یو حقیقت دے او قرآن بیان کړے دے؟

دویمه ډله د سامري د دے قول یوه بله معنیٰ کوي. هغوئ وائي چې سامري په اصل کښې دا ویلي وو چې "ماته په رسول کښې، یعنې په حضرت موسیٰ کښې، یا د هغه په دین کښې هغه کمزوري ښکاره شوه چې نورو ته په نظر رانغله. څکه ما د یو حده پورے د هغه پیروي اُوکړه، خو روستو مې بیا د هغه پیروي پریښوده." دا معنیٰ غالبًا چې د ټولو نه اول ابومسلم اصفهاني کړي وه، بیا امام رازي دغه معنیٰ په خپل تفسیر کښې نقل کړه او په هغې باندې ئې خپله خوښتیا ظاهره کړه، او اُوس د نوي طرز مفسرین عام طور دے له ترجیح ورکوي. لیکن دے حضراتو دے خبرې ته فکر نه دے کړے چې قرآن د ډُوبو او د اردو په ژبه کښې نه دے نازل شوے بلکه په صفا او عامه او واضحه عربي ژبه کښې نازل شوے دے چې یو عام عربي سړے پرې د خپلے علمے ژبے مطابق پوهه شي. څوک چې د علمے عربي ژبه نه واقف وي، هغه هیڅکله دا خبره نه شي منلے چې د سامري د دے خبرې دا کولو د پاره به په واضحه عربي ژبه کښې هغه الفاظ استعمالیږي کوم الفاظ چې د دے آیت په تفسیر کښې استعمال شوي دي. یو عام عربي چې دا الفاظ واوري نو هغه تر هیڅکله دا مطلب نه شي اخستلے کوم مطلب چې تردا حضرات اخلي. چې یو سړے د لغت په کتابونو کښې یو دا سے لفظ اُوګوري چې د هغې ډیر مطلبونه وي، او د هغې مطلبونو نه یو مطلب په دا سے عبارت کښې اولګوي چې په هغه کښې یو عام

قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ ۠ وَاِنَّ

موسیٰ ورته اُووئیل بس دے ورک شه، اوس به ته تول ژوند داچغې وهې چه ماله مه رانږدې کېږئ ۷۳ او

عربي دغه لفظ دَ دغه مطلب دَ پاره نه استعمالوی، تو دا په ژبه پوهیدل خوندی البته دَ عبرو جوړولو کمال کیدے شی ـ که سرے دِکشنری را واخلی او دَ دے حضراتو دَ اردو یا دَ انګریزی دَ مضمونونو سره هم دَ غسے کار شروع کړي، او دوی دَ خپل مضمون یو دوه ځلو ریدل ل بدل مطلبونه واوری نوکیدے شی چه دوئ چغے سورے جورے کړي ـ په قرآن کښے داسے معنا ګانے په هغه وخت کښے کیږی کله چه یو سړے دَ یو آیت صفا او سیده مطلب اُوویني او هغه په خپل عقل کښے دا ګمان کوی چه دلته خو دَ الله تعالیٰ نه ډیره بے احتیاطی شوی ده ، راشه دا خبره به ورله زه داسے جوړه کړم چه دَ هغهٔ غلطی پټه پاتے شی او خلقو له دا موقع پیدا نه شی چه په هغهٔ پورے اُوخاندی ـ

دا قسم فکر چه سړے پریږدی او په روان عبارت کښے دا آیت اُولولی نو ډیره په آسانئ سره به پوهه شی چه سامری یو فسادی سړے وُو او ډیر په سوچ سمجھ ئے دَ یو زبردست فریب سکیم تیار کړے وُو. هغهٔ یوازے دا نه چه دَ سرو زرو سخے ئے جوړ کړو او په هغه چل ئے ترے سخی پشان آوازونه اُوبسکلوا دَ ټول قوم بے وقو خلق ئے په دوکه کښے واچول ، بلکه دا نړ ورتیا ئے هم اُوکړه چه موسیٰ ته ئے دَ دروغو یوه قیصه جوړه کړه ـ هغهٔ دا دعوی اُوکړه چه ما هغه څه اُولیدل چه نورو خلقو ته په نظر نه راتلل، او دا خبره ئے ورسره دَ ځانه جوړه کړه چه دَ رسول دَ قدم دَ نښے نه ما یو موټے خاوره را واخستله او هغه م په سخی وا چوله او دا کرامات را ښکاره شو. کیدے شی دَ رسول نه مراد جبریل وی، لکه څنګه چه ځنو ا نو مفسرینو ویلی دی ـ لیکن که سړے دا اُووائی چه هغهٔ دَ رسول لفظ ځپله دَ حضرت موسیٰ دَ پاره استعمال کړے وُو، نو دا دَ هغهٔ یوه بله مکاری وه ـ په دے طریقه هغه حضرت موسیٰؑ له دَ هغی رشوت ورکول غوښتل چه دَ خپلے ښپے دَ خاورے کرامت واوری او خوشحاله شی او سامری ته اُووائی چه شاباسے زما په حقله دغسے نور کرامتونه هم مشهور کړه ـ قرآن دا ټوله معامله په داسے طریقه پیش کوی چه دا دَ سامری دوکه وه ، او په داسے طریقه ئے نه پیش کوی چه ګنی دا یوه واقعه وه او حقیقت وُو چه په بیانولو سره ښکښے عیب ښکاری او سړے ورله خامخا دَ الفاظو په زور خبره سمه راسمه کړي ـ بلکه په روستنئ فقره کښے چه حضرت موسیٰؑ هغه په کومه طریقه رټلے دے او هغه ته ئے کومه سزا اورولی ده نو دَ هغے نه دا صفا معلومیږی چه حضرت موسیٰؑ کله دَ هغه دَ فریب نه دکے خبره وا وریدله نو واپس ئے ورله په مخ ورا اُووهیله ـ

۷۳ یعنی یوازے دا نه چه تول عمر ئے دَ خلقو سره تعلقات ختم کړے شو او دَ "پلیت" نوم پرکیښودے شو، بلکه دا ذمه واری ئے هم په هغه کیښوده له چه هغه به ځپله هر سړی ته دَ دے نه خبروی چه زه ناپاک یم ماله کوټے مه راوړه ـ دَ بائیبل په کتاب احبار کښے چه دَ ځذام دَ بیماری نه دَ پیچ کیدلو دَ پاره خلقو ته کومے قاعدے بیان کړے شوی دی په هغے کښے یوه قاعده دا هم ده چه :

"او کوم ځذامی مریض چه په دے مصیبت کښے اخته وی دَ هغه کپړے دِ شلید لی وی او دَ هغه

لَكَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهُ ۚ وَانْظُرْ إِلَىٰ إِلَٰهِكَ الَّذِي ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا ۖ
لَنُحَرِّقَنَّهُ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهُ فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿٩٧﴾ إِنَّمَا إِلَٰهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي
لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿٩٨﴾ كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ
أَنْبَاءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ وَقَدْ آتَيْنَاكَ مِنْ لَدُنَّا ذِكْرًا ﴿٩٩﴾ مَنْ
أَعْرَضَ عَنْهُ فَإِنَّهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِزْرًا ﴿١٠٠﴾ خَالِدِينَ فِيهِ

ستاسو دَ پېژندلو دَپاره يو وخت مقرر دے چه دَ هغې نه هيڅکله خلاصے نشته ـ او اوګوره دے خپل خدائے ته چه ستا ورسره څومره مينه وه ، اوس به مونږه سوزوو او ذره ذره کوو به ئے او په دريابونو کښې به ئے بهيوو ـ اے خلقو ، ستاسو خدائے خو يو الله دے چه دَ هغه نه بغير بل خدائے نشته ، دَ هغه علم په هر څيز باندې خور دے ؟

اے محمد ﷺ ، دغسې دَ تېرو شوو حالاتو خبرونه مونږه تاته اورَوُو ، او مونږه تاله خاص دَ خپل طرفنه يو ذکر (دَ نصيحت سبق) درکړے دے ـ چاچه دَ دے نه مخ وارَوُو هغه به دَ قيامت په ورځ دَ ګناهونو غټ بار اوچتوي ، او داسې خلق چه دغسې دي هغه ټول به دَ دے په سزا کښې هميشه وي ،

دَ سر وېښته دِ خوارهٔ واره وي او هغه دِ په پېټه خوله چغې وهي چه ناپاک ناپاک ـ څومره ورځې چه هغه په دے مصيبت کښې اخته وي هغو مره به هغه ناپاکه وي او هغه شے هم ناپاکه ـ نو بس هغه دِ يوازې وي ، دَ هغه مکان دِ دَ لښکر دَ ځائے نه بهر وي " ( باب ۱۳ ـ آيت ۴۵ ـ ۴۶ ) ـ

دَ دے نه داګمان پيدا کيږي چه يا خو په دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دَ عذاب په طور دَ هغه دَ جذام په مرض رنځور کړے شوے وي ، يا به هغهٔ دَ پاره دا سزا مقرر کړے شوې وي چه لکه څنګه په بدن باندې رنځور جذامي مريض دَ خلقو نه جدا ساتلے کيږي دغه شان دِ دا اخلاقي جذامي رنځور دَ خلقو نه جدا وساتلے شي ، او دَ هغه دِ هم دَ جذامي رنځور په شان خلقو ته په چغو چغو وائي چه زهٔ ناپاکه يم ، ما له کوټے مهٔ راورځئ ـ

۵ۍ دَ موسیٰ عليه السلام قيصه ختمه شوه او اوس بيا خبره هغه ځائے ته راځي دَ کوم ځائے نه چه سورة شروع شوے وُو ـ يو ځل بيا دَ سورة هغه اولنۍ آيتونه اولولئ چه دَ هغې نه روستو فوراً دَ حضرت موسیٰ قيصه شروع شوې وه ـ په دے سره به دِ دا خبره ښه په ذهن کښې کيني چه دَ سورة دَ بحث کولو اصلي موضوع څه ده ، او په منځ کښې دَ موسیٰ قيصه دَ څه غرض دَ پاره بيان شوې ده ، او اوس قيصه ختمه شوه او خبره بيا څنګه خپل موضوع له واپس لاړه ـ

۶ۍ يعني دا قرآن ، چه دَ دے په حقله دَ سورة په شروع کښې ويئلي شوي وُو چه دا دَ دے دَپاره نهٔ دے نازل کړے شوے چه ستاسو نا شونې کارونه اخلي او تا په يوه سخته کښې اخته کړي ، دا خو يو ياددهانې

وَسَاءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ﴿۱۰۱﴾ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ وَنَحْشُرُ
الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴿۱۰۲﴾ يَّتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا

اود قیامت په ورځ به د هغوی دپاره (د دے جرم د ذمه وارئ بوج) ډیر د تکلیف بوج وی، په دغه ورځ چه صور به پوکے[79] وهلے شی او مونږ به مجرمان په داسے حال کښے راګیر کړو چه (د ډیرے نږه) د هغوی د سترګو نظر نه لړی[80] په خپلو منځ کښے به پټ پټ وائی چه په دنیا کښے به تاسو په مشکل سره لس ورځے

ده او یو نصیحت (یعنی تذکره) ده د هغه چا دپاره چه په زړه کښے ئے د خدائے یره وی.

[77] په دے کښے او نور خبره خو دا اوشوه چه څوک د نصیحت د دے سبق نه، یعنی د قرآن نه مخ اړوی او د دے د حکمونو نه انکار کوی، نو هغه به خپل نقصان کوی، د محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه د خدائے هیڅ نقصان نه شی کولے، د هغوی دا بے وقوفیا به په اصل کښے د هغوی د خپل ځان سره دښمنی وی. دویمه خبره دا اوشوه چه چا ته د دے قرآن نصیحت اورسی او قبول ئے نه کړی، نو هغه په آخرت کښے د سزا نه بچ کیدے نه شی - د آیت الفاظ عام دی. د یو قوم یا د یو ملک یا د یو زمانے سره خاص نه دی. ترڅو پورے چه دا قرآن په دنیا کښے موجود وی او کوم مخلوقته ورسی، نو د هغوی دپاره به دوه لارے وی. یا به دا منی او د دے پیروی به اختیاروی او یا به دا نه منی او د دے نه به مخ اړوی. کوم خلق چه اوله لارا اختیار کړی د هغوی انجام به وړاندې بیان شی - او کوم خلق چه دویمه لارا اختیار کړی نو د هغوی انجام دا دے کوم چه په دے آیت کښے بیان شوے دے.

[78] صور، یعنی ترم، داسے شکر چه د هغے نه آواز اوځی. ن صبا د دے ځائے بګل د چه د فوجیانو د راجمع کولو دپاره وهلے کیږی. الله تعالیٰ چه کله انسان په هغه څیزونو پوهه کوی په کوم څیزونو چه هغه د خپلو کائناتو نظام چلوی نو هغه ورته هغه الفاظ استعمالوی کوم چه د انسانی ژوند په نظام کښے هغے ته نږدے استعمالیږی. د دے الفاظو د استعمالولو مقصد دا دے چه زمونږه خیال اصلی څیز ته ورنږدے شی، دا نه چه الله تعالیٰ د خپلے بادشاهئ نظام په کوم څیزونو چلوی هغه مونږه بعینه د دنیا د څیزونو پشان اوګنړو. د پخوا زمانے راسے د خلقو د راجمع کولو دپاره او د ضروری خبرو د اعلان کولو دپاره یو داسے څیز ضرور وهلے کیږی چه هغه د ترم یا د بګل پشان وی - الله تعالیٰ فرمائی چه هم د غسے یو څیز به د قیامت په ورځ وهلے کیږی چه هغه به د دنیا د ترئ او د بګل غوندے وی. یو ځل به اوو وهلے شی او ټول به مړه شی چه په دویم ځل اوو وهلے شی نو ټول به را ژوندی شی او د زمکے د هر کوټ نه به راوځی او میدان حشر ته به راټولیږی وهی. (د زیات تفصیل دپاره اوګوره تفهیم القرآن دریم جلد سورة النمل، حاشیه ۱۰۶).

[79] په اصل کښے لفظ "زُرْقًا" استعمال شوے دے چه د اَزرَق جمع ده. ځینو خلقو د دے نه دا مطلب اخستلے دے چه هغوی به په خپله اَزرَق (یعنی سپینوالی ته مائل شنه) شی ځکه چه د ډیرے یرے او د ډیر هیبت د وجه نه به په هغوی کښے وینه وچه شی او داسے به شی لکه چه د وینے یو څاڅکے پکښے نه وی.

عَشْرًا ﴿۱۰۳﴾ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا یَقُوْلُوْنَ اِذْ یَقُوْلُ اَمْثَلُهُمْ طَرِیْقَةً

"نیرے کړی وی" ۔۔۔۔ موږ ته بنه معلومه ده چه هغوی به څه خبرې کوی (موږ ته دا هم معلوم دی[۸۰])
به د غه وخت کښې څو ل به دوی کښې ډیره احتیاط اندازه لګوونکی وی هغه به اُووائی چه

او حشینو نو رو خلقو ده نه دا مطلب اخستلے دے چه هغوی به ازرق العین (یعنی شنو سترګو والا) شی یعنی
د ډیر هیبت د وجه نه به د هغوی سترګے بے نظره شی یعنی نظر به تر لاړشی. او چه د چا سترګو نظر
لاړشی نو د هغهٔ د سترګو کاتی شنه سپین پاتے شی.

۸۰ د دیمه معنیٰ دا هم کیدے شی چه "د مرګ نه روستو به د دے وخته پورے به تاسو یانی په مشکل سره
لس ورځے تیره شوی وی"؟ د قرآن مجید د نورو ځایونو نه معلومیږی چه د قیامت په ورځ به خلق د دُنیاه
ژوند په حقله هم دا اندازه لګوی چه د دُنیا ژوند ډیر لږ وو، او د مرګ نه روستو د قیامته پورے چه
کوم وخت تیر شوے وی د هغې په حقله به هم خلق د غسے اندازے لګوی. په یو ځائے کښے دی چه قَالَ کَمْ
لَبِثْتُمْ فِی الْاَرْضِ عَدَدَ سِنِیْنَ ﴿۰﴾ قَالُوْا لَبِثْنَا یَوْمًا اَوْ بَعْضَ یَوْمٍ فَسْـَٔلِ الْعَآدِّیْنَ ﴿۰﴾ "الله تعالیٰ به
تپوس اوکړی چه تاسو په زمکه کښے څو کاله ؤسیدلی یئ؟ خلق به جواب ورکړی چه یوه ورځ یا د ورځے
څه حصه به ؤسید لی یو، د شمار کونکو خلقو نه تپوس اُوکړه" (المؤمنون آیتونه ۱۱۲-۱۱۳). بیه
بل ځائے کښے فرمائی، وَیَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ یُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ مَا لَبِثُوْا غَیْرَ سَاعَةٍ کَذٰلِكَ
کَانُوْا یُؤْفَکُوْنَ ﴿۰﴾ وَقَالَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِیْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِیْ کِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰی یَوْمِ
الْبَعْثِ فَهٰذَا یَوْمُ الْبَعْثِ وَلٰکِنَّکُمْ کُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۰﴾ "او په کومه ورځ چه قیامت قائم شی نو مجرمان
خلق به قسمونه خوری چه موږ (د مرګ په حالت کښے) د یو ساعت نه زیات وخت نهٔ دے تیر کړے.
دغه شان به هغوی په دنیا کښے هم دوکه کیدل. او کوم خلقو ته چه علم او ایمان ورکړے شوے وُو هغوی
به وائی چه په کتاب الله کښے خو تاسو د یوم البعث پورے وخت تیر کړے دے او دا هم دغه یوم البعث دے
خو تاسو ته معلوم نهٔ وُو" (الروم- آیتونه ۵۵-۵۶) د دے مختلفو تشریحاتو نه ثابتیږی چه د دُنیا
ژوند او د قبر ژوند به هغوی ته ډیر لږ معلومیږی. د دُنیا د ژوند په حقله به هغوی ځکه دا خبری
کوی چه هر کله هغوی د خپلو اُمیدونو خلاف د آخرت په همیشه ژوند کښے سترګی اُوغړوی او په وتو
اُولیږی چه د دے ځائے د پاره خو موږ هیڅ تیاری نهٔ دی، نو هغوی به ډیر په ارمان سره د دنیا خپل
ژوند ته واپس کوری او د افسوس منګولی به مروړی چه د څلورو ورځو د خوشحالئی د پاره مو خپل همیشه
ژوند برباد کړو. د مرګ نه روستو د قیامته پورے وخت به ځکه هغوی ته لږ ښکاری چه په دنیا کښے هغوی
د مرګ نه روستو ژوند نا ممکنه ګنړلو او قرآن چه د آخرت کوم نقشه پیش کړی وه هغه هدو
په ذهن کښے ناسته نهٔ وه. د دے خیالاتو په وجه به دُنیا کښے آخرت د هغه نه هیر شوے وُو. بیا چه هغه
نا ساپه د آخرت په ژوند کښے سترګی اُوغړوی او د یو یکل په آوازونو میدان حشر ته روان وی نو
سخت هیبت به نیولے وی او د ځان سره به اندازه لګوی چه په فلانی هسپتال کښے د بے هوشه کیدو

۲۵ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا ﴿۱۰۴﴾ وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا

نۀ. ستاسو دَ دنیا ژوند خو بس د یوه ورځې ژوند وُو ـــــ دا خلق[۸۲] ستا نه تپوس کوی چه په دغه ورځ به دا غرونه آخر کوم ځائے ته ځی؟ ورته اُووایه چه زما رب به تِرې ریګ جوړ کړی

نه روستو، یا په فلانی جهاز کښې د ډوبیدو نه روستو، یا په فلانی ځائے کښې د ماد لے کیدو نه روستو به د ده وخته پورې آخر څومره وخت تیر شوے وی. د دغه وخته پورې به د هغهٔ په دماغو کښې دا خبره نه راځی چه هغه کنی په دُنیا کښې مړ شوے وُو او اُوس دا د آخرت جهه ژوندے چه هغهٔ به نه منو او خندا کلفه بړلے وړپوړ کولے. دا وجه ده چه د هر سړی به دا ګمان وی چه شاید زهٔ به یو څو ګینټې یا یو څو ورځے بے هوشه شوے وُوم او اُوس په یو دا سے وخت کښې په هوش کښې راغلم یا اتفاقاً یو دا سے ځائے ته رسیدلے یم په هلته ډیر لوے غټے حادثے په وجه ټول خلق یو طرفته منډې وهی روان دی. کیدے شی چه په دغه زمانه کښې کوم خلق مړه کیږی هغوی چه کله د صُور آواز واوری نو د هغه وخته پورې به هغوی دا سے ګڼړی چه دا اُکنی د هوائی حادثے سانحه ده.

[۸۱] دا د تقریر په مینځ کښې یوه بله خبره ده چه جمله معترضه و رته وائی. دا خبره د دے شُبهے د ختمولو د پاره شوی ده چه خلق کله میدانِ حشر ته منډې وهی او خپلو کښې پټے پټے خبرې کوی نو د هغه بیان آخر نن دلته څنګه کیږی.

[۸۲] دا هم جُمله معترضه ده چه د تقریر په دوران کښې د یو تپوس کونکی په جواب کښې ویلے شوی ده. معلومیږی چه څه وخت به دا تقریر اوروله کیدو نو په هغه وخت کښې به یو تن د مذاق د پاره دا تپوس کړے وی چه نبیؐ د قیامت کومه نقشه پیش کوی د هغه نه خو دا سے معلومیږی چه د ټولے دنیا خلق به په یو هوار میدان کښې منډې وهی. آخر دا لوئے لوئے غرونه به په هغه وخت کښې چرته ځی؟ په کوم ماحول کښې چه دا تقریر کیدو هغه په نظر کښې ځان ته راګښے یاد ساتئ. دَ مکے ښار چه په کوم ځائے کښې دے هغه د یو تالاب په شان دے چه څلور واړه طرفونو ته تړ ډنګ ډنګ غرونه دی. تپوس کونکی په دغه غرونو ته اشاره کړی وی او تپوس به ئے کړے وی. هم په دغه وخت کښې ورته د وحی په ذریعه دا جواب ورکړے شو چه دا غرونه به د ریګ د ذرو په شان ریزه ریزه کړے شی او د خاورو په شان به والوزولے شی او د ټولے زمکے نه به یو دا سے هوار میدان جوړ کړے شی چه هیڅ کندے کونډی به پکښې باقی نه شی، او یو دا سے هوار فرش به تِرې جوړ شی چه معمولی کوږوالے او د ذرے هومره ښکته برهٔ والے به پکښې هم نهٔ وی.

---

رَبِّي نَسْفًا ﴿١٠٥﴾ فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ﴿١٠٦﴾ لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَّ
لَآ أَمْتًا ﴿١٠٧﴾ يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهُ ۚ وَخَشَعَتِ
الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا ﴿١٠٨﴾ يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ

---

اَو وا به ئې لوړې ( او دَ زمکې ) نه به داسې هوار میدان جوړ کړي چه په هغې کښې به ته هیڅ کوږوالے او لوړوالے اُونه وینې ــ ۸۳ په دغه ورځ به ټول خلق دَ آواز کونکي په آواز پسې نیغ راروان وي، هیڅوک به دَ ذرې هومره کوږ به نه شي. او دَ رحمٰن په مخکښې به آوازونه روشي، دَ کش کش او دَ پَس پَس نه بغیر به ته هیڅ نه آورې ــ ۸۴ په دغه ورځ به سفارش

---

۸۳ په عالم آخرت کښې چه به دَ زمکې کوم نوے شکل جوړیږي هغه دَ قرآن مجید په مختلفو ځایونو کښې بیا کړے شوے دے. په سورة انشقاق کښې فرمائي اِذَا الْاَرْضُ مُدَّتْ "زمکه به خوره کړے شي" په سورة انفطار کښې فرمائي اِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ "سمندرونه به اُوشلولے شي" چه مطلب ئې غالبًا دا دے چه دَ سمندرونو تلونه به اُوشلیږي او ټولے اُوبه به په زمکه کښې ښکته لاړے شي. په سورة تکویر کښې فرمائي اِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ "سمندرونه به ډک کړے شي" او دلته وئیلے کیږي چه غرونه به ریزه ریزه کړے شي او دَ ټولې زمکې نه به یو هوار میدان جوړ کړے شي. دَدے نه چه کوم شکل دَ سړي په ذهن کښې جوړیږي هغه دا دے چه په عالم آخرت کښې به دا ټول سمندرونه ډک کړے شي، غرونه به وا اوزولے شي، کندے کوندې به هوارے کړے شي، ځنګلونه به صفا کړے شي او دا ټوله زمکه به دَ یند وس پشان هواره کړے شي. دے شکل ته په دَ سورة ابراهیم په آیت ۴۸ کښې فرمائي يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ "هغه ورځ چه دا زمکه به بدله کړے شي" او دا به دَ زمکې هغه شکل وي چه حشر به پرې قائمیږي او الله تعالیٰ به پرې عدالت کوي. بیا به دَدے نه آخري شکل هغه جوړ کړے شي کوم چه دَ سورة زمر په آیت ۷۴ کښې بیان شوے دے او دا شکل به دَ همیشه دَپاره وي. فرمائي، وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ صَدَقَنَا وَعْدَهٗ وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ ۚ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۝ یعني پرهیزګار خلق به وائي چه شکر دے دَ هغه خدائے چه هغه زمونږ سره خپله وعده پوره کړه او مونږ ئې دَ زمکې وارثان کړو، مونږ په دے جنت کښې چه کوم ځائے غواړو هلته ځان له ځائے جوړولے شو. پس ډیر ښه اجر دے دَ عمل کونکو دَ پاره". دَدے نه معلومه شوه چه دَدے ټولے زمکې نه به جنت جوړ کړے شي او دَ خدائے نیکان او پرهیزګار بندګان به دَدے وارثان وي. په هغه وخت کښې به ټوله زمکه یو مُلک وي. دا غرونه، سمندرونه، دریابونه او صحراګانے، چه نن ئې زمکه په بے شمیره ملکونو او وطنونو کښې تقسیم کړې ده، او ورسره ورسره ئې انسانان هم تقسیم کړي دي، دا به هلته دَ سره موجود نه وي (یادلرئ چه په صحابو او تابعینو کښې حضرت ابن عباس او قتاده هم دَدے خبرې قائل دي چه جنت به هم په دے زمکه باندې وي. او هغوي دَ سورة نجم دَ آیت عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ۝ عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰى، دا معنیٰ کوي چه دَدے نه مراد هغه جنت دے چه اُوس پکښې دَ شهیدانو روحونه جمع ساتلے کیږي.

الشَّفَاعَةُ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا ﴿۱۰۹﴾ يَعْلَمُ مَا
بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا ﴿۱۱۰﴾ وَعَنَتِ الْوُجُوْهُ

فائده منده نۀ وی، بغیر د هغه چا نه چه رحمٰن د سفارش اجازت ورکړی وی او د هغه خبره آوریدل خوښ کړی[۸۵] هغه د خلقو مخکښې روستو ټول حال پیژنی او بل چا ته د پوره علم نشته د دخلقو سره نشته

[۸۴] په اصل کښې لفظ "همس" استعمال شوے دے، چه د خپو د کشا، د پښو خبرو د آواز، د اوښ د تلو آواز او د نور داسې سپکو آوازونو د پاره ویلے کیږی. مطلب دا دے چه هلته به د خپو د کشار او د پښو خبرو د پُسار نه علاوه بل څه نه آوریدے کیږی. یو هیبتناک منظر به وی.

[۸۵] د دے آیت دوه ترجمے کیدے شی. یو هغه چه په متن کښې شوی ده. دویمه دا چه "په هغه ورځ به شفاعت فائده منده نۀ وی، بغیر د دے نه چه د چا په حق کښې رحمٰن د دے اجازت ورکړی او د هغه د پاره په خبره آوریدو راضی وی." الفاظ داسې جامع دی چه دواړه مطلبونه ترې اخستلے کیدے شی. او حقیقت هم دا دے چه د قیامت په ورځ به څوک ساه قدرله په تیزه اخستے نۀ شی نو د سفارش د پاره به څنګه خبره اُوکړی. سفارش به هم هغه سړے کولے شی چا ته چه الله د خبرو کولو اجازت ورکړی، او د هغه چا په حق کښې به ئے کولے شی چه د چا د پاره د الله تعالیٰ د طرف نه د سفارش کولو اجازت مِلاؤ شی. دا دواړه خبرے د قرآن په ډیرو ځایونو کښې به په تفصیل سره بیان کړے شوی دی. یو طرف ته فرمائی مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ، "څوک دے چه د هغه د اجازت نه بغیر د هغه په دربار کښې سفارش اُوکړی؟" (سورۃ بقرۃ آیت ۲۵۵) - او "يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا، لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَقَالَ صَوَابًا،" "هغه ورځ چه روح او فرښتے ټول به په قطار کښې ولاړ وی، او هیڅ خبره به نۀ کوی، صرف هغه به خبری کولے شی چا ته چه رحمٰن اجازت ورکړی او چه ټیک خبره کوی" (النبأ - آیت ۳۸) بل طرف ته فرمائی وَلَا يَشْفَعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى وَهُمْ مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ، "او هغوی د چا سفارش نۀ کوی بغیر د هغه سړی نه چه د هغه په حق کښې په سفارش آوریدو (رحمٰن) راضی وی، او هغوی د هغه د ویرې نه په ویره وُسی" (الانبیاء آیت ۲۸) - او "وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِي السَّمٰوٰتِ لَا تُغْنِيْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى،" "څومره ډیرے فرښتے په آسمانونو کښې دی چه د هغوی سفارش هیڅ فائده نۀ شی ورکولے بغیر د دے نه چه د الله د اجازت نه روستو (سفارش) اُوکړی، او د هغه سړی په حق کښې ئے اُوکړی چه د هغه د پاره الله سفارش آوریدل اُوغواړی او خوښ ئے کړی" (النجم آیت ۲۶)

[۸۶] دلته وجه بیان کړے شوې ده چه په سفارش باندې دا پابندی ولے ده. - که فرښتے دی، که پیغمبران دی او که اولیاء دی، هیچا ته دا علم نشته چه د چا ریکارډ څنګه دے، چا په دُنیا کښې څه کړی، او د الله عدالت ته ئے څه عمل راوړے دے. دد دے برعکس الله تعالیٰ د هر چا د عمل نه خبر دے او دا ورته هم معلومه ده چه یو سړے نیک دے نو څنګه نیک دے، او که یو سړے مجرم دے نو د کوم درجے مجرم دے. د معاف کولو قابل دے او که نۀ دے. د پوره سزا ورکولو مستحق دے او که څه رعایت ورسره هم کیدے شی. په

لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ۚ وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا ﴿١١١﴾ وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخٰفُ ظُلْمًا وَّلَا هَضْمًا ﴿١١٢﴾

د هغه حيّ او قيّوم خدائ نه ښكته كيږي. ناكام به وي هغه څوك چه په دغه وخت كښې ئې د ظلم [۸۶] ګناه پېټي اوچت كړې وي. او څوك چه نيک عمل كوي او هغه مؤمن هم وي [۸۷] نو هغه سره به د ظلم يا د حق تلفئ هيڅ خطره نه وي.

[۸۶] دا بې حالت كښې دا ښكاره كيږي چه فرښتو او پيغمبرانو او نيكانو صالحانو خلقو ته د سفارش كولو اجازه وركړې شي او دوئ چه د چا په حق كښې سفارش كول غواړي نو كوي دې. يو معمولي افسر كه په خپله ورته شان محكمه كښې د خپل هر دوست يا هر عزيز سفارش اوريدل شروع كړي نو په څلور ورځو كښې به خپله ټوله محكمه برباده كړي. نو بيا د زمكې او د آسمانونو د پاچاه نه داتوقع څنګه كيدې شي چه هلته به د سفارشونو بازار ګرم وي، او هر بزرګ دې څې او چه څوک بخښل غواړي هغه دې په خدائ بخښي، حالانكه يو بزرګ ته هم دا پته نه لږي چه هغه د كومو خلقو سفارش كوي چه د هغوئ عملنامه څنګه ده. په دُنيا كښې چه د كوم افسر سره د خپلې ذمه وارئ څه لږ شان احساس هم وي نو د هغه طريقه دا وي چه كه چرې د هغه يو دوست د هغه د يو خطا كار ماتحت په سفارش كښې هغه له ورشي نو هغه ورته وائي چه تاته پته نشته چه دا سړے څومره كام چوردے، خپله ډيوټي نه پيژني، رشوت خوردے او خلق هسې بيسه تنګوي، زه ددهٔ د عمل نه خبريم، مهرباني اوكړه ته ما ته ددهٔ سفارش مه كوه. د دې وړوكې شان مثال نه سړے دا اندازه لګولے شي چه په دے آيت كښې د شفاعت په حقله كومه قاعده بيان كړے شوې ده هغه څومره صحيح او مناسب انصاف والا ده. د خدائ په دربار كښې به د شفاعت دروازه نه بنديږي. كوم نيكو بندګانو چه په دُنيا كښې د خدائ د مخلوق سره د همدردئ سلوک كولو هغوئ ته به په آخرت كښې هم د همدردئ كولو موقع وركړې كيږي. ليكن د سفارش كولو نه مخكښې به هغوئ د الله تعالیٰ نه اجازت غواړي او الله تعالیٰ چه ورله د چا په حق كښې د سفارش كولو اجازت وركړي صرف د هغه په حق كښې به سفارش كولے شي. او د سفارش د پاره به هم دا شرط وي چه هغه به مناسب او حق وي، لكه څنګه چه الله تعالیٰ د دې ارشاد نه "وَقَالَ صَوَابًا" "او ټيک خبره اوكړي" صفا معلوميږي. د ناحقو سفارشونو كولو اجازت به هلته نه وي چه يو سړي به په دنيا كښې د سوو نو او د زرګونو خلقو حقونه وهلي وي او يو بزرګ به راپاسي او سفارش به اوكړي چه جناب دهٔ له انعام وركړه دا زما خاص سړے دے.

[۸۷] يعني هلته به فيصله د هر انسان د خپل عمل (Merits) په بنياد باندې وي. څوک چه په دا سې حالت كښې راشي چه د ظلم د ګناه بار ئې په اوږو پروت وي، خواه هغه دا ظلم د خدائ په حقونو كښې كړے وي، يا د مخلوق په حقونو كښې، يا د خپل نفس په حق كښې، خو بهرحال د دے عمل په وجه به هغه كاميابي نه وينې. بل طرف ته چه كوم خلق د ايمان او د نيک عمل سره راشي (يعني يوازې نيک عمل نه بلكه د ايمان سره نيک

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا وَّصَرَّفْنَا فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ لَعَلَّهُمْ
يَتَّقُوْنَ اَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ﴿۱۱۳﴾ فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۚ وَلَا تَعْجَلْ
بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰٓى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ ۡ وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا ﴿۱۱۴﴾

او اے محمدؐ، دا رنگے مونږه دا دَ قرآنِ عربي په حیثیت نازل کړے دے[۸۸] او په دې کښې مو قسما قسم سزا گانے اوَرولی دی دَ پاره دَدے چه دا خلق دَ غلط عمل نه ځان وساتي یا دَدے په وجه په دوی کښې څه پوهه پیدا شي[۸۹] پس اوچت او پهتر دے الله، چه حقیقي بادشاه دے[۹۰]
اَو گوره، ته دَ قرآن په لوستلو کښې تلوار مه کوه ترڅو پورے چه دَ هغې وحې تا ته پوره پوره در رسیدلې نه وي، او دعا کوه چه اے پروردگاره ماله زیات علم راکړے[۹۱]

عمل، او دیوانه ایمان هم نه بلکه دَ نیک عمل سره ایمان ضروري دے) نو دَ هغوی دَ پاره هلته نه خو دَ دے خبرې خطره شته چه په هغوی به ظلم اوشي، یعني خاخا به ورله بې گناه سزا ورکړے شي، او نه ورته دَ دے خبرې خطره شته چه دَ هغوی عملونه به ضائع کړے شي او خپل جائز حقونه به ورله ورنه کړے شي.

[۸۸] یعني دَ دغه رنگے مضمونونو او نصیحتونو نه ډک. دَدے اشاره هغه ټولو مضمونونو ته ده کوم چه په قرآن کښې بیان شوي دي، یوازے دے تر دے مضمون ته کوم چه په بَرَنی آیت کښې بیان شوے دے اشاره نه ده او دا دَ هغه آیتونو سره لږی کوم چه دَ قرآن په حقله دَ سورة په شروع کښې بیان شوي دي او بیا دَ موسیٰ دَ قیصه دَ ختمیدو دروستو بیان شوي دي. مطلب دا دے چه کومه "تذکره" مونږه تاته درلیږلې ده، او کوم "ذکر" چه مونږه خاص دَ خپل طرفه تا له درکړے دے هغه دَ دا سے شان تذکره او ذکر دے.

[۸۹] یعني دَ خپل غفلت نه بیدار شي، هیر شوے سبق را یاد کړي، او دَدے خبرے فکر ورسره شي چه دوی په کوم غلطو لارو روان دي او دَدے گمراهۍ انجام څه دے.

[۹۰] په قرآن کښې چه کله یو تقریر ختمیږي نو عام طور دغسے فقرے ویلے کیږي او مقصد ئې دا وي چه خبره دَ الله تعالیٰ په حمد او ثنا ختمه شي. دَ کلام په انداز بیان او په ورانديِ روستو عبارت باندې چه سړے غور اوکړي نو معلومیږي چه دلته یو تقریر ختم شوے دے او دَ "وَلَقَدْ عَهِدْنَآ اِلٰٓى اٰدَمَ" نه دویم تقریر شروع شو دے. غالب گمان دا دے چه دا دواړه تقریرونه بیخي مختلفو وختونو کښې نازل شوي وې او روستو به نبي صلی الله علیه وسلم دَ الله په حکم په یو سورة کښې راجمع کړي وي. دَ دواړو دَ راجمع کولو وجه دا ده چه دَ دواړو مضمونونه دَ یو بل سره سمون خوري. او دَ دے وضاحت به مونږه وړاندې اوکړو.

[۹۱] فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ باندې تقریر ختم شوے وُو. دَدے نه روستو دَ رخصتیدو په وخت کښې فرښته دَ الله تعالیٰ په حکم نبي صلی الله علیه وسلم ته دَ یو بے خبرې خبردارے ورکوي چه دَ وحې نازلولو په دوران کښې پرے پوهه شوې وه. دَ تقریر په منځ کښې ئې دَ خبرې کول مناسب و نه گنړله، نو ځکه ورته دَ تقریر دَ ختمیدو نه روستو خبره کوي. په کومه خبره چه خبردارے ورکړے شو هغه څه خبره وه، هغه دَ دے الفاظو نه پخپله معلومیږي

وَلَقَدْ عَهِدْنَآ إِلَىٰٓ ءَادَمَ مِن قَبْلُ فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا ﴿١١٥﴾ ع

دَ دے نه مخکښے[۹۲] مونږ آدم ته یو حکم کړے وُو[۹۳]، خو دَ هغهٔ نه هیر شو او مونږ په هغه کښے کلکه اراده اُونهٔ موندله[۹۴]۔

نبی صلی الله علیه وسلم به دَ وحی دَ نازلیدو په دوران کښے دَ وحی دَ یادَولو کوشش کړے وی۔ او دَ دے کوشش کولو په وجه به دَ هغه توجه کمزوره شوی وی او دَ وحی په اغستلو کښے به خلل راغلے وی۔ دَ وحی آوریدو ته به ئے توجه پوره نهٔ وی راغلے۔ دَ دے حالت په لیدو سره دا ضروری وه چه نبیؐ ته دَ وحی دَ یادَولو صحیح طریقه اُوښودے شی، او دَ پیغام په منځ منځ کښے چه هغه دَ یادولو کوم کوشش کوی، چه دَ هغے نه منع کړے شی۔

دَ دے نه معلومیږی چه دَ سورۃ طٰهٰ دا حصه دَ ولټی زمانے په وحیو کښے ده۔ اول اول چه لا نبی صلی الله علیه وسلم ته دَ وحی دَ یادَولو بنهٔ عادت نهٔ وُو، نو دیر ځلے دَ هغهٔ نه تُندی شوی ده، او په هره موقع باندے ورته دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه دَ تنبیه دَپاره ارشاد شوے دے۔ دَ سورۃ قیامه دَ نازلیدو په وخت کښے هم دا کار شوے وُو او په هغه وخت کښے دَ کلام په منځ کښے ارشاد اُوشو چه "لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِۦٓ، إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُۥ وَقُرْءَانَهُۥ، فَإِذَا قَرَأْنَٰهُ فَٱتَّبِعْ قُرْءَانَهُۥ، ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُۥ" "دَ دے دَ یادَولو په تلوار کښے خپله ژبه له بار بار حرکت مهٔ ورکوه، دَ دے تا ته دَ یادَول او تا ته آورَول زمونږ ذمه ده" په سورۃ اعلیٰ کښے هغهٔ له تسلی ورکړے شوی ده چه دا به مونږ تا ته ورزَوو او دا به ستا نه هیریږی نهٔ، "سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ" روستو چه بیا کله هغه دَ وحی دَ یادَولو سره ښهٔ عادت شو او مهارت ورته حاصل شو نو بیا پرچهٔ دا حالت نهٔ دے راغلے۔ دا وجه ده چه په روستنو سورتونو کښے دا قسم تنبیه هیڅ ته نشته۔

[۹۴] نکه څنګه چه اُوس اُوس ویئلے شوی دی، چه دَ دے ځائے نه یو جُدا تقریر شروع کیږی چه غالباً دَ بَرَنی تقریر نه روستو په څه وخت کښے نازل شوے دے او چونکه مضمون ئے د دے سره یو شان دے نو ځکه ورسره په دے یو سورۃ کښے یو ځائے لیکلے شوے دے۔ دَ مضمون دَ یو شانوالی سببونه ئے دیر دی مثلاً :۔

(۱) قرآن چه کوم هیر شوے سبق انسان ته وریادَوی دا هم هغه سبق دے کوم چه انسان ته دَ پیدا کیدو سره ورکړے شوے وُو او چه الله تعالیٰ ئے انسان ته دَ وریادَولو وعده کړی وه، او چه دَ هغے دَ وریادَولو دَپاره دَ قرآن نه مخکښے هم بار بار "ذکر" راغلے دے۔

(۲) انسان دغه سبق بار بار دَ شیطان په لمسون سره هیرَوی، او دا غلطی تردا وله پیدا ئش راهسے وغیے کیږی۔ دَ ټولو نه اول دَ انسانانو دَ اولنو مور او پلار نه هیر شوی وُو، او دَ هغے نه روستو دا سلسله دغه شان روانه ده، دا وجه ده چه انسان دے خبری محتاج دے چه دا سبق ورته مسلسل وریادَولے کیږی۔

(۳) او دا خبره انسان ته دَ اول پیدا کیدو سره صفا صفا ښودلے شوی وه چه انسان دَ الله تعالیٰ دَ رالیږلی شوی "ذکر" سره څنګه سلوک اُوکړو هم هغه رنګے به دَ انسان انجام وی یعنی په ښه سلوک به نیک بخته وی او په بد سلوک به بد بخته وی۔ نن دا څه نوی خبره نهٔ کیږی چه که چرے دَ دے "ذکر" پیروی مو اُوکړه نو نیک بخته به یئ او په نیغه لار به یئ او که مو اُونهٔ کړه نو په دنیا او په آخرت کښے به په مصیبت کښے مبتلا یئ۔

(۳) يو ځيز دے "هير" او "دَ ارادے کمزوري" چه دَدے په وجه انسان دَ خپل ازلي دشمن شيطان په دوکه کښے راځي او غلطي ترکيږي. ددے معافي کيدے شي خو هله چه انسان ته کله خپله غلطي معلومه شي او توبے ته اُوباسي او خپل عمل صحيح کړي. دويم ځيز دے سرکشي او بغاوت او قصدًا دَ الله په مقابله کښے دَ شيطان بندګي کول، لکه څنګه چه فرعون او سامري کړي وه. ددے دَ معاف کيدو هيڅ امکان نشته، دَ دے انجام هغه دے کوم چه دَ فرعون او دَ سامري شوا وداانجام به دَ هر هغه چا وي څوک چه په دغه طريقه چليږي.

۹۳ دَدے نه مخکښے دَ آدم عليه السلام قيصه په سورة بقره کښے، په سورة اعراف کښے (دوه ځايه)، په سورة حجر کښے، په سورة بني اسرآئيل کښے او په سورة کهف کښے تيره شوي ده. دا اُوم ځل دے چه دا قيصه بيانيږي. په هر ځائے کښے دا قيصه دَ هغه ځائے دَ مناسبت سره په مختلفے طريقے سره بيان کړے شوي ده. دَ قيصے کوم اجزاء چه دَ کوم ځائے دَ بيان سره مناسبت خوري هغه هم هلته بيان کړے شوي دي، هغه اجزاء به په بل ځائے کښے نه ملاويږي، يا به ئے دَ بيان طرز لږ شان مختلف وي. په ټوله قيصه باندې دَ ځان پوهَولو دَ پاره په دغه ټولو ځايونو باندې نظر اچول پکار دي. مونږه په هر ځائے کښے په خپلو حاشيو کښے دَ قيصے ربط او غرض بيان کړے دے.

۹۴ يعني هغه چه روستو ددے حکم سره کومه معامله اُوکړه هغه دَ تکبرًا او دَ قصدًا نافرمانئ کولو په وجه نه وه، بلکه دَ غفلت او هير او دَ ارادے دَ کمزورئ په وجه وه. هغه دَ حکم خلاف ورزي څه په دے خيال او په دے نيت نه وه کړي چه زۀ دَ خدائے څه پروا لرم، دَ هغه حکم کموي نو وي دِ کنه. څه چه زما زړۀ غواړي زۀ به هغه کوم، خدائے څوک دے چه زما په معاملو کښے دخل اُوکړي. دَدے برعکس دَ هغه دَ نافرمانئ کولو سبب دا وو چه هغه زمونږه دَ حکم يادساتلو کوشش اُونه کړو، مونږ چه ورته څه حکم کړے وو هغه ترے هير شو، او په اراده کښے ئے دومره مضبوطيا نه وه چه کله ورله شيطان دَ دوکه کولو دَ پاره راغے نو چه په هغه وخت کښے ورته زمونږه هغه نصيحت او خبردارے وريادشوے وے (چه ذکر ئے اُوس وړاندې راروان دے) او شيطان چه ورله کوم لالچ ورکوو دَ هغے نه ئے بنۀ په سختئ سره مقابله کړے وے.

ځينو خلقو دَ دے فقرے نه چه "مونږه په هغۀ کښے کلکه اراده اُونه موندله" دا مطلب اخستلے دے چه "مونږه په هغۀ کښے دَ نافرمانئ کولو کلکه اراده اُونه موندله"، يعني هغه چه څه اُوکړل نو په هيره سره ئے اُوکړل، دَ نافرمانئ په اراده ئے اُونه کړل. ليکن دا خامخا په زور خبره جوړول دي. که دا ئے مطلب وے نو دا الفاظ "لَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا عَلَى الْعِصْيَانِ" به ئے ويلے وُو او نه به "لَمْ نَجِدْ عَزْمًا" ئے نه وُو ويلے. دَ آيت دَ الفاظو نه صفا معلوميږي چه دَ کلکے ارادے دَ نه موندلو نه مُراد دَ حکم منلو کلکه اراده نه موندل دي، نه چه دَ نافرمانئ کولو کلکه ارادۀ نه موندل دي. دَدے نه علاوه که چرے سرے موقع او محل ته اُوکوري او وړاندې روستو عبارت ته اُوکوري نو صفا معلوميږي چه دلته الله تعالىٰ دَ دے غرض دَ پاره دا قيصه نه بيانوي چه کني هغه دَ آدم عليه السلام صفائي پيش کوي، بلکه الله تعالىٰ دا فرمائي چه هغه بشري کمزوري څه وه چه دَ آدم نه اُوشوه او چه دَ هغے په وجه نه هغه يوازے بلکه دَ هغۀ اولادهم دَ خپل دشمن په جال کښے ګرفتار او مختلي باوجود ددے چه الله تعالىٰ ورله خبردارے دَ مخکښے نه ورکړے دے. دَدے نه علاوه چه يو خالي الذهن سړے دا آيت وُلولي نو دَ هغه په ذهن کښے

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ اَبٰى ﴿۱۱۶﴾
فَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اِنَّ هٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ

یاد کړئ هغه وخت کله چې موږه فرښتو ته وویلي وو چې آدم ته سجده اُوکړئ. نو هغوئ ټولو سجده اُوکړه، خو یو ابلیس وو چې انکار ئې اُوکړو. نو بیا موږه[۹۵] آدم ته اُووې چې "ګوره، دا ستا او ستا دَ ښځې دُشمن دے،[۹۶] هسې نه چې دے تاسو دواړه دَ

ېه او لنی مطلب دا راځي چې" موږه په هغه کښې دَ حکم منلو کلکه اراده یا مضبوطه اراده اُونه موندله"
دویم مطلب ئې دسرې په ذهن کښې ترهغې وخته پورې نه شي راتلے ترڅو پورې چې آدم علیه السلام ته دَ ګناه
نسبت غیرمناسب اُونه ګڼړي او دَ آیت بل معنی کول شروع نه کړي. هم دا راځئ علامه آلوسي په دے موقع
کښې په خپل تفسیر کښې ظاهر کړي ده. هغه وائي چې" لکن لا یخفی علیك ان هذا التفسیر غیر متبادر ولا
کثیرا لمناسبة للمقام" "او ستاسو نه به دا خبره پټه نه وي چې دا تفسیر دَ آیت دَ الفاظو په اوریدو سره
فوراً په ذهن کښې نه راځي او نه دَ موقعے او دَ محل سره څه زیات مناسبت خوري." (اُوګوره روح المعاني.
جلد ۱۶ صفحه ۲۲۳).

۹۵ دلته هغه اصل حکم نه دے بیان کړے شوے کوم چې آدم علیه السلام ته ورکړے شوے وُو، یعنی دا چې
"دَ دے خاص ونې میوه مه خوره". هغه حکم دَ قرآن مجید په نورو ځایونو کښې بیان شوے دے. دلته اصل مقصد
معرف دا دے چې انسان څنګه دَ خپل ښکاره دشمن په خوږو پستو خبرو دوکه کیږي، باوجود دَ دے چې الله تعالیٰ
دَ مخکښې نه خبردارے ورکړے دے، او څنګه دَ دے خپلې کمزورۍ په وجه هغه کار کوي کوم چې دده دَ پاره نقصاني
دے، په دے وجه الله تعالیٰ دَ اصل حکم ذکر اُونه کړو، او دَ دے ځائې دلته دَ هغه نصیحت ذکر اُوکړو
کوم چې دَ دے حکم سره آدمؑ ته شوے وُو.

۹۶ دَ دُشمنۍ مظاهره په دغه وخت کښې شوې وه. آدم او حوا علیهما السلام دواړو په خپله لیدلے وُو چې
ابلیس ورته دَ سجدے کولو نه انکار اُوکړو او صفا ئې اُووئیل چې " اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ
مِنْ طِيْنٍ" "زهٔ دده نه بهتر یم، تا زهٔ دَ وُور نه پیدا کړے یم او دَ دے دَ خاورو نه پیدا کړے دے" (اعراف آیت
۱۲ - ص. آیت ۷۶). اَرَاَيْتَكَ هٰذَا الَّذِيْ كَرَّمْتَ عَلَيَّ، " لږ شان خو اُوګوره، دا ده هغه هستي چې
تا په ما باندې غوره کړې ده"، ءَاَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِيْنًا، " آیا زهٔ هغه چا ته سجده اُوکړم چې تا دَ خاورو
نه جوړ کړے دے" (بنی اسرائیل. آیتونه ۶۱ - ۶۲). دَ خپل حسد په ظاهرولو ئې هم تسلي اُونه شوه
او دَ الله تعالیٰ نه ئې مهلت اُوغوښتو چې ما له موقع راکړه چې زهٔ په کښې خپل غوروالے او دَ انسان نااهلي
ثابته کړم، زهٔ به دَ ده په خوږو پستو خبرو دوکه کوم او تا ته به ئې بنایم چې دا ستا څنګه خلیفه دے. په سورة
اعراف، په سورة حِجر او په سورة بنی اسرائیل کښې دَ ابلیس دا خبره تیره شوې ده او وړاندې په سورة ص
کښې هم دا خبره راروانه ده. دا وجه ده چې کله الله تعالیٰ دا اُو فرمائیل چې دے ستاسو دُشمن دے، نو دا هسې دَ غیبو
خبره نه وه، بلکه دا ښځے خاوند دواړو په خپلو سترګو لیدلې وه او په خپلو غوږونو ئې اوریدلې وه.

الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى ﴿۱۱۷﴾ اِنَّ لَكَ اَلَّا تَجُوْعَ فِيْهَا وَلَا تَعْرٰى ﴿۱۱۸﴾ وَاَنَّكَ لَا
تَظْمَؤُا فِيْهَا وَلَا تَضْحٰى ﴿۱۱۹﴾ فَوَسْوَسَ اِلَيْهِ الشَّيْطٰنُ قَالَ يٰۤاٰدَمُ
هَلْ اَدُلُّكَ عَلٰى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلٰى ﴿۱۲۰﴾ فَاَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ

جنت نه اُو باسی[۹۷] او په مصیبت کښې اخته شې. دلته خو تا ته دا آرام حاصل دې چه نه وږے کیږې او نه بربنډ یږې، نه توږے کیږې او نه دِ نمر تنکوی[۹۸]". لیکن شیطان هغه په خبرو پسته دوکه کړه[۹۹] ورته ئې اُووئیل" اے آدمه، او بنایم درته هغه وَنه چه په هغې سره همیشه ژوند او همیشه بادشاهی تاسې حاصلیږی؟" آخر دا چه (ښځې خاوند) دواړو دَ هغې وَنې میوه اُوخوړه. نتیجه ئې دا اُووتله چه فوراً دَ هغوی

[۹۷] دغه شان هغوی ته دا هم اوویلے شو چه که چرے دَ شیطان په خبرو پستو خبرو دوکه شوئ او دَ حکم خلاف ورزی مو وُکړه نو په جنت کښې به نه اُو سیږئ او کوم نعمتونه چه تاسو ته حاصل دی هغه ټول به درنه واخستلے شی.

[۹۸] دا تشریح ده دَ هغې مصیبت چه دَ جنت نه دَ وتلو نه روستو به پکښې انسان اخته کیدو. دلته دَ جنت دَ لویو لویو او دَ غوره غوره نعمتونو دَ ذکر کولو پځائے صرف څلور بنیادی نعمتونه ذکر شوی دی، یعنی دا چه دلته ستاسو دَ خوراک دَ اُوبو، دَ کپړو او دَ اوسیدو انتظام سرکاری طور کیږی، دَ دے دَ پاره تاسو هیڅ محنت او کوشش نه کوئ. دَ دے نه ښکاره دا خبره آدم او حوّا علیهما السلام ته معلومه شوه چه که چرے هغوی دَ شیطان په خبرو دوکه شو او دَ سرکاری حکم خلاف ورزی ئې اُوکړه نو دَ جنت نه به اُوځی او دَ جنت لوی نعمتونه خو لا څه کوے چه دا بنیادی نعمتونه به ترے هم واخستلے شی. هغوی به بیا دَ دے خپلو بنیادی ضرورتونو پوره کولو دَ پاره کوشش ښکاره کوی او چه ترڅو پورے بدن نه وی خوَلی کړے نو ترهغې به دوئ نه شی موندلے. دَ هغوی ټوله توجه او ټول وختونه او ټول طاقتونه به دَ روزئ ګټلو په فکر کښې لږی او دَ لوړ مقصد دَ پاره به ورسره نه طاقت وی او نه وخت.

[۹۹] دلته قرآن صفاوائی چه شیطان وسوسه آدم علیه السلام ته کړی وه حضرت حوّا ته ئې نه وه کړی. اګرچه دَ سورة اعراف دَ بیان مطابق خطاب دواړو ته دے او دواړه په خوږو پستو خبرو دوکه شو، لیکن شیطان په اصل کښې وسوسه حضرت آدم ته کړی وه. دَ دے برعکس دَ بائبل بیان دے چه مار اول دَ ښځې (حوا) سره خبره اُوکړه او بیا ښځې خپل خاوند دوکه کړو او دَ ونې میوه ئې پرے اُوخوړله (پیدائش باب، ۳).

[۱۰۰] په سورة اعراف کښې دَ شیطان دَ خبرو اترو زیاتی تفصیل دا دے" وَقَالَ مَا نَهٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّاۤ اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ" او هغه ورته اُووے چه ستا رب ته دَ دے وَنې نه صرف په دے وجه منع کړے ئې چه هسے نه ستاسو دَ دواړو فرښتے جوړے شئ، یا مو همیشه ژوند نصیب شی" (آیت - ۲۰).

اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي
هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَىٰ ﴿۱۲۳﴾ وَمَنْ أَعْرَضَ
عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ ﴿۱۲۴﴾

شیطان) دَدے ځائے نه کوز شئ ـ تاسو به دَ یو بل دُشمنان یئ ـ بیا که چرې زما دَ طرفه تاسو ته څه هدایت درشي نو چا چه زما دَ دغه هدایت پیروي اُوکړه نو هغه به نه بےلارے کیږي او نه به بد بخته کیږي ـ او چا چه زما دَ "ذکر" (یعني دَ نصیحت دَ سبق) نه مخ واړوو نو دَ هغهٔ به په دُنیا کښے لنډ تنګ ژوند وي^{۱۰۵} او دَ قیامت په ورځ به مونږ دغه ړوند راپاڅوو،

چه دَ هغے وفادارېدو سره کیدے شي چه صرف دَ "هیر" او دَ "اراده دَ کمزورۍ" په وجه تېرځه قصور شوے وي، خو چه کله په هوش کښے راشي او پته ورته اُولږي نو په خپل قصور ډېر شرمنده شي ـ دا سلوک دَ حضرت آدم او حوّا سره وُشوه، ځکه چه هغوئ ته کله چه خپله غلطي معلومه شوه نو دا دُعائے اُوغوښتله "رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ" "اے زمونږه پروردګاره! مونږه په خپل نفس باندې ظلم اُوکړو، او که چرے تا مونږه معاف نه کړو او رحم دې را باندې اُو نه کړو نو مونږ به برباد شو" (الاعراف ـ آیت ۲۳) ـ

۱۰۴ ـ یعني یوازے ئے معاف نه کړل، بلکه نیغه لارے ورته هم اُوښودله او په هغے باندې ورته دَ تللو طریقه هم اُوښوله ـ

۱۰۵ ـ په دُنیا کښے دَ لنډ تنګ ژوند مطلب دا نه دے چه دَ هغهٔ سره به دولت نه وي ـ بلکه دَ دے دا مطلب دے چه په دنیا کښے به ورته تسکین نه نصیب کیږي ـ کروړپتي به وي خو به اطمینان نه به وي ـ دَ وطنونو بادشاه به وي خو اطمینان به ورته نصیب نه وي ـ په دُنیا کښے به بنه خوشحاله وکامیابه ښکاري خو دَ لو خوشحالو بنیاد به ئے ناجائزه کاروبار وي او دَ دے ناجائزه کاروبار په وجه به هر وخت دَ خپل ضمیر او دَ خوا وُشا اجتماعي ماحول سره په جنګ وي او حقیقي امن او اطمینان او خوشحالي به ورته هیڅکله نصیب نه وي ـ

۱۰۶ ـ دلته دَ آدم علیه السلام قیصه ختمیږي ـ دا قیصه چه په کومه طریقه دلته او دَ قرآن په نورو ځایونو کښے بیان شوې ده په دے باندې دَ غور کولو نه زما په علم کښے دا خبره راغلي ده (والله اعلم بالصواب) چه دَ زمکے اصلي خلافت هم هغه دُوکوم چه آدم علیه السلام ته اول په جنت کښے ورکړے شوے وُو ـ هغه جنت کیدے شي چه په آسمانونو کښے وي او کیدے شي چه په دے زمکه باندې جوړ کړے شوے وي ـ بهرحال په دغه جنت کښے دَ الله تعالیٰ خلیفه په دا سے شان سره اُوسید وچه دَ هغه دَ خوراک څښاک او دَ لباس او دَ مکان ټول انتظام دَ سرکار په ذمه وُو او خدمتګارے (فرښته) دَ هغهٔ دَ حکم تابع وے ـ دَ هغهٔ سره دَ خپل ذاتي ضرورتونو پوره کولو قطعاً هیڅ فکر نه وُو، بلکه دا به سرکاري طور پوره کیدل، غرض دا وُو چه هغه دَ خلافت دَ بزرګو او لویو کارونو دَ پاره تیار شي ـ خو په دے عهده باندې دَ مقررکولو نه مخکښے دا خبره ضروري اُوګڼلے شوه چه دده نه دِ امتحان واخستلے شي چه پته دَ لږي چه په ده کښے څومره کمزوریانے دي او څومره خوبیانے دي

نو امتحان ترې وا خستلے شو چه اُولیدې شي چه څه طمع او لالچ کښے راځي، د اطاعت کولو په اراده باندې په مضبوطئ سره قائم نه اُوسیږي، او په ده باندې هیر غلبه کیږي. د دے امتحان نه رُوستو آدم او د هغه اولاد ته د مستقل خلافت په ځائے یو آزمیښتي خلافت ورکړے شو، او د آزمیښت د پاره یوه موده (اجلِ مسمّٰی چه د قیامته پورے به وي) مقرر کړے شوه. په دے آزمیښتي دَور کښے د انسانانو د پاره د خوراک څښاک او د جامے کپړے سرکاري انتظام ختم کړے شو. اُوس به د خپلے استوګنے انتظام په خپله کوي. البته په زمکه باندې او د زمکے په مخلوقاتو باندې د انسان اختیارات برقرار دي. آزمیښت د دے خبرې دے چه د اختیاراتو با وجود دوي حکم منلو ته غاړه ږدي او که نه، او که چرے هیرو رله راشي یا په طمع او لالچ کښے راشي نو چه د تنبیه او د تذکیر او د تعلیم اثر قبلوي او که نه؟ او چه په هغے سره خپل عمل صحیح کوي او که نه؟ او چه آخري فیصله به ئے حکم منل وي او که نافرماني کول؟ د خلافت په دے آزمیښتي دور کښے به د هر انسان عمل لیکلے کیږي او تر ټول ریکارډ به ئے محفوظ ساتلے کیږي. او د حساب کتاب په ورځ چه کوم خلق کامیاب شي نو هغوئ ته به بیا مستقل خلافت، یعني هغه همیشه ژوند او همیشه بادشاهي چه د هغے لالچ شیطان ورکړے وو او په ده ئے د حکم خلاف ورزي کړې وه، ورکړے شي په دغه وخت کښے به د دے ټولے زمکے نه جنت جوړ کړے شي او د دے وارثان به د خدائے هغه نیکان بندګان وي چه هغوئ په آزمیښتي خلافت کښے د الله تعالیٰ حکم منلے وي، او یا که ترې په هیره سره نافرماني شوې وي نو بیا ئے د الله تعالیٰ حکم ته غاړه اېښودلې وي. د جنت د ژوند ته چه څوک صرف د خوراک څښاک او د آرام کولو ژوند وائي نو د هغوئ دا خیال صحیح نه دے. هلته به په هغه ترقي کیږي او د تنزل به هیڅ خطره نه وي. او هلته به د خلافت الٰهي عظیم الشان کار انسان کوي او هیڅکله به ناکام کیږي نه. لیکن د هغے ترتیبات او د هغے خد متونو تصوّر کول زمونږ د پاره دومره مشکل دي لکه څنګه چه د یو ماشوم بچي د پاره دا تصور کول مشکل وي چه هغه کله عقل من شي او واده اُوکړي نو د نیځے خاوند ژوند به څنګه وي. دا وجه ده چه په قرآن کښے د جنت د ژوند کوم خوندونه ذکر شوي دي نو هغه صرف هغه خوندونه دي چه هغه مونږ د دنیا په خوند ونو باندې قیاس کړو نو د هغې د خوند د څه لږ اندازه لګولے شو.

په دے موقع باندې دا هم ضروري ده چه په بائیبل کښے د آدم او د حوا قیصه په کومه طریقه بیان شوې ده چه هغه هم یو نظر اُوکورو. د بائیبل بیان دے چه "خدائے د زمکے د خاورے نه انسان جوړ کړو او د هغه په سپیږمو کښے ئے د ژوند پوکے ورپو کړو نو ژوندے انسان جوړ شو. او خداوند خدائے مشرق طرف ته په عدن کښے یو باغ جوړ کړو او انسان ئے هلته دیره کړو." او د باغ په مینځ کښے ئے د ژوند ونه او د نیکئ او د بدئ پیژندلو ونه هم اُولګوله." "او خداوند خدائے آدم ته حکم اُوکړو چه ته د باغ د هرے ونے نه میوه خوړے شے لیکن د نیکئ بدئ د ونے نه مه خوره ځکه چه د کومے ورځے چه اُوخوړل نو په هغه ورځ به مرے." "او خداوند خدائے د هغې پښتئ نه چه هغه د آدم نه را اُوښکلې وه یو ښځه جوړه کړه او آدم له ئے را وستله." "او آدم او د هغه ښځه دواړه بربنډ وو او شرمیدل نه." "او خدائے چه کوم ځناور په صحرا کښے جوړ کړي وو په هغے کښے مار د ټولو نه زیات چالاک وو، او هغه ښځے ته اُووے چه آیا واقعي خدائے ویلي دي چه د باغ د یوے ونے میوه تاسو مه خورئ؟" مار ښځے ته اُووے چه تاسو به هیڅکله نه مرئ بلکه خدائے ته معلومه ده چه په کومه ورځ تاسو د دے نه میوه اُوخوړه نو ستاسو سترګے به پرانستے شي او که خدائے په شان به نیک او بد

قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِيٓ أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا ﴿۱۲۵﴾ قَالَ كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ
ءَايَٰتُنَا فَنَسِيتَهَا ۖ وَكَذَٰلِكَ ٱلْيَوْمَ تُنسَىٰ ﴿۱۲۶﴾ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ

---

هغه به اُووائي "پروردګاره په دنیا کښې خو زه لیدونکے وُوم، دلته دِ زه ولے ړوند راپاڅولم؟" الله تعالیٰ به اُوفرمائي "هو، د غسے زمونږه آیتونه تا ته در رسیدلي وُو او هغه تا هیر کړي وُو هم دغسې نن ته هیر ولے کیږې" ——— د غه شان مونږه (په دنیا کښې) بدله ورکوُو هغه چا له

---

پیژندلو والا جوړشي. نو ښځې د هغې میوه اوخوړه او په خپل خاوند ئې هم اُوخوړله." نو پس د هغې د دواړو سترګې پرانستے شوے او پته ورته اُولګیدله چه هغوئ خولغړدي او د اِنځر د پانړونه ئې ځان له لنګونه جوړ کړل. او خداوند خدائے چه کله په سرزمه کښې په باغ کښې ګرزید و نو هغوئ د هغه آواز واوریدو او آدم او د هغه ښځې خپل ځانونه د خداوند خدائے نه د باغ په وُنو کښې پټ کړل." بیا خدائے آدم ته آواز اُوکړو چه ته کوم ځائے کې یې. هغه ورته اُووے چه ما ستا آواز واوریدو او ویریدم ځکه چه ما وپټ شوم ځکه چه لغړ وُوم. خدائے ورته اُووے چه تاته څه پته اُولګیده چه ته لغړ ئې. ضرور به تا د هغې وُنې میوه خوړلي وي د کومې نه چه ما ته منع کړے وه. آدم اُووے چه حوا په ما باندې د دې میوه خوړلې ده، او حوا اُووے چه زه مار دوکه کړے وُوم. نو خدائے مار ته اُووے چه "تا دا اُوکړو نو ته په ټولو څارو او صحرائي ځناورو کښې ملعون شوے. ته به په خیټه ګرزې او ټول عمر به خاوره خورې او زه به ستا او د ښځې په منځ کښې او ستا د نسل او د ښځې د نسل په منځ کښې دشمني واچوم. هغه به ستا سر چِقوي او ته به د هغه پونده چیچې." او ښځې له ئې دا سزا ورکړه چه زه به ستا د بچې کیدو درد ونه زیات کړم، په ډیر درد د نو سره به د بچې کیږې او ستا شوق به خپل خاوند طرفته ویږدي او هغه به په تا باندې حکومت کوي." او د آدم په باره کښې ئې دا فیصله اُوکړه چه تا چونکه د خپلې ښځې خبره اُومنله او زما د حکم خلاف ورزي دِ اُوکړه "نو زمکه ستا په سبب لعنتي شوه، ته به ټول عمر د زمکې پیداوار په مشقت سره خورې ...... ته به د خپلې خولې د خولو دوډئ خورے." بیا "خداوند آدم او د هغه ښځې د پاره د څرمنې کمیسونه جوړ کړل او ورواغوندول." "او خداوند خدائے اُووے چه ګوره انسان د نیکئ او د بدئ په پیژندګلو کښې په مونږه کښې د یو پشان شو. ؤس هسې نه چه خپل لاس راواُوږد کړي او د ژوند د وُنې نه هم څه اُوخوري او بیا همیشه ژوندے وي. په دې وجه خداوند خدائے هغه د باغ عدن نه بهر کړو" (پیدائش باب ۲. آیتونه ۷. ۲۵. باب ۳. آیتونه ۱. ۲۳).

کوم خلق چه په دې خبره کولو نه شرمیږي او وائي چه په قرآن کښې دا قیصه د بني اسرائیلو نه نقل کړے شوې ده نو هغوئ د د بائیبل دا بیان او د قرآن بیان د یو بل سره مقابله کړي او اُودې ګوري چه په دې کښې څومره فرق دے.

۱۰۷ د قیامت په ورځ چه نوے ژوند شروع شي د هغې نه راواخله جهنم ته د داخلیدو پورے چه به کوم مختلف حالتونه په مجرمانو باندې تیریږي هغه د قرآن مجید په مختلفو ځایو نو کښې جُدا جُدا بیان کړے شوي دي. یو حالت دا دے، لَقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ ٱلْيَوْمَ حَدِيدٌ "ته د دې څیز نه په غفلت کښې پروت وے، او س مونږه ستا د مخے نه پرده لرې کړې ده، نن ستا نظر ډیر تیز دے" یعني

وَلَمْ يُؤْمِنْ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ؕ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى ﴿۱۲۷﴾ اَفَلَمْ
يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ ؕ اِنَّ

چه هغه کړی نه دی او د خپل رب آیتونه نه منی، او د آخرت عذاب زیات سخت او زیات باقی پاتې کیدونکے دے۔

نو آیا دے خلقو ته (د تاریخ د دے سبق نه) څه هدایت ملاؤ نه شو چه د دوی نه وړاندې څومره ډیرو قومونو مونږه هلاک کړی دی چه د هغوی په (تباه شوو) کلو کښې نن دوی ګرځی راګرځی؟ په حقیقت کښې

نن بنده هر څه وینی (ق۔ آیت ۲۲)۔ دویم حالت دا دے: اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ ۝ مُهْطِعِيْنَ مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ اِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۚ وَاَفْـِٕدَتُهُمْ هَوَآءٌ، "الله خو دوی رستو کوی هغې ورځې ته چه حال به دا وی چه سترګے به ئې راختلی وی، سر به پورته وی او مخ ته به وهی، بره به په یو هنکوری او زړونه به الوتلی وی" (ابراهیم۔ آیت ۴۳)۔ دریم حالت دا دے: وَنُخْرِجُ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ مَنْشُوْرًا ۝ اِقْرَاْ كِتٰبَكَ ؕ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا ۝، "د قیامت په ورځ به مونږ د ده د پاره یو خط را او باسو چه ده به ئې د پرانستی کتاب په شان اُوینی۔ ولولئ خپله عملنامه، نن ته د خپل حسا کولو د پاره پخپله کافی ئې" (بنی اسرائیل۔ آیتونه ۱۳-۱۴)۔ او یو حالت دا هم دے کوم چه په دے آیت کښې بیان شوے دے۔ معلومیږی داسے چه د انسان به د خدائے په قدرت سره د آخرت هیبتناک منظر او د خپلو بد عملونو نتیجے بنه وینی، لیکن د هغوی نظر به صرف د دے څیزونو د لیدلو د پاره وی۔ د نورو څیزونو د پاره به د هغوی حال د ړند و پشان وی، نه به ورته خپله لار ښکاری، نه به ورسره همسا وی چه لار پرې معلومه کړی او نه به څوک وی چه د لاس نه ئې اُونیسی، قدم په قدم به ټینډ کونه وهی او هیڅ معلومات به ورته نه کیږی چه کوم خوا ته لاړشی او خپل ضرورت پوره کړی۔ دا حالت په دے الفاظو سره بیان کړے شوے دے چه "څنګه تا زمونږه آیتونه هیر کړی وُو دغه شان نن ته هیر کړے شوے" یعنی نن به څوک ستا پرواه نه لری چه ته په کوم ځائے کښې ټینډ کونه وهے او را غور زیږے او څومره نقصان برداشت کوے۔ هیڅوک به تا د لاس نه نه را نیسی، هیڅوک به ستا حاجتونه نه پوره کوی او هیڅوک به ستا خبر نه اخلی۔

۱۰۸ اشاره ده هغه لنډ لنډ زړونو طرفته چه د الله د "ذکر" یعنی د هغه د کتاب او د هغه د رسالت نه مخ اړونکی خلق ئې په دنیا کښې تیره وی۔

۱۰۹ اشاره ده د عربو هغه خلقو ته کوم چه په هغه وخت کښې مخاطب وُو۔

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي النُّهٰى ﴿۱۲۸﴾ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ
لَكَانَ لِزَامًا وَّاَجَلٌ مُّسَمًّى ﴿۱۲۹﴾ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ
قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا ۚ وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ وَاَطْرَافَ
النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿۱۳۰﴾ وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖٓ اَزْوَاجًا

په دې کښې ډېرې نښې دي د هغه خلقو د پاره چه عقلِ سلیم لري[۱۱۱] ع
که چرې ستا د رب د طرفه یوه خبره د اول نه فیصله شوي نه وه او د مهلت یوه موده مقرره شوې نه وه نو د دوی فیصله به هم ضرور شوې وه. پس اے محمد ﷺ، دا خلق چه کومې خبرې جوړوي په هغې صبر کوه، او د خپل رب د حمد او ثنا سره د هغه تسبیح وایه د نمر ختلو نه مخکښې او د نمر پرېوتلو نه مخکښې، او د شپې په وختونو کښې هم تسبیح وایه او د ورځې په غاړو کښې هم، شاید چه ته راضي شې[۱۱۲]. او د دُنیا د ژوند هغې شان و شوکت ته پورته هم مه ګوره کوم چه مونږه په دوی کښې مختلف قسم

۱۱۱ه یعنې د تاریخ په دے سبق کښې، د آثار قدیمه په دے لید و کښې، او د نسل انساني په دے تجربه کښې.

۱۱۲ه یعنې چونکه الله تعالیٰ لا دوی هلاکول نه غواړي، او د دوی د پاره د مهلت یوه موده مقرر کړې شوې ده، نو د دے مهلت په دوران کښې چه دوی هر څه ستا سره کوي ته هغه برداشت کوه او ښه په صبر سره د هغوی ترخه خبرې آورې او د خپل تبلیغ فرض ادا کوه. د صبر کولو او د برداشت کولو طاقت به تا ته په مانځه سره ملاویږي چه په دے وختونو کښې په پابندۍ سره ادا کوه.
"د رب د حمد او ثنا سره د هغه د تسبیح" و ئیلو نه مراد مونځ دے، لکه څنګه چه وړاندې پخپله فرمائي وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا، "خپل بال بچ ته د مانځه حکم کوه او پخپله پرېهم پابند وسه".
د مونځ وختونو ته دلته هم صفا اشاره شوې ده. د نمر ختلو نه مخکښې د سحر مونځ. د نمر پرېوتو نه مخکښې د مازیګر مونځ. او د شپې په وختونو کښې د ماسخوتن او د تهجد مونځ. او د ورځې غاړې درې کیدے شي. یوه غاړه سحر ده، دویمه غاړه د نمر زوال دے، او دریمه غاړه ماښام دے. د ورځې د غاړو نه مراد د سحر، د ماسپخین او ماښام مونځ کیدے شي. د زیات تفصیل د پاره اُګوره تفهیم القرآن دویم جلد. هود، حاشیه ۱۱۳. بني اسرائیل، حاشیه ۹۱ تا ۹۷، دریم جلد الروم، حاشیه ۲۴. څلورم جلد، المؤمن، حاشیه ۷۴.

۱۱۳ه د دے دوه مطلبونه کیدے شي او غالبًا چه دواړه مراد دي. یو دا چه ته په خپل موجوده حالت باندې راضي شه، او د خپل دعوت د پاره دا سپکے سپورې خبرې برداشت کوه، او د الله په دے فیصله باندې راضي شه چه څوک په تا ظلم زیاتے کوي هغوی له به لا اوس سزا نه ورکړے کیږي، هغوی به

مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ۭ وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ﴿۱۳۱﴾
وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ۭ لَا نَسْـَٔــلُكَ رِزْقًا ۭ نَحْنُ
نَرْزُقُكَ ۭ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿۱۳۲﴾ وَقَالُوْا لَوْلَا يَاْتِيْنَا بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ۭ

خلقو له ورکړې دي. دا خو موږ دوئ له ددې د پاره ورکړې دي چې دوئ په آزميښت کښې واچوو، او ستا د رب حلال رزق بهتر دے[۱۳] او باقی پاتې کيدونکے دے. خپل بال بچ ته د مونځ حکم کوه او پخپله هم پرې پابند وسه. موږ له ستا نه څه رزق نه غواړو، رزق خو موږ تا له درکوو. او ښه انجام د پرهيزګارۍ دے.[۱۵]
هغوئ وائي چې دا سړے د خپل رب د طرفه څه نښه (معجزه) ولې نه راوړي ؟

د حق داعي تلکوي هم او په زمکه به خوشحاله ګرزي هم. دويم مطلب ئې دا دے چې ته خولې شان دا کار اوکړه نو بيا اوګوره چې د دے انجام به هغه وي چې ستا زړه به پرې خوشحاله شي. دا دويم مطلب د قرآن په مختلفو ځايونو کښې بيان کړے شوے دے. مثلاً په سورة بني اسراءيل کښې د مونځ د حکم نه روستو فرمائي عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا، "اُميد دے چې ستا رب به تا مقام محمود ته اُورسوي" آيت. ۷۹
او په سورة ضحیٰ کښې فرمائي، وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰى ۙ وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى،
"ستا د پاره روستنے دور يقيناً چې د اولني دور نه بهتر دے، او ډير زر به ستا رب تا له دومره ډير څه درکړي چې ته به خوشحاله شې"

[۱۳] د رزق ترجمه موږ "حلال رزق" کړې ده، ځکه چې الله تعالیٰ حرام مال ته چيرې "د رب رزق" نه دے ويلے. مطلب دا چې ستا او ستا د مؤمنانو ملګرو دا کار نه دے چې د دے فاسقانو او فاجرانو دولت ته او د دوی د ژوند ظاهري شان و شوکت ته اُوپسخيږئ او د ارمان په نظر ورته اُوګورئ. دا مال و دولت او دا ظاهري شان و شوکت ستاسو د پاره د پسنديدو قابل نه دے. کوم پاک رزق چې تاسو په خپل محنت سره ګټئ، خواه که هغه هرڅومره لږ وي خو د مومنانو د پاره هغه بهتر دے او په دے کښې هغه نيکره ده چې د دُنيا نه د آخرت پورے برقرار پاتې کيدونکې ده.

[۱۴] يعني ستا بال بچ د هم د خپلې غريبۍ په مقابله کښې د دے حرام خورو عيش و عشرت ته نه ګوري او خپلې حوصلې د نه بائيلي. هغوئ ته نصيحت کوه چې مونځ کوي. د دے سره به د هغوی فکر بدل شي، د هغوئ د ښه او بد معيار به بدل شي او د هغوئ د خيالاتو مرکز به بدل شي. هغوئ به په پاک رزق باندې صابر شي او د فسق و فجور په وجه چې کوم عيش حاصليږي د هغه په ځائې به هغوئ هغه نيکو کارو ته ترجيح ورکړي کوم چې د ايمان او د تقوی په وجه حاصليږي.

[۱۵] يعني موږ دا تاسو ته د مونځ کولو حکم د دے د پاره نه کوو چې ګټې په دے کښې زموږ څه فائده ده. فائده ستاسو خپله ده، او هغه دا ده چې په تاسو کښې به تقوی پيدا شي چې په دنيا و په آخرت دواړو کښې د آخري او د مستقلې کاميابۍ ذريعه ده.

أَوَلَمْ تَأْتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ الْأُولَىٰ ﴿١٣٣﴾ وَلَوْ أَنَّا أَهْلَكْنَاهُم بِعَذَابٍ
مِّن قَبْلِهِ لَقَالُوا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِن
قَبْلِ أَن نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ ﴿١٣٤﴾ قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوا فَسَتَعْلَمُونَ
مَنْ أَصْحَابُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ وَمَنِ اهْتَدَىٰ ﴿١٣٥﴾ ع ۸ ۱۴

او آیا دوئ ته د مخوا نو صحیفو د ټولو تعلیمونو واضح بیان رانغے؟ [۱۱۶] که چرے مونږه د دے قرآن
د راتلو نه مخکښے دوئ په یو عذاب باندې هلاک کړي وے نو بیا به دے خلقو ویل چه اے زمونږ پروردګاره
تا مونږ ته یو رسول ولے رانه لیږو چه د ذلیله کیدو او رسوا کیدو نه مخکښے مونږه ستا د آیتونو
پیروی اختیار کړے وے - اے محمدؐ، دوئ ته اووایه، هر سړے د انجام په انتظار کښے
دے، [۱۱۷] نو تاسو هم په انتظار کښے وسئ، ډیر زر به تاسو ته معلومه شي
چه څوک په نیغه لاره تلونکی دی او څوک هدایت موندونکی دی. ع

[۱۱۶] یعنی دا ولے څه وړه خبره ده چه په دوئ کښے یو اُمی سړي هغه کتاب پیش کړو چه په
هغے کښے د اول نه راواخله تر اوسه پورے د ټولو آسمانی کتابونو د مضمونونو او د تعلیماتو نچوړ
لیکلے شوے دے. د انسان د لاربنودنے د پاره چه په هغه کتابونو کښے څه وو هغه ټول نه یواځے دا چه
په دے کتاب کښے راجمع کړے شوی دی، بلکه هغه ئے دا سے صفا او واضحه بیان کړی هم دی چه په
صحرا کښے اوسیدونکی بدو کان پرے پوهیږی او فائده ترے اخستے شي.

[۱۱۷] یعنی د کله نه چه دا دعوت ستا په ښار کښے راپورته شوے دے، نو نه یواځے د دے ښار
هر سړے بلکه د نورو شا و خوا علاقے هر سړے انتظار کوی چه د دے آخری انجام به څه وی.

# الانبیاء

**نوم** دَدے سورت نوم دَ یو خاص آیت نه نهٔ دے راخستے شوے۔ چونکه په دے کښے مسلسل دَ ډیرو پیغمبرانو ذکر راغلے دے، نو ځکه ئے نوم "الانبیاء" کیښودے شوے دے۔ دا هم دَ موضوع په لحاظ سره دَ سورة عنوان نهٔ دے بلکه صرف دَ پیژندګلو یو علامت دے۔

**دَ نازلیدو زمانه** دَ مضمون او دَ انداز بیان نه دا معلومیږی چه دا دَ مکے په منځنی دور کښے نازل شوے دے، یعنی مونږ چه کوم تقسیم کړے دے دَ هغے په لحاظ سره دا دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ مکی ژوند دریم دور دے۔ دَدے په پس منظر کښے هغه حالات نشته کوم چه دَ آخری دور په سورتونو کښے ښکاری۔

**موضوع او مضمون** کوم کشمکش چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ قریشو دَ سردارانو په مینځ کښے وُو هغه په دے سورت کښے بیان شوے دے۔ هغوئ چه به په نبیؐ باندے دَ رسالت، دَ توحید او دَ آخرت په حقله کوم اعتراضونه کول دَ هغے جواب ورکړے شوے دے۔ هغوئ چه به دَ نبیؐ کوم مخالفت کولو په هغے زورنه ورکړے شوی ده او دَ هغے دَ بد انجام نه خبردارکړے شوی دی۔ هغوئ چه به په کوم بے پروائئ سره دَ نبیؐ دَ دعوت هرکلے کولو په هغے باندے خبردارے ورکړے شوے دے او په آخر کښے ورته دا ویلے شوی دی چه کوم سړے تاسو دَ ځان دَ پاره زحمت او مصیبت ګنړئ هغه په اصل کښے ستاسو دَ پاره رحمت دے۔

دَ تقریر په دوران کښے چه کوم خاص خاص خبری شوی دی هغه دا دی؛

(۱) دَ مکے کافران په دے دوکه کښے پراته وُو چه بشر هیڅکله رسول نهٔ شی جوړیدے او په دے وجه هغوئ دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ رسالت نه انکار کولو ـــــ دَدے خبری رد ډیر په تفصیل سره شوے دے۔

(۲) هغوی به په نبیؐ او په قرآن باندے مختلف قسم کړ وړ اعتراضونه کول او بیا به خبره باندے ټینګ نهٔ وُو ـــــ په دے باندے مختصر بحث شوے دے لیکن ډیر په مُدلّل طریقه شوے دے۔

(۳) دَ هغوئ دا خیال وُو چه دا ژوند هسے یو لوبه ده، یو څو ورځے پس به هم دغسے ختمه شی، دَدے هیڅ نتیجه نشته، دَ عملونو حساب کتاب او جزا او سزا هیڅ نشته ـــــ دَدے عقیدے په وجه به هغوی دَ نبیؐ دعوت ردکولو، نو ډیره په اغیزناکه طریقه سره دَ هغوئ دا عقیده باطله ثابته کړے شوی ده۔

(۴) هغوئ په شرک باندے ټینګ ولاړ وُو او دَ توحید سره ئے دُشمنی وه او دا خبره دَ هغوی او دَ نبی صلی الله علیه وسلم په مینځ کښے دَ جګړی اصل بنیاد وُو ـــــ دَدے دَ اصلاح دَ پاره دَ شرک خلاف

او د توحید په حق کښې مختصر لیکن ډیر وزندار دلیلونه ورکړے شوی دی۔

(۵) هغوی په دے دوکه کښې پراته وُو چه مونږه بیخی تر بار بار وایوچه ته دروغژن ئې خو بیا هم په مونږه باندې عذاب نه راځی نو بیخی ضرور دروغژن دے او هغه چه د خدائے د طرفه مونږه د کوم عذاب نه یرَوی هغه هسے تشے د خولے خبرې دی ——— د دے خبرې د ختمولو کوشش په دلیلونو او په نصیحتونو سره شوے دے۔

د دے نه روستو د پیغمبرانو د کردار د اهمو واقعاتو نه یو شو مثالونه پیش کړے شوی دی، چه مقصد ئې دا دے چه په انسانی تاریخ کښې د خدائے تعالیٰ د طرفه څومره پیغمبران راغلی وُو هغوی ټول انسانان وُو، او د نبوت د درجے نه علاوه پکښې نور ټول صفتونه د دُنیا د عامو انسانانو په شان وُو۔ په هغوی کښې د اُلوهیت او د خدائیٔ هیڅ آثار نهٔ وُو بلکه هغوی به د خپل هر ضرورت د پاره خدائے ته لاس نیول۔ د دے سره د دغه تاریخی مثالونو نه دوه خبرې نورے هم واضحه کړے شوی دی۔ یوه دا چه په پیغمبرانو باندې قسما قسم مصیبتونه راغلی دی، او د هغوی مخالفینو هم د هغوی د بربادولو کوششونه کړی دی، خو آخر دا چه د الله تعالیٰ د طرفه د هغوی امداد شوے دے۔ دویمه دا چه د ټولو پیغمبرانو دین یو وُو۔ او دا هغه دین وُو کوم چه محمد صلی الله علیه وسلم پیش کوی۔ د انسانانو اصل دین دا دے، او باقی چه څومره مذهبونه په دُنیا کښې جوړ شوی دی هغه ټول له گمراهی ده۔

په آخر کښې دا وئیلے شوی دی چه د انسان کامیابی په دے دین کښې ده۔ کوم خلق چه دا دین قبول کړی هغوی به د خدائے په آخری عدالت کښې کامیاب وی او د زمکے وارثان به وی۔ او کوم خلق چه دا دین قبول نهٔ کړی هغوی به په آخرت کښې ډیر بد انجام اُوویني۔ دا د الله تعالیٰ غټه مهربانی ده چه د فیصلے کولو د وخت نه مخکښې د خپل نبی په ذریعه خلق د دے حقیقت نه خبروی۔ ډیر بے وقوفان دی هغه خلق چه د نبی راتلل د خپل ځان د پاره د رحمت په ځائے زحمت گڼړی۔

# سُوْرَةُ الْاَنْبِيَآءِ مَكِّيَّةٌ

اٰيَاتُهَا ۱۱۲ رُكُوْعَاتُهَا ۷



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ

مَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ اِلَّا اسْتَمَعُوْهُ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ ②

لَاهِيَةً قُلُوْبُهُمْ ۭ وَاَسَرُّوا النَّجْوَى ۖ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۖ هَلْ هٰذَآ

نزدے راغلے دے دَ خلقو دَ حساب وخت،[۱] او حال دا دے چه دوی په غفلت کښے مخونه اړولی دی.[۲] دوی ته چه هر تازه نصیحت دَ خپل ربّ طرفنه[۳] راځی هغه په مشکل سره اَوری او په لوبو کښے اخته وی،[۴] دَ دوی زړونه (په نورو فکرونو کښے) مصروف دی.

او ظالمان په خپلو کښے پټے پټے خبری کوی چه "دا سړے خو آخر ستا سو پشان

له دَ قیامت نزدے والے ترے مراد دے. یعنی اُوس هغه وخت لرے نه دے چه خلق به دَ حساب کتاب دَ پاره خپل ربّ ته وړاندے حاضریږی. دَ محمد صلی الله علیه وسلم پیغمبری دَ دے خبرے علامه ده چه انسانی تاریخ اُوس په خپل آخری دور کښے داخل شوے دے. اُوس انسان دَ خپل آغاز په نسبت خپل انجام ته ډیر نزدے دے. آغاز او درمیانی مرحلے تیرے شوی دی او آخری مرحله شروع شوی ده. هم دا خبره نبی صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کښے بیان کړی ده. نبیؐ خپلے دوه گوتے اُوچتے کړے او ویے فرمائیل "بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ" "زهٔ په دا سے وخت کښے رالیږلے شوے یم چه زهٔ او قیامت دَ دے دوو گوتو پشان یُو" یعنی زمانه روستو بس قیامت دے، دَ بل نبیؐ دعوت په مینځ کښے نشته. که ځان سمول غواړی نو زما په دے دعوت ځان سم کړی. بل لاربښودونکے او زیرے ورکونکے او یروونکے راتللو والا نشته.

۲ له یعنی هیڅ خبری ته توجه نهٔ کوی. نهٔ خپله سوچ کوی چه زمونږ انجام به څه وی او نهٔ دَ هغه پیغمبر خبره اَوری څوک چه دَ هغوی دَ خبردارولو کوشش کوی.

۳ له یعنی دَ قرآن هر نوے سورت چه په محمد صلی الله علیه وسلم باندے نازلیږی او دوی ته اَوروَلے کیږی.

۴ له دَ "وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ" دوه مطلبونه کیدے شی. یو هغه چه بره په ترجمه کښے بیان کړے شوے دے او په هغے کښے دَ لوبے نه مراد هم دا دَ ژوند لوبه ده چه دا دَ خدائے او دَ آخرت نه غافله خلق ئے کوی. دویم مطلب دا دے چه دا په غور سره نهٔ اَوری بلکه دَ لوبو ټوقو په طور ئے اَوری.

إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۚ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴿٣﴾

يو بشر دے، نو آيا تاسو به په غړېږو سترګو د جادو په جال کښې ننوځئ؟ [ھ]

[ھ] بره ترجمه په مستقبل کښې ده ليکن په حال کښې هم کيدے شي، او دواړه مطلبونه ئې صحيح دي. په دې خبرې به دَ مکې هغو غټو غټو کافرو سردارانو کولے چه دَ هغوي ښوډ دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ دعوت دَ مقابلې کولو فکر ؤو. هغوي به وئيل چه دا سړے خو په هيڅ حال نبي نه شي کيدے، ځکه چه زمونږ په شان انسان دے، خوراک څکاک کوي، په بازارونو کښې ګرزي او بال بچ لري. آخر په ده کښې هغه نا آشنا خبره کومه يوه ده چه دَ هغې په وجه دَ دے زمونږ نه بېل دے او دَ خدائے تعالی سره ئې تعلق جوړ شوے دے؟ البته په دے سړي کښې او ده په خبرو کښې يو جادو دے چه څوک ده ته نږدے ورشي او دده خبرې په غور سره واوري نو اثر پرې ضرور کيږي. نو که خپل خير غواړئ نو مه دَ ده خبرې اورئ، مه ور سره يو ځائے کيږئ، ځکه چه دده خبرې اوريدل او دده سره نږدے کيدل داسے دي لکه چه په غړيږ لو سترګو ځان دَ جادو په جال کښې ننوځول دي.

دَ کوم څيز په وجه چه به هغوي په نبي صلی الله عليه وسلم باندې دَ "سِحر يعنې دَ جادو" الزام لګولو دَ هغې يو څو مثالونه پخواني سيرت ليکونکي محمد بن اسحٰق (متوفی ۱۵۲ھ) بيان کړي دي. هغه ليکي چه يو ځل عُتبه بن ربيعه (چه دَ ابوسفيان خُسر او دَ هند جګر خوارې پلار ؤو) دَ قريشو سردارانو ته اُووے، که چرې ستاسو خوښه وي نو زه به محمدؐ له لاړ شم او دَ هغه دَ پوهه کولو کوشش به اُوکړم. دا دَ هغه وخت واقعه ده چه حضرت حمزه رض اسلام قبول کړے ؤو او دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ صحابو تعداد ورځ په ورځ زياتيدو او دَ قريشو سرداران په دې خبره پريشان ؤو. خلقو اُووے چه ابوالوليدَ، په تا باندې پوره تسلی ده، ته ضرور لاړ شه. او دَ هغوي سره خبره اُوکړه. هغه نبيؐ له ورغے او ورته ئې اُووئيل "وراره، په مونږ کښې چه ستا کوم عزت ؤو هغه تا ته پخپله معلوم دے او په نسب کښې هم ته دَ يو معزز شريف کورنۍ سړے ئې. تا په خپل قوم باندې دا څه مصيبت راوستے دے؟ تا پکښې اتفاق راوستلے. ټول قوم ته دې بے وقوف اُووے. دَ قوم دين او دَ قوم معبودانو ته دې خراب اُووے. کوم پلرونه او نيکونه چه مړه شوي دي هغوي ټولو ته دې ګمراه او کافران اُووے. زما وراره، که چرې دَ دے خبرونه ستا مقصد دا وي چه ته دَ دُنيا يو غټ سړے شې نو را شه چه مونږ درله دومره روپۍ درکړو چه ته به دَ ټولو نه زيات مالدار شې. که سرداري غواړې نو مونږ به تا خپل سردار منو. که بادشاهي غواړې نو بادشاه دې جوړ ؤو. او که چرې تا له څه بيماري لګيدلې وي چه دَ هغې په وجه تاته په ويده او په ويښه څه په نظر راځي نو مونږ به درله په غټو غټو طبيبانو علاج اُوکړو." دا خبرې ورته هغه کولے او نبي صلی الله عليه وسلم په خاموشۍ سره اوريدلے. هر کله چه هغه ښه ډيرې خبرې اُوکړے نو نبيؐ اُوفرمائيل " ابوالوليدَ، تا چه څه وئيل غوښتل هغه دې اُووئيل او که نور څه وائے؟ " هغه اُووئيل چه بس ما څه وئيل هغه ما اُووے. نبي اُوفرمائيل ښه اوس زما واوره. بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ حٰمٓ. تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ. دَ دے نه روستو نبيؐ دَ څه ساعته پورے مسلسل دَ سورة حٰمٓ السجدة تلاوت کولو او عتبه زمکے ته لاس لګولے ؤو او تلاوت ئې په غور سره

اورېدې وې. ته دېرشم آیت ته چه اورسید و نو نبیﷺ سجده اوکړه او بیائې سر پورته کړو او عُتبه ته ئې اوفرمایل "ابوالولید، چه څه ما وئیل غوږ نیولی هغه تا واورېدل، اوس ته پوهه شه او ستا کار." عُتبه چه د دې ځائې نه پاسیدو او د قریشو سردارانو ته واپس لاړو نو خلقو ورته د لیرې نه اووئیل "په خدائې مو دې قسم وی چه د ابوالولید مخ بدل شوے دے. دا هغه شے نه دے بلکه څه چه د تلو په وخت کښې وو." د ورسیدو سره ترې خلقو تپوس اوکړو "وایه ابوالولیده، څه دې اوکړل او څنګه راغلې؟" هغه اووئیل "په خدائې مې دې قسم وی نن ما داسې کلام اوریدلے دے چه د دې نه مخکښې مې هیچرې نه وو اوریدلے. قسم دے چه دا شعر نه دے، نه جادو دے او نه د غیبو خبرې دی. اے قریشو زما خبره واورئ او دا سړے په خپل حال پریږدئ. د ده کومې خبرې چه ما اوریدلی دی هغه به ضرور خپل اصل ښکاره کوی. که عرب پرې غالب شو نو د خپل رورونه به ستاسو په ذمه نه وی، د نورو خلقو په ذمه به وی. او که چرته دے په عربو باندې غالب راغے نو د هغه حکومت به ستاسو حکومت وی او د هغه عزت به ستاسو عزت وی." خلقو ورته اووئیل "چه قسم دے ابوالولیده، په تا باندې هم د هغه جادو اوچلید و." هغه ورته اووئیل چه "دا زما رائے ده، اوس تاسو پوهه شئ او ستاسو کار." (ابن هشام، اول جلد، ص ۳۱۲، ۳۱۴). بیهقی چه د دې واقعې په حقله کوم روایتونه راجمع کړی دی په هغې کښې په یو روایت کښې دا دی چه کله نبیﷺ د سورۃ حٰمٓ السجدۃ تلاوت کولو او دې آیت ته راورسید و چه ﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ﴾، نو عُتبه بے اختیاره راوړاندې شو او د نبیﷺ په خوله ئې لاس کیښودلو او وې وئیل چه د خدائے د پاره په خپل قوم باندې رحم اوکړه.

دویمه واقعه ابن اسحاق داسې بیان کړې ده چه یو ځل د اراش نومې قبیلې یو سړی څه اوښان د مکې ته راوستل او په ابوجهل ئې ورخرڅ کړل. خو کله چه ترې هغه قیمت غوښتلو نو ابوجهل هغه د غه کول او قیمت ئې نه ورکولو. اراشی چه تنګ شو نو یوه ورځ ئې د کعبې په حرم کښې د قریشو سردارانو ته په عامو خلقو کښې فریاد شروع کړو. بل طرفته د حرم په یو کوټ کښې نبی صلی الله علیه وسلم ناست وو. د قریشو سردارانو هغه سړی ته اووې چه "مونږ هیڅ نه شو کولے، اوګوره، هغه سړے چه په کوټ کښې ناست دے، لاړ شه هغه ته اووایه، هغه به در له ترې روپئې واخلی." اراشی نبی صلی الله علیه وسلم له لاړو، او د قریشو سردارانو په خپلو کښې اووې چه نن به د ډیر خوند اوکړی." اراشی لاړو او نبیﷺ ته ئې خپل شکایت بیان کړو. هغه په هغه دم راپاسیدو او د هغه ئې ځان سره کړو او د ابوجهل کور ته روان شو. سردارانو ورپسې روستو یو سړے ورپسې کړو او ورته ئې اووې چه څه اوشی نو هغه مونږ ته اووایه. نبی صلی الله علیه وسلم نیغ د ابوجهل دروازې ته اورسیدو او د دروازې زنځیرئې اوښوروو. هغه تپوس اوکړو چه څوک ئې؟ نبیﷺ جواب ورکړو چه محمدﷺ. هغه په حیرانتیا سره بهر راووتو. نبیﷺ ورته اووې "دے سړی له خپل حق ورکړه." هغه هیڅ غږ اونه کړو، دننه لاړو او د اوښانو قیمت ئې ورله راوړو او ورئې کړو. د قریشو مخبر چه دا حال اولید نو حرم ته په منډه لاړو او سردارانو ته ئې ټول حال واورولو او وې وئیل چه په خدائې مې دې قسم وی چه نن ما داسې عجیبه کار لیدلے دے چه مخکښې ما هیڅکله نه وو لیدلے، حکم بن هشام (ابوجهل) چه کله راووتو او محمدﷺ ئې اولید نو د هغه رنګ زیړ شو، او کله چه ورته محمدﷺ اووې چه ده له خپل حق ورکړه نو داسې معلومیده چه د حکم بن هشام په بدن کښې روح نیشته. (ابن هشام، دویم جلد، ص ۲۹، ۳۰).

قَلَ رَبِّيْ يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ④

بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍۭ بَلِ افْتَرٰىهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ۚۖ

رسولؐ اُووے هرهغه خبره چه په آسمان او په زمکه کښې اُوشي هغه زما رب ته معلومه ده، هغه هرڅه اوريدونکے او په هرڅه پوهه دے ۵

دوی وائي "بلکه دا اګډ وډ خوبونه دي، بلکه دا دهٔ د ځانه جوړکړي دروغ دي، بلکه دا سړے شاعر دے۔ ۶

دا دوه د نبيؐ د شخصيت او د هغه د کردار اثر او د هغه د کلام اثر، چه خلقو به ورته جادو ووئيل او نا خبره خلق به ئې يرول چه د دے سړي خوا له مه ځئ کنه جادو به درباندې اُوکړي.

۵ يعنی رسولؐ د هغوی د دے دروغو د پروپيګنډے کولو او ډيو بل په غوږونو کښې د پټو پټو خبرو کولو په جواب کښې د دے نه بغير بل څه نه دي وئيلي چه "تاسو دا څه خبرې جوړوئ هغه ټولے الله اوري او الله ته معلومې دي، خواه که په زوره ئې وايئ او که پټ پټ ئې ډيو بل په غوږونو کښې وايئ" هغه هيڅکله د دے انصاف نه شوو په مقابله کښې د هغوی پشان بد تميزه جواب نهٔ دے ورکړے۔

۶ د دے پس منظر دا دے چه هرکله د نبي صلی الله عليه وسلم دعوت په خوريدو شو نو د مکے سردارانو په خپلو کښې مشوره اُوکړه او دا فيصله ئې اُوکړه چه د دهٔ خلاف به د پروپيګنډے شروع کول پکار دي، او هر څوک چه د مکے زيارت له راشي نو هغه دومره بد ګمانه کول پکار دي چه د دهٔ خبرې او ريدو ته هډو تيار نه شي. هسے خو په دا مهم دکال دولس مياشتے جاری وُو، خو د حج په زمانه کښې په دې کسانو خوارهٔ کړے شوا وهغوی به د مسافرو په خيمو کښې ګرزيدل او دا به ئې وئيل چه دلته دا سے دا سے يو سړے دے د هغه نه هوښيار د وسئ. هغوی به د نبيؐ خلاف قسما قسم خبرې جوړولے. کله به ئې وئيل چه دا جادوګر دے، او کله به ئې وئيل چه يو کلام هغه د خپله ځانه جوړکړے دے او وائي چه دا د خدائے کلام دے. او کله به ئې وئيل چه ډيره ښه! هغه کلام څه کلام دے بس د ليونو غوندې خبرې دي او ګډې وډې خيالات دي. کله به ئې وئيل چه بس د ټک شاعری ده او نوم ئې پرې کلام الٰهي ايښودے دے - د هغوی مقصد دا وُو چه په څه طريقه خلقو له دوکه ورکړي او د هغه نه ئې بد ګمانه کړي. د هغوی د رښتيا او سره هډو څه کار نهٔ وُو چه يو قطعي خبره ئې وئيلے وے او په هغه ټينګ ولاړ وے بلکه کله به ئې څه وئيل او کله څه. ليکن د هغوی د دے پروپيګنډے نتيجه دا اُووتله چه هغوی خپله د نبي صلی الله عليه وسلم نوم د وطن کوټ کوټ ته اُورسوو. مسلمانانو چه د نبيؐ د شهرت د پاره کوم کار په کلونو کښې هم نه شو کولے هغه د قريشو د دے پروپيګنډے په وجه په لږه مُوده کښې اُوشو. د هر سړي په زړهٔ کښې دا خبره راپيدا شوه چه آخر معلوم خو ئې کړو چه دا څنګه سړے دے چه دا مخالف خبرې ئې کيږي. او ډيرو فکرمنو خلقو کښې دا سوچ اُوکړو چه د دے سړي خبرې خو اوريدل پکار دي، راځئ چه خبرې ئې واورو، مونږ څه واړه ماشومان خو نهٔ يو چه مونږ به دوکه کړي۔

د دے يو دلچسپ مثال د طفيل بن عمرو دوسی قيصه ده چه ابن اسحاق هم د هغه نه ډيره په تفصيل سره رانقل کړې ده. هغه وائي چه زهٔ د دوس قبيلے يو شاعر وُوم. د څه کار د پاره مکے ته لاړم. د رسيدو سره

فَلْيَأْتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَآ اُرْسِلَ الْاَوَّلُوْنَ ۝۵ مَآ اٰمَنَتْ
قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا ۚ اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝۶

کنٹې نو دے دِ راوړي څه نښه لکه څنګه چه دَ پخوانئ زمانے رسولان دَ نښو سره لیږلے شوی وُو.[۶] حالانکه دوئ نه مخکښے یو کلے هم، چه هغه مونږه هلاک کړو ایمان را نوړو، نو اوس به کنې دوی ایمان راوړی؟

زانه دَ قریشو څه خلق راچاپیره شوا و دَ نبی صلی الله علیه وسلم خلاف ئے رالا ښه غوږ ونه دِک کړل آن تردے پورے چه زهٔ سخت بدګمانه شوم او ما دا فیصله اُوکړه چه زهٔ به دَ هغهٔ نه ځان ساتم ۔ بله ورځ چه زهٔ حرا شریف ته لاړم نو هغهٔ دَ کعبے په خوا کښے مونځ کولو ۔ ما چه یو څو جملے په خپلو غوږو نو واوریدلے نو ما ته معلومه شوه چه دا خو ډیر ښه کلام دے ۔ ما په خپل زړهٔ کښے اُووے چه زهٔ شاعریم، ځوان سړے یم، عقل لرم، څه وړوکے نهٔ یم چه صحیح او غلط نهٔ پیژنم ۔ آخر دَ دے سړی سره څنګه ولے نهٔ ملاویږم چه پته تړا اُولږدم چه دا دَے څه وائی ۔ چنانچه کله نبی صلی الله علیه وسلم مونځ اُوکړو او واپس کورته روان شو نو زهٔ ورپسے روستو ور روان شوم، چه کورته اُورسید و نو ما ورته عرض اُوکړو چه ستا قوم ما ته ستا په باره کښے دا خبرې کړی وے او زهٔ ستا نه دومره بدګمانه شوے وُوم چه ما په خپلو غوږو نو کښے مالوچ ورکړی وُوچه چرته ستا آواز وانهٔ وُرم ۔ لیکن اُوس چه ما یو څو کلمے ستا دَ خولے نه واوریدے نو ډیرے ښه را ته معلومے شوے ۔ ته ما ته لږ په تفصیل سره اُووایه چه ته څهٔ وائے ۔ نبی صلی الله علیه وسلم ما ته په جواب کښے دَ قرآن څهٔ حصه واُورولو په ما ئے دومره اثر اُوکړو چه په هغه م پړ ایمان راوړو ۔ بیا واپس لاړم او خپل پلار او نیځه م مسلمان کړل ۔ دَ هغے نه روستو م په خپله قبیله کښے مسلسل اِسلام خوَرولو، آن تردے پورے چه دَ خندق دَ غزا پورے زمانے دَ قبیلے اَتیا اَتیا ځاندانونه مسلمانان شوی وُو (ابن هشام ۔ دویم جلد ۔ ص ۲۲، ۲۴) ۔

یو بل روایت چه ابن اسحاق رانقل کړیدے دَ هغے نه معلومیږی چه دَ قریشو سردارانو به په خپلو مجلسونو کښے دا خبره کوله چه کومے خبری مونږه دَ نبی صلی الله علیه وسلم خلاف جوړوُو دا بالکل دروغ دی ۔ هغه واقعه په یو مجلس کښے نضر بن حارث تقریر اُوکړو چه "تاسو په کوم طریقه دَ محمد ﷺ مقابله کوئ په هغے سره به کار نهٔ چلیږی ۔ هغه چه کله په تاسو کښے نوے ځلمے وُو نو ستاسو دَ تولو نه زیات خوش اخلاق وُو، دَ ټولو نه زیات ریښتیا او دَ ټولو نه زیات امانتدار ګڼړلے شو ۔ اُوس چه دَ هغه ویښته په سپینیدو شو نو تاسو وائیئ چه دے جادوګر دے او نجومی دے، شاعر دے، او لیونے دے ۔ قسم په خدائے چه هغه جادوګر نهٔ دے ۔ مونږه جادوګران لیدلی دی او دَ هغوی دَ هغوی دَ دم تعویذ نه واقف یو ۔ قسم په خدائے چه هغه نجومی هم نهٔ دے ۔ مونږه نجومیان لیدلی دی او دَ هغوی تک خبری موَ اوریدلی دی، او هغوی چه کومے کول مول خبری کوی هغه مونږه ته معلومے دی ۔ قسم په خدائے چه هغه شاعر هم نهٔ دے ۔ دَ هر قسم شاعری نه مونږه خبر یُو لیکن دَ هغه کلام په هیڅ قسم شاعری کښے نهٔ راځی ۔ قسم په خدائے چه هغه لیونے هم نهٔ دے، دَ لیونو چه کوم حالت وی او هغوی چه کومے بے مطلبه خبری کوی دَ هغے نه مونږه خبر نهٔ یُو څهٔ؟ اے قریشی سردارانو، څه بل سوچ اُوکړئ، دَ کوم څیز مقابله چه تاسو درپیښه ده هغے له تاسو په دے خبرو شکست نهٔ شئ ورکولے ۔ دَ دے نه روستو هغه دا تجویز پیش کړو چه دَ عجمونو

وَمَآ اَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوۡحِیۡۤ اِلَیۡهِمۡ فَسۡـَٔلُوۡۤا اَهۡلَ الذِّكۡرِ
اِنۡ كُنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿٧﴾ وَمَا جَعَلۡنٰهُمۡ جَسَدًا لَّا یَاۡكُلُوۡنَ الطَّعَامَ
وَمَا كَانُوۡا خٰلِدِیۡنَ ﴿٨﴾ ثُمَّ صَدَقۡنٰهُمُ الۡوَعۡدَ فَاَنۡجَیۡنٰهُمۡ وَمَنۡ نَّشَآءُ وَ
اَهۡلَكۡنَا الۡمُسۡرِفِیۡنَ ﴿٩﴾ لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡكُمۡ كِتٰبًا فِیۡهِ ذِكۡرُكُمۡ ؕ اَفَلَا

او اے محمدؐ، ستا نه مخکښې هم موږ چه رسولان لیږلی وُو هغوی هم انسانان وُو او موږ به پرې وحی نازلوله.[۹] تاسو که علم نه لرئ نو د اهلِ کتابو نه تپوس اُوکړئ.[۱۰] هغه رسولانو ته موږ داسې بدن نه وُو ورکړے چه هغوی به خوراک نه کولو، او نه هغوی همیشه ژوندی وُو. بیا اوګورئ چه آخر نه آخر موږ د هغوی سره خپلې وعده پوره کړه، او هغوی او نور څوک چه موږ غوښتل هغوی موږ بچ کړل، او د حد نه اوړیدونکی خلق مو هلاک کړل.[۱۱]

اے خلقو، موږ تاسو ته یو داسې کتاب درلیږلے دے چه په هغې کښې خاص ستاسو ذکر دے، آیا تاسو

[۹] ...درستم او د اسفندیار قیصې راوړے شی او هغه د خوږه کیسه شی چه خلق په هغې کښې دلچسپی واخلی او د قرآن د کلام نه ورته زیاتې نا آشنا معلومې شی. چنانچه څه ورځې په دې باندې عمل اُوکړے شو. او نضر بن حارث دا تیمې وئیل شروع کړل. (اول جلد، ص ۳۲۰، ۳۲۱).

[۸] په دے مختصره جمله کښې د نبئ د مطالبې کوم جواب ورکړے شوے دے په هغې کښې درے مضمونونه شامل دی. یو دا چه تاسو د پخوانو رسولانو نښې غواړئ، خو دا درته هیر دی چه ضدیانو خلقو د هغې نښو لیدلو باوجود هم ایمان نه وُو راوړے. دوئم دا چه تاسو نښې مطالبه خو کوئ، خو دا درته یاد نه دی چه کوم خلقو د معجزې لیدلو نه روستو ایمان نه دے راوړے نو هغوی بیا هلاک کړے شوی دی. دریم دا چه تاسو کومه نښه غواړئ او هغه درته الله نه رالیږی نو دا درباندې د خدائے عنایت مهربانی ده. ځکه د سپوره تاسو په یوه نښه انکار کوئ او عذاب درباندې رانغی. آیا اوس نښه د دے د پاره غواړئ چه د هغه قومونو پشان انجام اُووینئ چه د نښې لیدلو نه روستو هم ایمان را نه وړو او تباه کړے شول؟

[۹] دا د هغوی د دے قول جواب دے چه "دا سړے خو ستاسو پشان یو بشر دے". د هغوی دا دلیل وُو چه نبی صلی الله علیه وسلم چونکه بشر دے نو ځکه هغه نبی نه شی کیدے. جواب ورکړے شو چه د پخوانی زمانې کوم خلق تاسو پیژنئ منئ چه هغوی د خدائے د طرفنه رالیږلے شوی وُو، نو هغوی خو ټول انسانان وُو او د خدائے د طرفنه پرې وحی راتله. (د زیاتې تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، یٰسین حاشیه[۱۱]).

[۱۰] یعنی دا یهودیان، چه ن د اسلام په دُشمنۍ کښې ستاسو ملګری دی او تاسو ته د مخالفت کولو طریقې ښائی، د دوئ نه تپوس اُوکړئ چه موسیٰ او د بنی اسرائیلو نور پیغمبران څوک وُو، آیا انسانان وُو او که نور مخلوق وُو؟

تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰﴾ وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَّاَنْشَاْنَا بَعْدَهَا
قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ﴿۱۱﴾ فَلَمَّآ اَحَسُّوْا بَاْسَنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَرْكُضُوْنَ ﴿۱۲﴾
لَا تَرْكُضُوْا وَارْجِعُوْٓا اِلٰى مَآ اُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ
تُسْـَٔلُوْنَ ﴿۱۳﴾ قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۱۴﴾ فَمَا زَالَتْ تِّلْكَ دَعْوٰىهُمْ

پوهېږئ نه ؟[۱۰] ع

څومره ظالمان کلي دي چه هغوئ مونږه ريز مريز کړل او د هغوئ نه روستو موبيل قوم را اوچت کړو. هر کله چه هغوئ زمونږه عذاب اُوليد[۱۱] نو د هغې کلي نه يې په تښتيدو شروع اوکړه. (ورته اُوويلے شو) "تښتئ مه، واپس لاړشئ خپلو کورونو ته او د عيش هغه سامانونو ته چه تاسو به پکښې آرام کولو شايد چه تاسو نه تپوس اُوکړے شي[۱۲]." هغوئ اُوويل چه "هائے زمونږه کمه نصيبه، بے شکه چه مونږه ظالمان ؤو" او هغوئ هم د غے چيغے و هلے

[۱۰] يعنی مکې ته اريخ مونږ ته يوازے دا سبق نه راکوي چه څنګه کوم رسولان راليږلے شوي ؤ هغوئ انسانان ؤو، بلکه دا سبق هم راکوي چه د هغوئ سره الله تعالىٰ د امداد کولو وعده کړے وه هغه ئې پوره شوه، او کوم قوم چه د هغوي مخالفت کولو هغه برباد شو. اُوس تاسو د خپل انجام په حقله په خپله سوچ اوکړئ.

[۱۱] د مکے کافرانو چه به د قرآن او د محمد صلی الله عليه وسلم په حقله کومے ګډے وډے خبرې کولے چه دا شاعري ده، دا جادوګري ده، دا ګډ و ډ خوبونه دي او دا د ځانه جوړه کړے شوي تپه دي، نو دا د دے ټولو خبرو په غونډه جواب دے. فرمائي چه په دے کتاب کښې آخر کوم داسے نا آشنا خبره ده چه په هغے تاسو نه پوهيږئ، او چه د هغې په وجه دا د ومره مختلف خيالونه ژغلوئ. په دے کښې خو ستاسو خپل حال بيان کړے شوے دے. ستاسو د نفسيا تو او ستاسو د ژوند د حالاتو په حقله پکښې بحث شوے دے. ستاسو د فطرت، ستاسو د جوړښت او ستاسو د پيدائش او ستاسو د انجام خبري پکښې شوي دي. ستاسو د ګيرچاپيره ماحول نه پکښې هغه نښے پيش کړے شوي دي چه هغه حقيقت طرف ته اشاره کوي. او ستاسو د ښو اخلاقو او د بدو اخلاقو دا سے فرق ښکاره کوي چه د هغے د صحيح والي ګواهي ستاسو ضمير هم ورکوي. په دے ټولو خبرو کښې کوم يو څيز دا سے ګران او کړکيچن دے چه هغه ستاسو د عقل نه بهر دے ؟

[۱۲] يعنی هر کله چه د خداے عذاب په سر راغے او هغوي ته معلومه شوه چه عذاب راغے.

[۱۳] دېره د مطلب نه ډکه نقره ده او د دے ډېر مطلبونه کيدے شي، مثلاً: د دے عذاب لږ ه ښه معاينه اُوکړئ چه صباله درنه څوک تپوس اُوکړي نو چه ټيک حال ورته اُووايئ. بيا د شان و شوکت سره

حَتّٰى جَعَلْنٰهُمْ حَصِيْدًا خٰمِدِيْنَ ﴿۱۵﴾ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ
وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ﴿۱۶﴾ لَوْ اَرَدْنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ لَهْوًا لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ
لَّدُنَّآ ۖ اِنْ كُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۱۷﴾ بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ
فَيَدْمَغُهٗ فَاِذَا هُوَ زَاهِقٌ ۭ وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُوْنَ ﴿۱۸﴾

آن تر دے پورے چه مونږه هغوی ریز مریز کړل، او په هغوئ کښے د ژوند هم پاتے نه شو۔ مونږه دا آسمان او زمکه او څه چه په دے دواړو کښے دی د لوبو په طور نه دی جوړ کړی۔[15] که چرے مونږه د لوبو څه شیز جوړول غوښتل او بس هم دغه لوبے کول زمونږ مطلب وے نو د خپل ځان سره به مو کولے۔[16] بلکه مونږه خو باطل له په حق گوزار ورکوو چه سر ور له ماتوی او هغه په هغه شا ورکیږی[17] او ستاسو د پاره تباهی ده د هغے خبرو په وجه چه تاسو ئے جوړوی۔[18]

خپل مجلسونه گرم کړئ، شاید چه اوس هم ستاسو نوکران او ستاسو لښکرے ستاسو نه پوښتنه اوکړی چه جناب څه حکم دے۔ بیا خپلے کمیټئ او خپل کونسلونه جوړ کړئ او په آرام کښینئ، شاید چه اوس هم ستاسو د هوښیارو مشورونه د فائدے اخستلو د پاره د دُنیا خلق راشی۔

[15] دا د هغوئ د ژوند په هغه نظریه باندے تبصره ده چه د هغے په وجه به هغوئ د نبی صلی الله علیه وسلم دعوت ته توجه نه کوله۔ د هغوئ دا خیال وو چه انسان په دُنیا کښے بس هم دغسے آزاد پریښودے شوے دے چه څه ئے زړه غواړی هغه دِ کوی او چه څنګه ژوند تیرول غواړی هغه شان دِ تیروی، د هغه نه د پوښتنے کولو هیڅوک نشته۔ د هغه سره حساب کتاب نشته۔ یو څو ورځے بنه یا بد ژوند تیرول دی او بیا بس هم خلاص ختمیدل دی۔ دویم ژوند نشته چه کښی په هغے کښے به په بنه کار انعام او په بد کار سزا ملاویږی۔ د هغوئ د دے خیال مطلب په حقیقت کښے دا وو چه د کائنات دا ټول نظام هسے مقصده لوبه دی۔ او هم د دے خیال په وجه هغوی د پیغمبر د دعوت نه پروا نه کوه۔

[16] یعنی که چرے مونږه لوبے کولے نو د لوبو شیزونه به موجوړ کړی وے او په خپله به مو لوبے کولے۔ دا ظلم به مو هرګز نه کوو چه یو عقلمند او ذمه وار مخلوق به مو پیدا کوو او د هغوئ په مینځ کښے به مو د حق او د باطل دا کشمکش او جګړے را وستلے او صرف د خپل زړه د خوشحالولو او د مزے اخستلو د پاره به مو نور څوک په تکلیفونو کښے اچولو۔ ستاسو خدائے دا د دُنیا د لوبو تماشو ځائے نه دے جوړ کړے لکه د روم د لوبو د میدان (Colosseum) پشان چه په هغے کښے انسانان د درندګانو سره جنګوی او د درندګانو چه د انسانانو د ګډو ټوټې را شوکوی نو د خوشحالئ خند اګانے شروع شی۔

[17] یعنی مونږه تماشه سِیز لوبو والا نه یو، نه زمونږ کار لوبے تماشے کول دی۔ زمونږه دا دُنیا یو مکمل نظام دے چه په دے کښے باطل شیز ټینګیدے نه شی۔ دلته چه باطل کله سر اوچتوی نو د حقیقت

وَلَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَنْ عِنْدَهٗ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ ۝١٩ يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ ۝٢٠

په زمکه او په آسمانونو کښې چه کوم مخلوق دے هغه د الله دے[۱۹] او کوم (فرښتې) چه د هغه سره دي هغوی نه د هغه د عبادت کولو نه خپل ځان غټ ګڼړي او نه ستومانه کیږي[۲۰] شپه او ورځ د هغه تسبیح لولي، دمه کښې نه کوي.

سر مے ټکراؤ راځي او آخر دا چه بیا ختمیږي. تاسو که چرے دا دنیا د تماشے ځائے ګڼړئ او د تماشګیر په حیثیت پکښے ژوند تیروئ، یا پکښے د حقیقت نه خلاف د باطلو نظریو مطابق کار کوئ نو نتیجه به مے ستاسو خپله تباهي وي. انساني تاریخ را اوچت کړئ او اوګورئ چه چا دنیا صرف د تماشے ځائے ګڼړلے دے، یا ئے د یو عام لنګر ځائے ګڼړلے دے، او یا ئے صرف د عیش وعشرت ځائے ګڼړلے دے، او پیغمبرانو چه کوم حقیقت ښودلے دے د هغے نه ئے مخ اړولے دے، او ژوند ئے د باطلو نظریاتو مطابق تیر کړے دے نو د هغوی څه انجام شوے دے. بیا د کومے د عقلمندۍ خبره ده چه کله مو پوهه کونکے پوه کوی نو په هغه پورے ټوقے کوئ، او چه کله در باندې د خپلو بدو عملونو په وجه د خدائے عذاب راشي نو چغې کړئ چه "هائے زمونږه بدنصیبه، بے شکه مونږ ظالمان وو".

۱۸ے د دے ځائے نه د توحید په ثبوت کښے او د شرک په مخالفت کښے خبرې آترې شروع کیږي چه د نبی صلی الله علیه وسلم او د مکے د مشرکانو په مینځ کښے د جګړے اصل سبب وو. اوس مشرکانو ته دا وئیلے کیږي چه د کائناتو دا کوم نظام چه تاسو پکښے اوسیږئ (چه د دے په حقله اوس اوس دا وئیلے شوی دی چه دا هسے بے مقصده لوبے نه دی، چه د دے په حقله دا هم وئیلے شوی دی چه دا یو بامقصده او حقیقي نظام دے، او چه د دے په حقله دا هم وئیلے شوی دی چه په دے کښے باطل همیشه د حقیقت سره ډغره خوری او باطل ټوکړے ټوکړے کیږي) د دے حقیقت دا دے چه د دے ټول نظام خالق، مالک، حاکم او رب صرف یو خدائے دے، او د دے حقیقت په مقابله کښے باطل دا دے چه دا نظام د ډیرو خدایانو مشترکه بادشاهي اوګڼړلے شي، او یا دا عقیده اولرلے شي چه د یو لوئے خدائے په خدائۍ کښے د ورو ورو خدایانو هم څه دخل شته.

۱۹ے یعنی هغه فرښتې چه د عربو مشرکانو به د خدائے اولاد ګڼړلے، او یا به ئے په خدائۍ کښے اختیارمند ګڼړلے او د هغوی عبادت به ئے کولو.

۲۰ے یعنی د خدائے بندګی کول د هغوی ناخوښه کار نه دے چه کښی به زړه ئے کوی او ستومانه کیږي. په اصل کښے لفظ لَا يَسْتَحْسِرُوْنَ استعمال شوے دے. په استحسار کښے د ستړیا والی مطلب پروت دے. او د دے نه مراد هغه ستړي والے دے چه د ناخوښه کار په کولو سره پیدا کیږي.

اَمِ اتَّخَذُوۡۤا اٰلِهَةً مِّنَ الۡاَرۡضِ هُمۡ يُنۡشِرُوۡنَ ﴿۲۱﴾ لَوۡ كَانَ فِيۡهِمَاۤ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا ۚ فَسُبۡحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الۡعَرۡشِ عَمَّا يَصِفُوۡنَ ﴿۲۲﴾

دے خلقو چہ کوم دَ زمکے خدایان جوړکړی دی آیا هغه دا سے خدایان دی چہ (په بے روحه څیزونو کښے روح اچوی او) اُوچتے را پا سَوی ؟[21]

که چرے په آسمان او په زمکه کښے دَ یو الله نه سِوا نور خدایان هم موجود وے نو (دَ زمکے او دَ آسمان) دَوا ړو نظام به خراب شوے وے.[22] پس پاک دے الله ربّ العرش[23] دَ هغو خبرو نه کوم چه دا خلق جوړوی.

[21] په اَصل کښے لفظ "يُنْشِرُوْنَ" استعمال شوے دے چه دَ "اِنشار" نه مُشتق دے. دَ اِنشار معنیٰ ده بے روحه څیز نیغ ودرول. اګرچه دا لفظ په قرآن مجید کښے عام طور دَ مړګ نه روستو دَ ژوند دَ پاره استعمال شوے دے لیکن دَ دے معنیٰ نه علاوه، دَ اصلی لغوی معنیٰ په اعتبار سره دا لفظ په بے روحه څیز کښے دَ ژوند اچولو دَ پاره استعمالیږی. او دَ موقع او دَ محل سره پرسره پوهیږی چه دا لفظ دلته په دے معنیٰ کښے استعمال شوے دے. مطلب دا دے چه دَ کومو هستیانو نه هغوئ خدایان جوړکړی دی او عبادتونه کوی نو آیا په هغے کښے دا سے هستئ شته چه په بے روحه څیز کښے ژوند واچوی ؟ که چرے دَ یو الله نه بغیر په بل چا کښے دا طاقت نشته ــــ او دَ عربو مشرکانو به خپله دا خبره منله چه دَ الله نه بغیر په هیچا کښے دا طاقت نشته ــــ نو بیا هغوئ دغه نورے هستیانے دَ څه دَ پاره خدایان منی

[22] دا دلیل ساده هم دے او ډیر زورور هم دے. ساده شان خبره ده چه په هغے یو بګ وی، یو بانډ یبه او یو معمولی عقل والا سړے هم په آسانه پوهیدے شی. هغه ساده خبره دا ده چه دَ یو معمولی کور نظام هم په خیریت سره نه شی چلیدے که چرے دَ هغے دوه مالکان وی. او ژوره خبره دا ده چه دَ کائناتو ټول نظام، دَ زمکے دَ تل نه را واخله دَ لرے لرے سیارو پورے، په یو همه ګیر قانون باندے چلیږی. دا نظام دَ یو ساعت دَ پاره هم قایم نه شی پاتے کیدے ترڅو چه دَ دے دَ مختلفو طاقتونو او دَ دے دَ بے حسابه څیزونو په مینځ کښے خاص تناسُب او خاص توازن او دَ یو بل سره خاص تعاون نه وی. او دا ټول هرڅه دَ دے نه بغیر ممکن نه دی چه ترڅو پورے یو مضبوط او زبردست قانون دا مختلف طاقتونه او دا بے شماره څیزونه دَ یو بل سره په یو خاص مناسبت سره په تعاون کولو مجبوره کوی نه. اوس دا تصوّر څنګه کیدے شی چه دَ ډیرو خود اختیاره بادشاهانو په حکومت کښے یو قانون په دومره باقاعدګئ سره اُوچلیږی؟ چه بنه نظم موجود وی نو دا دَ دے خبری ثبوت دے چه ناظم یو دے. په ټول کائنات کښے یو همه ګیر قانون چلیدل پخپله دَ دے خبری ثبوت دے چه اختیارات دَ یو حاکم سره دی او دَ مختلفو حاکمانو سره نه دی. (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، دویم جلد، بنی اسرائیل، حاشیه ۴۷. دریم جلد، المؤمنون حاشیه ۸۵).

[23] ربّ العرش، یعنی دَ کائناتو دَ بادشاهئ دَ تخت مالک.

لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُوْنَ ﴿۲۳﴾ اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ
اٰلِهَةً ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ ۚ هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِيْ ؕ
بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۙ الْحَقَّ فَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۲۴﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا
مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا
فَاعْبُدُوْنِ ﴿۲۵﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ عِبَادٌ

هغه هر څه کوي د هغه نه به د هغې تپوس نه کېږي او د نورو ټولو نه به تپوس کېږي۔
آیا دوی هغه پرېښودے دے او نور خدایان ئې جوړ کړي دي؟ اے محمدؐ دوی ته اووایه چه "راوړئ خپل دلیل، دا کتاب هم موجود دے چه پکښې زما د زمانے د خلقو د پاره نصیحت موجود دے او هغه کتابونه هم موجود دي چه پکښې زما نه د مخکښې خلقو د پاره نصیحت موجود وو."[24] خو په دوی کښې اکثر خلق د حقیقت نه ناخبره دي، ځکه ئې مخ ورنه اړولے دے.[25] مونږ چه ستا نه مخکښې کوم رسول لیږلے دے هغه ته مو دا وحی کړې ده چه زما نه سیوا بل خدائے نشته، نو بس خاص زما عبادت کوئ۔
دوی وائي چه "رحمٰن اولاد لري"،[26] سُبحان الله، هغه (فرښتې) خو بندګان دي چه

[24] او دلته دوه دلیلونه عقلی وو۔ او دا دلیلونه نقلی دی۔ د دے مطلب دا دے چه د نن زمانے پورے څومره کتابونه د خدائے د طرف نه د دُنیا قومونو ته په مختلفو پیغمبرانو نازل شوی دی په هغې ټولو کښې په یو کښې دا خبره اُوښایئ چه د یو الله نه سیوا نور څوک هم خدائے جوړیدے شي او بل چا ته هم د بندګئ او د عبادت حق حاصیدے شي. بیا دا ځنګه مذهب تاسو خلقو جوړ کړے دے چه په تائید کښې ئې نه د عقل نه څه دلیل شته او نه په آسماني کتابونو کواهي کوي.
[25] یعني د نبي خبرې ته چه دوی توجه نه کوي نو د دے سبب عِلم نه دے بلکه جهالت او ناپوهتیا ده۔ د حقیقت نه بې خبره دي ځکه چه د پوهه کونکی خبرې ته توجه نه کوي۔
[26] دلته بیا د فرښتو ذکر دے چه د عربو مشرکانو به ورته د خدائے لونړه ویلے۔ د روستني تقریر نه دا خبره ښکاره ظاهرېږي۔

مُّكْرَمُوْنَ ﴿٢٦﴾ لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ ﴿٢٧﴾ يَعْلَمُ
مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يَشْفَعُوْنَ ۙ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى وَهُمْ
مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ ﴿٢٨﴾ وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّيْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ
فَذٰلِكَ نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ ۭ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٩﴾ ع اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ
كَفَرُوْٓا اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا ۭ وَجَعَلْنَا



عزت ورله ورکړې شوې دې. د هغه نه وړاندې خبره نه کوي او بس د هغه په حکم باندې عمل کوي. څه چې د هغوی په وړاندې دي هغه هم هغه ته معلوم دي او څه چې د هغوی نه شا دي د هغې نه هم هغه خبر دې. هغوی د هیچا سفارش نه کوي بغیر د هغه چا نه چې د هغه په حق کښې په سفارش کولو الله راضي وي، او هغوی د هغه د ویرې نه په یره یره وسي.[٢٦] او که په هغوی کښې څوک اووائي چې د الله نه سوا زه هم یو خدای یم، نو مونږ به هغه له د جهنم سزا ورکوو، زمونږ سره د ظالمانو هم دا بدله ده. ع

کومو خلقو چې (د نبی د خبرو منلو نه) انکار کړې دې آیا هغوی غور نه کوي چې دا ټول آسمانونه او زمکه یو بل سره پیوست وو، بیا مونږ هغه جدا کړل،[٢٧] او د اوبو نه مونږ هر

[٢٦] مشرکانو به د فرښتو عبادت په دوو وجو سره کولو. یو دا چې د هغوی په نزد فرښتې د خدای اولاد وو. دویم دا چې هغوی ئې عبادت ځکه کولو چې د هغوی د پاره خدای ته سفارش اوکړي. وَيَقُوْلُوْنَ هٰٓؤُلَاۗءِ شُفَعَاۗؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ (یونس. آیت، ١٨) - او "مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى" (الزمر آیت ٣) په دې آیتونو کښې د دواړو وجو تردید شوې دې.

د دې خبرې هم د توجه قابل ده چې قرآن عام طور د شفاعت د مشرکانه عقیدې تردید کوي او په دې حقیقت باندې زور ورکوي چې تاسو کومو خلقو ته سفارشیان وایئ د هغوی سره علم غیب نشته، او دې خبرې له هم زور ورکوي چې الله تعالی ته هغه خبرې هم معلومې دي کومې چې د هغوی په وړاندې دي او هغه خبرې ورته هم معلومې دي کومې چې د هغوی نه شا دي. د دې حقیقت د ښکاره کولو مقصد دا دې چې د هغوی په ذهن کښې دا خبره کینې چې چا ته د هر سړي وړاندې روستو او پټ ښکاره حالات معلوم نه وي نو آخر هغه ته به د سفارش کولو مطلق اختیارات څنګه حاصل شي. او دا وجه ده چې که فرښتې دي او که پیغمبران، هر یو به هله شفاعت کولې شي چې الله تعالی ورته د چا په حق کښې د شفاعت کولو اجازت ورکړي. د خپل طرف نه د شفاعت کولو اختیار به د هیچا سره نه وي. او هر کله چې شفاعت اوریدل او نه اوریدل او شفاعت قبلول او نه قبلول بالکل د الله د رضا سره تړلې شوي دي نو بیا به بې اختیاره سفارشي کله د دې خبرې قائل کیدې شي چې سړې دې هغه ته سر ښکته کړي او د هغه نه دې خپل مراد غواړي. (د دې زیاتې تشریح د پاره اوګورئ تفهیم القرآن، دریم جلد، طٰهٰ، حاشیه ٨٥، ٨٦).

مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ۖ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٠﴾ وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ
رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَعَلَّهُمْ
يَهْتَدُونَ ﴿٣١﴾ وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا مَحْفُوظًا ۖ وَهُمْ عَنْ آيَاتِهَا

ژوندے شیز[29] پیدا کړو - آیا دوی (زموږ د پیدا کول) نه منی؟ او موږ په زمکه کښے غرونه
ودرول د پاره د دے چه په دوی باندے اُونه خوزی،[30] او په هغے کښے مو فراخه لارے[31] جوړے کړے، بنایئ چې

مُعۡرِضُوۡنَ ﴿۳۲﴾ وَهُوَ الَّذِیۡ خَلَقَ الَّیۡلَ وَ النَّهَارَ وَ الشَّمۡسَ وَ الۡقَمَرَ ؕ
كُلٌّ فِیۡ فَلَكٍ یَّسۡبَحُوۡنَ ﴿۳۳﴾ وَمَا جَعَلۡنَا لِبَشَرٍ مِّنۡ قَبۡلِكَ الۡخُلۡدَ ؕ

ترجمه: نهٔ ګوري. او هغه هم الله دے چه شپه او ورځ ئے جوړې کړې او نمر او سپوږمۍ ئے پیدا کړلې ټول په یو یو فلک کښے ګرځي.[۳۵]

او اے محمد ﷺ، همیشوالے خو مونږه ستا نه وړاندِ هم دَ یو انسان دَپاره نهٔ دے مقرر کړے.

[۳۵] دَ "کُلٌّ" او دَ "یَسۡبَحُوۡنَ" دَ الفاظو نه دا معلومیږي چه دَ دے نه مراد صرف نمر او سپوږمۍ نهٔ دي بلکه ستورې وغیره ټرهم مراد دي، ځکه خو دَ تثنیے په ځائے دَ جمع صیغه استعمال کړے شوې ده. فَلَك، په عربۍ ژبه کښے دَ آسمان دَ عامو نومو نه یو نوم دے، او دَ فارسۍ ژبه دَ لفظ "چرخ" او "ګردون" هم معنیٰ دے. "ټول په یو یو فلك کښے ګرځي" دَ دے نه دوه خبرې صفا معلومیږي. یوه دا چه دا ټول ستورې په یو "فلك" کښے نهٔ دي بلکه دَ هر یو فلک جُدا جُدا دے. دویمه دا چه فلک څه داسے څیز نهٔ دے چه پکښے دا نمر ستورې سپوږمۍ دَ میخونو پشان ټختي دي او دَ فلک دَ ګرزیدو په وجه دا څیزونه ګرزي، بلکه یو نرم څیز دے، یا دَ هوا او دَ خلا پشان یو څیز دے چه په هغے کښے دا نمر ستورې سپوږمۍ داسے حرکت کوي لکه مهي چه په اُوبو کښے لامبو وهي. (دَ زیاتے تشریح دَپارهٔ اُوګورهٔ تفهیم القرآن څلورم جلد، یٰسٓین، حاشیه ۳۷).

په پخوا زمانه کښے دَ آسمان او دَ زمکے دَ رتق او دَ فتق (یعني دَ یو ځائے والي او دَ جُدا والي)، او دَ اُوبو نه دَ هر ژوندي څیز دَ پیدا کیدو، او دَ ستورو په یو یو فلک کښے دَ ګرزیدو مطلب څه بل څه وُو، په موجوده زمانه کښے دَ علم طبعیات ( Physics )، دَ علم حیاتیات ( Biology ) او دَ علم هیئت Astronomy دَ نوي معلوماتو په وجه دَ دے مطلب تبدیل شوے دے، او نهٔ شو ویلے چه وړاندِ به انسان ته کوم معلومات حاصلیږي چه دَ هغے په وجه به دَ دے الفاظو څه مطلب جوړیږي. بهرحال په موجوده زمانه کښے دا درے واړه آیتونه بالکل دَ نوي معلوماتو مطابق دي.

دلته پورے خبره هم ځان پوهه کول پکار دي چه دَ "وَلَهٗ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ" نه واخله دَ "كَذٰلِكَ نَجۡزِی الظّٰلِمِیۡنَ" پورے ټول تقریر دَ شرك په تردید کښے دے، او دَ "اَوَلَمۡ یَرَ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡۤا" نه واخله دَ "فِیۡ فَلَكٍ یَّسۡبَحُوۡنَ" پورے چه څه فرمائیلے شوي دي په هغے کښے دَ توحید دَپاره اقراري یعني ایجابي Positive دلیلونه ورکړے شوي دي. مدّعا دا ده چه دا کوم نظام کائنات ستاسو په وړاندِ دے، آیا په دے کښے دَ یو الله رب العٰلمین نه سوا دَ بل چا کاریګري ښکاري؟ آیا دا نظام دَ یو نه دَ زیاتو خدایانو په بادشاهۍ کښے جوړیدے شو او په دومره باقاعدګۍ سره چلیدے شو؟ آیا دَ دے حکیمانه نظام په حقله یو عقلمند سړے دا خیال کولے شي چه دا دَ یو لوبغاړي لوبه ده او هغه صرف دَ تفریح دَپاره یو څو ګُډیانے جوړے کړې دي چه څه موده به ورسره لوبے اُوکړي او بیا به ئے هم دغسے ورانے کړي؟ دا ټول هر څه په خپلو سترګو وینئ او بیا هم دَ نبي دَ خبرو منلو نه انکار کوئ؟ تاسو ته وِینئ چه دَ زمکے او

اَفَاۡئِنۡ مِّتَّ فَهُمُ الۡخٰلِدُوۡنَ ﴿۳۴﴾ كُلُّ نَفۡسٍ ذَآئِقَةُ الۡمَوۡتِ‌ؕ وَ
نَبۡلُوۡكُمۡ بِالشَّرِّ وَالۡخَيۡرِ فِتۡنَةً‌ ؕ وَاِلَيۡنَا تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۳۵﴾ وَاِذَا رَاٰكَ
الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اِنۡ يَّتَّخِذُوۡنَكَ اِلَّا هُزُوًا ؕ اَهٰذَا الَّذِىۡ

که چرې ته مړ شوې نو کېنې دا خلق به همیشه ژوندي وُسي؟ هر ذي ساه خاوند له د مرګ څکل شته، او
مونږ ده په ښه او بد وحالاتو کښې ستاسو د تولو آزمېښت کوو، تاسو به آخر مونږ طرف ته واپس کیږئ۔
دا د حق نه منکر خلق چه کله تا اُووینی نو په تا پورې توقې جوړوي۔ وائي چه آیا دا دے هغه سړے

د آسمان یو یو څیز د توحید د هغه نظریے ګواهي کوي کوم چه دا نبي تاسو ته پیش کوي؟ د دے
ښنویا وجود تاسو وایئ چه فَلۡيَاۡتِنَا بِاٰيَةٍ "دا نبي دې څه نښه راوړي" آیا د نبي د دعوتِ توحید
په حقانیت باندې د ګواهئ د پاره دا نښے کافي نه دي؟

۳۶؎ د لته بیا تقریر د هغې کشمکش په حقله شروع کیږي کوم چه د نبي صلی الله علیه وسلم او د هغه
د مخالفینو په مینځ کښې شروع وُو۔

۳۷؎ نبي صلی الله علیه وسلم ته چه به کوم بد بد رد موپېټ کیدلے، او د ډیرو ترهٔ کومے خبري چه
به ورته کیدلے، او چه کومے بد بد دعا ګانې به ورته کیدلے، او د هغه خلاف چه به کوم د قتل سازشونه کیدل،
دا د هغې ټولو یو مختصر جواب دے۔ یو طرف ته د قریشو لوئ لوئ خلق وُو چه همیشه به ئے نبي د دے تبلیغ د
خطرناکو نتیجو نه یرولو، او څېنو مخالفینو خو به دا سوچ کولو چه دے په څه طریقه ختم کړي۔ بل طرف ته چه به
په کوم کور کښې یو تن اسلام قبول کړو نو هغه ټول کور به د هغه دشمن شو۔ د هغې کور ښځو به ورته بد دعائ
کوله او سړو به ورته د ډیرونے خبرے کوله۔ خاص طور د حبشے د هجرت نه روستو په ټول مکه کښې یوه
غوغا جوړه شوې وه څکه چه په مشکله سره به چرته یو کور داسے پاتې شوے وُو چه د هغې نه به یو هلک
یا یوه جینئ هجرت نه وُو کړے۔ دے ټولو خلقو به د نبي صلی الله علیه وسلم په نوم واویلا کوله چه دے
سړي زمونږه کورونه برباد کړي دي۔ د دے ټولو خبرو جواب په دے آیت کښې ورکړے شوے دے۔

۳۸؎ یعني په غم او په خوشحالئ کښې، په فقیرئ او په امیرئ کښې، د غلبے او د مغلوبئ په وخت کښې، د
طاقت او د کمزورئ په حالت کښې، د صحت او د بیمارئ په حالت کښې، غرض دا چه په هر قسم مختلفو حالاتو
کښې ستاسو آزمېښت کیږي، د پاره د دے چه مونږه اُوګورو چه تاسو په ښه حالاتو کښې لوئ چاري او
ظالمان جوړیږئ او که نه، چه خدائے درنه هیریږي او که نه، چه د نفس بندګان کیږئ او که نه، او چه په
بد وحالاتو کښې حوصله بائیلئ او که نه، ذلیله طریقے او ناجائزه لارے اختیاروي او که نه۔ نو هر
عقلمند سړي له پکار دي چه په دے مختلفو حالاتو کښې دوکه نه شي او هر قسم حالت د ځان د پاره آزمېښت
اُوګڼړي او د هغې نه په خیریت سره د وتلو کوشش اُوکړي۔ دا د یو بے وقوفه او ذلیله سړي کار دے چه کله پرې
ښه حالت راشي نو فرعون تری جوړ شي او چه کله پرې بد حالت راشي نو بیا پوزه په زمکه راکاږي۔

يَذْكُرُ اٰلِهَتَكُمْ ۚ وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۶﴾ خُلِقَ الْاِنْسَانُ
مِنْ عَجَلٍ ؕ سَاُورِيْكُمْ اٰيٰتِيْ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ ﴿۳۷﴾ وَيَقُوْلُوْنَ
مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۳۸﴾ لَوْ يَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

چه ستاسو د خدايانو ذکر کوی"؟[39] او د دغوئ خپل حال دا دے چه د رحمان د ذکر نه منکر دی[40]۔
انسان پو تلوار کونکے مخلوق دے[41]۔ ويرزر به زه تاسو ته خپلے نښے اُوښايم، تلوار مه کوئ[42] ـــــ
ـــــ دا خلق وائی "آخر دا دهمکی به کله پوره کيږی که تاسو رښتينی يئ"؟ افسوس چه د کافرانو ته هغه وخت معلوم وے

[39] يعنی په بدئ سره د دغوئ ذکر کوی۔ دلته په دے خبره ځان پوه کول پکار دی چه د دے فقرے نه د دغوئ توقع نه معلوميږی بلکه دا فقره د دغوئ د توتوکولو اصل بنياد ښائی۔ ښکاره خبره ده چه په دے فقره کښے هيڅ توقه نشته۔ کيدے شی چه توقے وشتے به هغوئ په نورو الفاظو سره کولے۔ البته د دے توتوکولو اصلی بنياد دا وُو چه نبیؐ به د دغوئ د خدايانو رد کولو۔

[40] يعنی د بُتانو او د دروغو خدايانو په مخالفت کولو ورله دومره غصه ورځی چه د هغے په بدله کښے په تا پورے توقے خندا کانے کوی، خو دغوئ له خپله په خپل حال باندِ شرم نه ورځی چه د خدائے نه منکر شوی دی او د هغه د ذکر په اوريدو سره ورله غُصّه ورځی۔

[41] په اصل کښے الفاظ "خُلِقَ الْاِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ" استعمال شوی دی چه لفظی ترجمه ئے ده "انسان د تلوار نه جوړ کړے شوے دے، يا پيدا کړے شوے دے" ليکن اصل مقصد دا لفظی معنیٰ نه ده۔ لکه څنګه چه موږ په خپله ژبه کښے وايو چه فلانے سړے د عقل توتړه ده، او فلانے سړے د حرفونو نه جوړ شوے دے، د غه شان په عربئ ژبه کښے وائی چه هغه د فلانی څيز نه پيدا شوے دے، او مطلب ئے دا وی چه فلانے څيز د هغه په طبيعت کښے دے۔ هم دا خبره دلته د "خُلِقَ الْاِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ" په وينا سره ادا کړے شوی ده، په بل ځائے کښے "وَكَانَ الْاِنْسَانُ عَجُوْلًا" "انسان تلوار کونکے دے" (بنی اسراءيل، آيت-۱۱) الفاظ بيان کړے شوی دی۔

[42] د روستنی تقرير نه پخپله معلوميږی چه دلته د "نښو" نه څه مراد دے۔ هغوی چه به په کوم خبرو پورے توقے کولے په هغے کښے عذاب الٰهی، او قيامت او دوزخ هم شامل وُو۔ هغوئ به ويل چه دا سړے هميشه موږه يروی چه که زما د خبرو نه مو انکار اُوکړو نو د خدائے عذاب به دربانديِ راشی، او د قيامت په ورځ به ستاسو دا حالت وی او د دوزخ خشاک به يئ۔ ليکن موږه روزانه انکار کوؤ او ښه خوشحاله ګرزو۔ نه مو عذاب اُوليدو او نه قيامت راځی۔ د دے جواب په دے آيتونو کښے ورکړے شوے دے۔

حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ
يُنْصَرُوْنَ ﴿۳۹﴾ بَلْ تَاْتِيْهِمْ بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ رَدَّهَا
وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿۴۰﴾ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ
بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۴۱﴾ قُلْ مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ
بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ ؕ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۴۲﴾
اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا ؕ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَ اَنْفُسِهِمْ وَلَا هُمْ

چه دوی به نه خپل مخونه د وُور نه بچ کولے شی او نه به خپلے شاګانے، او نه به دوی ته د چرته نه امداد ور رسیدے شی. هغه بلا به ناساپه راځی او دوی به یودم داسے راګیرکړی چه نه به هغه دفع کولے شی او نه به دوی ته د یو ساعت د پاره مهلت مِلاوُشی. تاوقے ستانه مخکښے هم په رسولانو پورے شوی دی، خو چا چه په هغوی پورے توقے کولے هغوی مخپله د هغه څیز په چکر کښے راغلل په کوم څیز پورے چه یئے توقے کولے ع

اے محمد، دوی ته اُووایه، "څوک دے چه د شپے یا د ورځے ۴۳ تا سو د رحمٰن نه بچ کولے شی؟" خو دوی د خپل رب د نصیحت نه مخ آړوی. آیا د دوی داسے خدایان شته چه زمونږ په مقابله کښے د دوی حمایت اُوکړی؟ هغوی خو نه مخپله خپل مدد کولے شی او نه زمونږه ملګرتیا

۴۳ یعنی که چرے ناساپه د ورځے یا د شپے په څه وخت کښے د خدائے عذاب په تاسو راشی نو آخر هغه څوک دے چه زور ور حمایتی دے چه د هغه نه به تاسو بچ کړی؟

مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ ﴿۴۳﴾ بَلْ مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى طَالَ عَلَيْهِمُ
الْعُمُرُ ۗ اَفَلَا يَرَوْنَ اَنَّا نَاْتِى الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا ۗ اَفَهُمُ
الْغٰلِبُوْنَ ﴿۴۴﴾ قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ بِالْوَحْيِ ۖ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ

هغوئ ته حاصل ده. اصل خبره دا ده چه دے خلقو ته او د دوئ پلرونو نیکونو ته مونږه د ژوند بنهٔ بنهٔ سامانونه ورکول او تر دے پورے چه په دوئ ډیره موده تیره شوه.[۴۴] خو آیا دوئ وینی نه چه مونږه زمکه د مختلفو طرفونو نه راکمه وو؟[۴۵] نو آیا بیا کِنی دوئ به غالب شی؟[۴۶] دوئ ته اُووایه چه "زهٔ خو د وحی په ذریعه تاسو له خبردارے درکوم" ــــــ خو کانړه آوازونهٔ اوری

[۴۴] یعنی زمونږه د دے مهربانئ او د پالنے په وجه دوئ په دے دوکه کښې پراتهٔ دی چه دا هر څهٔ کِنی د دوئ خپل ذاتی حق دے او هیڅوک دا سے نشته چه دا به د دوئ نه واخلی. دا خوشحالیانے او سره ریانے دوئ همیشه کړلی دی او دا سے مست شوی دی چه دا خیال ئے هیڅ ونه راځی چه پره کښ حد ائے هم شته په هغه د دوئ د قسمتونو جوړولو او د را نولو قدرت لری.

[۴۵] دا خبره د دے نه مخکښے د سورة رعد په آیت ۴۱ کښے تیره شوی ده او هلته مونږه د دے تشریح هم کړې ده. (اُوګوره حاشیه ۶۰). دلته د وړاندِ روستو عبارت په لحاظ سره د دے یوه بله معنیٰ هم ده هغه دا چه په زمکه کښے هر طرفته یو غالب طاقت بادشاهی په نظر راځی. موږه وینو چه کله د قحط په شکل کښے، کله د سیلاب په شکل کښے، کله د زلزلے په شکل کښے او کله په بل شکل کښے څه دا سے بلا راشی چه د انسان ټول کوششونه په اُبو وبیی. په زرګونو او په لکونو خلق مرهٔ شی، کلی تباه شی، شنهٔ شنهٔ فصلونه برباد شی، پیدا وار کم شی، په تجارتونو کښے نقصان راشی. غرض دا چه د انسان د ژوند په وسائلو کښے کله د یو طرف نه کمے راځی او کله د بل طرفه. او انسان که خپل ټول زور اُولګوی خو بیا هم دغه نقصانونه نهٔ شی منع کولے. (د زیاتے تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد، السجده، حاشیه ۳۳).

[۴۶] یعنی هر کله چه د دوئ د ژوند ټول وسیلے زمونږ په لاس کښے دی، چه کوم څیز کمول غواړو هغه کمو او چه کوم څیز منع کول غواړو هغه منع کوو، نو آیا دوئ دومره طاقت لری چه زمونږ په مقابله کښے غالب راشی او زمونږ د ګرفت نه ځان بچ کړی؟ آیا دا آثار دوئ له دا تسلی ورکوی چه ستاسو طاقت او ستاسو ژوند همیشه دے او هیڅوک نشته چه تاسو به اُونیسی.

إِذَا مَا يُنذَرُونَ ﴿٤٥﴾ وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ
لَيَقُولُنَّ يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٤٦﴾ وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ
الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ
خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ ﴿٤٧﴾ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ وَ
هَارُونَ الْفُرْقَانَ وَضِيَاءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾ الَّذِينَ

---

څه وخت چه هغوئ له خبرداريه ورکړه کيږي. او که چرته ستا د رب عذاب ذره شان دوئ ته ورسي[٤٣] نو
بيا چغې وهي چه هائې زمونږه کمه نصيبه، بے شکه مونږه په خطا وو.
د قيامت په ورځ به مونږه صحيح تول والا تلې کيږدو، بيا به په هيڅ يو بندي د ذرې هومره ظلم نه وي
چه د چا د اوري د دانے هومره هم څه عمل وي هغه به راوړاندې کړو. او د حساب نکولو د پاره مونږه کافي يو[٤٤]
اول مونږه موسىٰ او هارون له فرقان او رڼا او ذکر[٤٥] ورکړے وو د هغه پرهيزګارو خلقو د بهبوديٰ د پاره

---

[٤٣] هغه عذاب چه هغې ته هغوئ تلوار کوي او د کوم په باره کښې چه هغه ته لا د هغه عذاب کمه د ولے هغه له راځي

[٤٤] د تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن دويم جلد، الاعراف، حاشيه ٨-٩ - زمونږ د پاره په دے خبره پوهيدل ګران دي چه دا به کوم قسم تلهٔ وي. بهرحال هغه به يوه داسے تلهٔ وي چه د مادي څيزونو د تللو په ځائے به د انسان اخلاقي اعمال او د هغه نيکي او بدي تلي، او په صحيح تول سره به دا معلوموي چه په اخلاقي لحاظ سره د انسان څه مرتبه ده - چه نيک دے نو څومره نيک دے او چه بد دے نو څومره بد دے
الله تعالىٰ د دے د پاره زمونږ په ژبه کښې د نورو الفاظو په ځائے لفظ "تلهٔ" يا خو په دے وجه استعمال
کړے دے چه د دے شکل به د "تلې" پشان وي او يا ئې په دے وجه استعمال کړے دے چه د انسان په ذهن
کښې دا خبره کينوي چه لکه څنګه تلهٔ صحيح تول کوي او د دوو څيزونو د وزن فرق ښائي دغه شان به په آخرت
کښې د عملونو تلهٔ د هر انسان عمل صحيح صحيح تلي او د به معلوموي چه نيکي ئې زياته ده او که بدي.

[٤٥] د دے ځائے نه د پيغمبرانو ذکر شروع کيږي او مسلسل د ډيرو پيغمبرانو د ژوند تفصيلي يا مختصرو
واقعاتو ته اشاره کيږي. دا ذکر چه په کوم عبارت کښې راغلے دے چه په هغې سره غور اوکړے نو صفا
معلوميږي چه د دے نه دا لاندينئ خبري په ذهن کښې کينول مقصد دي:
اول دا چه پخواني ټول پيغمبران هم انسان وو، هغوئ څه نا آشنا مخلوق نه وو. په تاريخ کښې دا څه
نوې واقعه نه ده چه ګني په اول ځل يو بشر له پيغمبري ورکړے شوې ده -
دويم دا چه پخواني پيغمبران هم د هغې کار د پاره راغلي وو کوم کار چه اوس محمد صلى الله عليه وسلم کوي
هم دا د هغوي مشن وو او هم دا د هغوئ تعليم وو.

يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ ﴿۴۹﴾ وَ
هٰذَا ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ اَنْزَلْنٰهُ ؕ اَفَاَنْتُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۵۰﴾
وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ ﴿۵۱﴾

الربع

په نزوې به ليدو د خپل رب نه يريږي او چه د هغوی سره (د حساب کتاب) د هغه وخت ډيره وي. او اوس دا برکتي "ذکر" مونږه (ستاسو د پاره) نازل کړے دے. نو آيا تاسو د دے د قبلولو نه انکاريان يئ؟ د هغه نه هم مخکښې مونږه ابراهيم ته بنه فهم فکر ورکړے وو او مونږه هغه ښه پيژندو ۵۳

ديره دا چه د پيغمبرانو سره د الله تعالیٰ خاص معامله وي. عڼ غڼ مصيبتونه په هغوی راغلی دی. په ګلونو ګلونو ئے په مصيبت کښے ژوند تير کړے دے، ذاتي مصيبتونه پرهم راغلی دی او د مخالفينو د طرفه پرهم راغلی دی، خو آخر دا چه د الله نصرت او تائيد هغوی ته حاصل شوے دے، الله تعالیٰ خپل خاص فضل په هغوی کړے دے، د هغوی دعاګانے ئے قبول کړی دی، د هغوی تکليفونه ئے لرے کړی دی، د هغوی مخالفان ئے ذليله کړی دی او د هغوی مدد ئے په معجزانه طريقو سره کړے دے.

ځلورم دا چه هغوی د الله تعالیٰ محبوب او مقبول بندګان وو، او د الله تعالیٰ د طرفه هغوی ته لوئ لوئ طاقتونه حاصل وو، خو کمه هرڅه با وجود هغوی بندګان او انسانان وو. هيڅ له يکښې د خدائي درجه حاصله نه وه. په رائے پيش کولو او په فيصلے کولو کښے د هغوی نه غلطي هم کيدله. بيمار کيدل به هم. آزمينتونه به پرهم کيدل. آن تردے پورے چه خطا به ترې هم کيدله او په هغے باندې به د الله تعالیٰ د طرفه نه ګرفت هم کيدو.

۵۰ ديره وار نه لفظونه د تورات په تعريف کښے استعمال شوي دی. يعنی هغه د حق او د باطل په مينځ کښے فرق ښودونکے وو. هغه انسان ته د نيغے لارے ښودلو د پاره رڼا وه، او هغه د آدم اولاد ته د هير شوي سبق د ورياد ولو نصيحت وو.

۵۱ يعنی اګر چه هغه د ټولو انسانانو د پاره راليږلے شوی وو، خو عملاً ترې فائده هغه خلقو اخستلے شوه چه په کوموکښے دا صفتونه وو.

۵۲ چه اوس ئے پره ذکر شوے دے، يعنی قيامت.

۵۳ "فهم فکر" مونږ د "رشد" ترجمه کړی ده چه معنی ئے ده "په صحيح او په غلط کښے تميز کول او د صحيح خبره باندې عمل کول او د غلطے نه ځان ساتل". د دے مفهوم په لحاظ سره د "رشد" ترجمه راست روي يعنی په صحيح لاره هم کيدے شي. ليکن لفظ "رشد" معروف په صحيح لاره باندې تللو ته نه وائي بلکه هغه صحيح تګ ته وائي چه هغه د صحيح فکر او د عقل سليم په نتيجه کښے اختيار شوی وی، دا وجه ده چه مونږه لفظ "فهم فکر" د "رشد" مفهوم ته نردے ګڼلے دے.

"ابراهيم ته مو فهم فکر ورکړو" يعنی کوم په هغه چه هغه ته حاصل وه هغه مونږه ورکړی وه.

إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا هَٰذِهِ التَّمَاثِيلُ الَّتِي أَنتُمْ لَهَا

هغه وخت را یاد کړه کله چه هغه خپل پلار او خپل قوم ته اُووې چه "دا څنګه شکلونه دي چه تاسو[۵۳]

"مونږ هغه بنه پیژندو" یعنی مونږ ورته بخشش څه په رند ونه وُو کړے. مونږ ته معلوم وُو چه هغه څنګه سړے دے، نو ځکه ورته مونږه دا بخشش اُوکړو. اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ "الله بنه پیژنی چه خپل رسالت چاته حواله کړي" (سورة الانعام آیت ۱۲۴) - په دے کښے یوه باریکه شان اشاره ده هغې اعتراض ته کوم چه به دَ قریشو سردارانو په نبی صلی الله علیه وسلم باندے کولو. هغوئ به وئیل چه آخر په دے سړي کښے څه خوبي ده چه الله مونږه پرېښودو او خپل رسالت ئے دهٔ له ورکړو؟ دَ دے جواب دَ قرآن مجید په مختلفو ځایونو کښے په مختلفو طریقو سره ورکړے شوے دے دلته صرف په دے باریکه اشاره باندے اکتفا اُوشوه چه دا سوال خو دَ ابراهیم په حقله هم کیدے شو، دا پتوس کیدے شو چه دَ عراق په ټول وطن کښے یوا براهیم ولے پیغمبر جوړ کړے شو، لیکن مونږ ته معلومه وه چه په ابراهیم کښے څه قابلیت وُو، ځکه خو موهغه دَ ټول قوم نه غوره کړو او دا نعمت مو ورله ورکړو.

دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دَ پاک سیرت په حقله بحث دَ دے نه مخکښے دَ سورة بقرے په آیتونو ۱۲۴ تا ۱۴۱ - ۲۵۸ - ۲۶۰ کښے، دَ سورة الانعام په آیتونو ۷۴ تا ۸۱ کښے - (دوېم جلد)، دَ سورة هود په آیتونو ۶۹ تا ۷۶ کښے، دَ سورة ابراهیم په آیتونو ۳۵ تا ۴۱ کښے، دَ سورة الحجر په آیتونو ۵۱ تا ۶۰ کښے، دَ سورة النحل په آیتونو ۱۲۰ تا ۱۲۳ کښے تیر شوے دے، په هغې باندے یو نظر اچول فائده مندوي.

[۵۴] کومه واقعه چه وراندے ذکر کیږي دَ هغې دَ لوستلو نه مخکښے دا خبره په ذهن کښے تازه کړئ چه دَ قریشو خلق دَ حضرت ابراهیم اولاد وُو، کعبه دوئ جوړه کړي وه، کعبه دَ دوئ په وجه دَ ټول عرب مرکز وُو او قریش په دے وجه عزتمند وُو چه دوئ دَ ابراهیم اولاد دي او دَ ابراهیمي کعبے خادمان دي. نن په دے زمانه کښے او دَ عربو نه په دے لرے لرے ماحول کښے خو دَ حضرت ابراهیم دا قیصه هسے یوه عبرتناکه تاریخي واقعه ښکاري، لیکن په کومه زمانه او ماحول کښے چه اول اول دا قیصه بیان کړے شوي وه هغه په خیال کښے راولئ نو بیا به درته معلومه شي چه دا دَ قریشو په مذهب او دَ هغوئ دَ مشرئ په جرړو باندے یو سخت ګوزار وُو.

عٰكِفُوْنَ ﴿۵۲﴾ قَالُوْا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ ﴿۵۳﴾ قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ
اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۵۴﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ اَمْ اَنْتَ
مِنَ اللّٰعِبِيْنَ ﴿۵۵﴾ قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الَّذِيْ
فَطَرَهُنَّ ۖ وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۵۶﴾ وَتَاللّٰهِ لَاَكِيْدَنَّ
اَصْنَامَكُمْ بَعْدَ اَنْ تُوَلُّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۵۷﴾ فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا اِلَّا كَبِيْرًا

ځانونه کانړه کوئ"؟ هغوئ ورته په جواب کښې اُووې "مونږه خپل پلرونه نیکونه د دوئ په عبادت کښې اخته موندلی وو." هغه ورته اُووې "تاسو هم بې لارې یئ او ستاسو پلرونه نیکونه هم په ښکاره ګمراهئ کښې پراته دو." هغوئ ورته اُووې "آیا ته مونږ ته خپل اصلی خیالات پیش کوې او که ټوقې کوې؟"[۵۵] هغه جواب ورکړو "نه، بلکه په حقیقت کښې ستاسو رب هم هغه دې چه د زمکې او د آسمانونو رب دې او د دې پیدا کوونکې دې. په دې باندې زه ستاسو په مخکښې ګواهی کوم. او په خدائ م د قسم دې چه ستاسو په غیر موجودګئ کښې به زه ستاسو بتانو خبر ضرور واخلم."[۵۶] چنانچه هغه هغه بتان ټوټې ټوټې کړل[۵۷] او صرف یو غټ بُت ئې ترې پرېښودو

۵۵ د دې فقرې لفظی ترجمه به داوی چه "آیا ته زمونږ په مخکښې حق پیش کوې یا لوبې کوې" لیکن اصلی مطلب هغه دې کوم چه برِه په ترجمانئ کښې بیان کړې شوې دې. د دې خلقو د خپل دین په حق والی دومره یقین وُو چه د هغوئ په خیال کښې هم دا نه راتلله چه څوک به په رښتیا سره څوک دا خبرې کولې شی څکه هغوئ اُووې چه آیا دا ته هسې ټوقې ټقالې کوې یا واقعی ستا هم دا خیالات دی.

۵۶ یعنی که چرې ستاسو په دلیل سره په خبره نه پوهیږئ نو زه به درته عملاً دا اُوښایم چه دا بے وَسه دی، د دوئ سره هیڅ اختیارات نشته او د دوئ نه خدائ جوړول غلطه خبره ده. پاتې شوه دا خبره چه عملاً به هغه دا خبره څنګه ثابتوی، نو په دې موقع حضرت ابراهیمؑ د دې خبرې تفصیل بیان نه کړو.

۵۷ یعنی هر کله چه ټول منبوران او خادمان نه وُو، نو حضرت ابراهیمؑ د دې موقعې نه فائده واخستله او د هغوئ مرکزی بت خانې ته ورننوتو او ټول بُتان ئې مات کړل.

لَهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ﴿٥٨﴾ قَالُوا مَنْ فَعَلَ هٰذَا بِآلِهَتِنَا إِنَّهُ
لَمِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿٥٩﴾ قَالُوا سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُ إِبْرٰهِيمُ ﴿٦٠﴾
قَالُوا فَأْتُوا بِهِ عَلٰى أَعْيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ ﴿٦١﴾ قَالُوا
ءَأَنْتَ فَعَلْتَ هٰذَا بِآلِهَتِنَا يٰإِبْرٰهِيمُ ﴿٦٢﴾ قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ
هٰذَا فَسْئَلُوهُمْ إِنْ كَانُوا يَنْطِقُونَ ﴿٦٣﴾ فَرَجَعُوا إِلٰى أَنْفُسِهِمْ

دَدے غرض دَپاره چه شاید هغوی دَ هغهٔ طرفته رجوع اوکړي۵۸. (هغوی چه راغلل او دَبتانو دا حال ئے اُولیدو نو) دے وئیل "زمونږ دَ خدایانو سره دا کار چا اُوکړو؟ دا خو ډیر غټ ظالم دَے" (چا پکښے) اُووے "مونږ او ریدلی دی چه یو ځلمے دَ دوئ ذکر کوو، چه دَ هغهٔ نوم ابراهیمٔ دے"۔ هغوی اُووے "نو هغهٔ نیوئ اوډ تولو په مخکښے ئے راولئ چه خلق ئے اُووینی (چه دهٔ لتحکه سزا ورکړه کیږی)"۔ (ابراهیمٔ چه راغے نو) هغوی ترې تپوس اُوکړو "اے ابراهیمٔ، آیا تا زمونږ دَ خدایانو سره دا سلوک کړے دَے؟" هغهٔ ورته اُووے "بلکه دا ټول هرڅه دَ دوئ دے سردار کړی دی، دَ دوئ نه تپوس اُوکړئ که دوئ خبرې کوی۵۹"۔ دَ دے جواب په اوریدو سره هغوی دَ خپل ځان سره فکر اُوکړو او (په خپلو زړونو کښے)

۵۸ـــ دَ هغهٔ طرفته "دا اشاره غټ بُت ته هم کیدے شی او ابراهیمٔ ته هم۔ که بُت ته اشاره وی نو دا ئے چه دَ حضرت ابراهیمٔ دَ طرفنه دَ هغوی په عقیده باندے یو طنز وی۔ یعنی که دوئ واقعی دے تحت ایمان وائی نو دوئ له پکار دی چه په دے غټ خدائے باندے شک راشی او دا گمان اُوکړی چه شاید دا غټ خدائے به دَ وړو خدایانو نه په څه خبره خفه شوے وی او ټول به ئے مات کړی وی۔ او یا دا چه دوئ دَ دَغهٔ نه دا تپوس اُوکړی چه جناب! ستا په موجودگئ کښے دا څه اُوشو؟ دا کار چا اُوکړو؟ او تا ولے نه منع کولو؟ ــــ او که دا اشاره ابراهیمٔ ته وی نو دَ دے کار کولو نه دَ حضرت ابراهیمٔ مطلب دا وُو چه کله دوئ دَ خپلو بتانو دا حال اُووینی نو شاید چه زما طرفته به ئے فکر راشی او زما نه به تپوس اُوکړی نو بیا به ما ته دَ صفا صفا خبرو کولو موقع مِلاؤ شی۔

۵۹ـــ دا که چه دَ حضرت ابراهیمٔ دَ ذرے خبره وه، ځکه چه هغهٔ هم دا غوښتل چه خبره دِ په ټوله کلی دَ مشرانو او عالمانو په مخکښے نه وی بلکه دَ عامو خلقو په مخکښے دِ وی چه ټول ئے اُووینی چه دا کوم بُتانی دوئ دَ خپلو حاجتونو پوره کولو دَپاره جوړ کړی دی دا څومره بے وسه دی او په خپله دا عالمان او خادمان ئے څه کړی۔ په مه طریقه دَ دے بتانو دَ خادمانو نه هم هغه غلطی اُوشوه کومه چه دَ فرعون نه شوی وه۔ فرعون هم چه هرکله دَ حضرت موسیٰ سره دَ جادوگرانو مقابله کوله نو دَ ټول وطن نه ئے خلق راجمع کړے وُو او دوئ هم دَ حضرت ابراهیمٔ دَ مقدمے اوریدو دَپاره ټول عوام راجمع کړو۔ هلته حضرت موسیٰ ته دا موقع مِلاؤ شوه چه خلقو ته دا ثابته کړی چه ما کوم څیز راوړے دے دا جادو نهٔ دے بلکه معجزه ده۔ او دلته حضرت ابراهیمٔ ته دَ شمنانو په خپله دا موقع

ورکړه چه هغه د عوامو په مخکښې د هغوی د دوکې راز ښکاره کړي.

۶۰ د دې آخري فقرې نه ښکاره معلومیږي چه په دې فقره کښې حضرت ابراهیمؑ کومه خبره کړې وه چه د اُبتانو ماتونکی د ښاد ډلې نه ښاد شي، هغه مت مات کړي دي نو د دې نه د هغه مقصد دروغ ویل نه وو، بلکه هغه پخپلو مخالفینو باندې حجت تمامول غوښتل. دا خبره هغه ځکه کړې وه چه هغه خلق پخپله اقرار اُوکړي چه زمونږ دا خدایان بالکل بې وسه دي او د دوی نه د څه کار کولو توقع نه شي کیدې. په داسې موقعو کښې چه یو سړے د دلیل پیش کولو په خاطر کومه خبره کوي نو هغې ته دروغ نه شي ویلے کیدے، ځکه چه نه هغه پخپله د دروغو په نیت دا خبره کوي او نه ئې مخاطب دروغ ګنړي. ویونکے ئې د دلیل تمامولو د پاره وائي او اوریدونکے ترې هم دغه معنی اخلي.

د بدقسمتۍ د وجه نه د حدیث په یو روایت کښې دا خبره راغلې ده چه حضرت ابراهیمؑ په ژوند کښې درې ځله دروغ ویلي دي. په هغې کښې یو "دروغ" خو دا دی، او دویم "دروغ" په سورة صافات کښې د حضرت ابراهیمؑ د دې بیان دے چه اِنِّیْ سَقِیْمٌ او دریم "دروغ" دا دی چه هغه خپلې ښځې ته خور ویلي دي چه ذکر ئې په قرآن کښې نشته بلکه د بائیبل په کتاب پیدائش کښې ئې ذکر راغلے دے. یوه ډله د روایت پرستۍ په زور دې حد ته رسیدلې ده چه هغوی ته د بخاری او د مسلم د یو څو راویانو صداقت زیات خوږ دے او د دې خبرې هیڅ پرواه نه لري چه په دې سره خو په یو نبي باندې د دروغو الزام راځي. دویمه ډله د دغه یو روایت په وجه د حدیثو ټول ذخیره رد کوي او وائي چه دا ټول حدیثونه اُوغورزوئ ځکه چه په دې کښې داسې داسې غلط روایتونه راغلي دي. حالانکه نه دا ضروري ده چه سړے په یو روایت یا په یو څو روایتونو کښې څه خرابي اُووینې او د هغې په وجه ټول روایتونه بې اعتباره اُوګنړي، او نه دا خبره ضروري ده چه د علم حدیث په لحاظ سره د یو روایت سند مضبوط وي نو که د هغې متن هر څومره غلط وي خو په ړند و سترګو به هغې ته صحیح ویلے کیږي. که سند بند قوي او اعتباري وي خو بیا هم ډیر اسباب داسې کیدے شي چه د هغې په وجه یو متن په غلط شکل کښې رانقل کړے شي او داسې غلطې خبرې پکښې رانقل کړے شي چه هغه د نبي صلی الله علیه وسلم د شان سره نه ښائي. دا وجه ده چه د سند سره سره متن هم کتل ضروري دي، او که په متن کښې واقعي څه خرابي وي نو بیا خامخا هغې ته صحیح ویل ضروري نه دي.

په دې کوم حدیث کښې چه د حضرت ابراهیمؑ درې "دروغ" بیان کړے شوي دي، دا حدیث صرف په دې وجه قابل اعتراض نه دے چه د دې په وجه یو نبي دروغجن کیږي. بلکه په دې وجه هم غلط دے چه په دې کښې د کومو دریو واقعاتو ذکر شوے دے هغه درې واړه د ذکر کولو مقام لري. په دې کښې خو یو "دروغو" حال اُوس تاسو لیدلے شو چه یو معمولي عقل والا انسان هم د حضرت ابراهیمؑ دې قول ته "دروغ" نه شي ویلے نو یو پیغمبر به ورته څنګه "دروغ" اُووائي. پاتې شوه د "اِنِّیْ سَقِیْمٌ" والا واقعه نو هغه خو تر هغې دروغ ثابتیدے نه شي ترڅو چه دا ثابته شوې نه وي چه حضرت ابراهیمؑ واقعي په هغه وخت کښې دروغ جوړ کړي وو او هغه ته هیڅ شکایت نه وو. دا خبره نه په قرآن کښې چرته بیان شوې ده او نه د دې روایت نه علاوه په یو بل معتبر روایت کښې د دې ذکر راغلے دے. اُوس پاتې شوه خپلې ښځې ته د خور ویلو واقعه نو دا پخپله دومره بې مطلبه ده چه که هر څوک ئې دا وري نو دا به وائي چه دا هیڅکله حقیقت کیدے نه شي. دا قیصه د هغه وخت ده کله چه حضرت ابراهیم د خپلې ښځې حضرت سارا سره مصر ته تلے وو. د بائیبل

فَقَالُوْٓا اِنَّكُمْ اَنْتُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۶۴﴾ ثُمَّ نُكِسُوْا عَلٰى رُءُوْسِهِمْ ۚ لَقَدْ
عَلِمْتَ مَا هٰٓؤُلَآءِ يَنْطِقُوْنَ ﴿۶۵﴾ قَالَ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ
مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْـًٔا وَّلَا يَضُرُّكُمْ ﴿۶۶﴾ اُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ

اُوده" واقعي تاسو پخپله ظالمان يئ". خو بيا د هغوی راځے بدله شوه او ده وئيل" تا ته معلوم ده
چه دوی خبرې نه کوی". ابراهيمؑ اُوده" نو آيا بيا تاسو الله پرېږدئ او د هغه څيزونو عبادت کوئ چه
نه درته نفع رسوی شی او نه نقصان. لعنت دې وی په تاسو باندې او ستاسو په معبودانو باندې چه تاسو الله پرېږدئ

د بيان مطابق په هغه وخت کښے د حضرت ابراهيمؑ عمر پنځه اويا کاله او د حضرت ساره عمر د پنځو شپيتو
کالو نه څه زيات وو. او په دغه عمر کښه د حضرت ابراهيمؑ سره دا فکر وو چه د مصر بادشاه به د دے ښائست
بی بی په وجه دے قتل کړی او دا ښائسته بی بی به ترې واخلی. نو خپله ښځے ته ئے اُوده چه کله مصريان تا اُونيسی
او بادشاه له دې يوسی نو ته هم وايه چه دا م ورور دے او زه به هم دا وايم چه دا م خور ده نو زه خو به تر پے شم
(پيدائش، باب ۱۲) په حديث کښے چه کوم روايت دے او په هغے کښه چه د حضرت ابراهيمؑ په حقله کوم
دريم " دروغ " دی د هغے بنياد په دے لغو اسرائيلی روايت باندې دے. آيا دا څه د عقل خبره ده چه د کوم
حديث په متن کښے دا سے غلطے خبری شاملے وی هغه دې هم سو نړه په نبی صلی الله عليه وسلم پورې منسوب
په دے وجه ورو تړو چه د دے سند صحيح دے؟ دغه شان د اعتدال د حد نه په اوړيدو سره
معامله خرابه شی او خبره هغه حد ته ورسی کومه چه منکرين حديث کوی (د زياتے تشريح د پاره
اُوګورۀ زما کتاب "رسائل ومسائل"، دويم جلد، ص ۳۵ تا ۳۹).

لاله په اصل کښے نُكِسُوْا عَلٰى رُءُوْسِهِمْ (اُلټا کړه شو په خپلو سرونو باندې) فرمائيلے شوی
دی. ځينو خلقو د دے نه دا مطلب اخستلے دے چه هغوی د شرم نه سر ښکته کړو. ليکن د دے موقعه د
مناسبت سره دا معنیٰ صحيح نه ښکاری. دلته صحيح مطلب دا دے چه د حضرت ابراهيمؑ جواب ئے
کله واوريدو نو اول ئے په خپلو زړونو کښے سوچ اُوکړو چه واقعی ظالمان خو تاسو پخپله يئ، دا څنګه
بے وسه او بے اختياره خدايان موجوړ کړی دی چه پخپله دا هم نه شی وئيلے چه په هغوی څه
تير شو او چا اُووهل نو چه پخپله ځان نه شی بچ کولے نو زمونږ به څه امداد اُوکړی. ليکن
د دے نه روستو فوراً په ضد کښے راغلل او عقل ئے اوړته شو. اول ئے دماغو صحيح سوچ کولو ليکن
بيائے نا ساپه اُلټا سوچ شروع کړو.

دُوْنِ اللّٰهِ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٧﴾ قَالُوْا حَرِّقُوْهُ وَانْصُرُوْٓا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ
كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿٦٨﴾ قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿٦٩﴾
وَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَخْسَرِيْنَ ﴿٧٠﴾ وَنَجَّيْنٰهُ وَلُوْطًا
اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿٧١﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

او د هغوئ عبادت کوئ. آیا تاسو لږ شان عقل هم نه لرئ؟" هغوئ اُووئے "اُوسوزوئ دے او مدد اُوکړئ د خپلو خدایانو که تاسو څه کول غواړئ." مونږه اُووئے "اے وُوره، یخ شه او سلامتیا والا شه په ابراهیم باندې"[۶۲]، هغوئ غوښتل چه د ابراهیم سره بدي اُوکړي خو مونږه هغوی ټول ناکام کړل. او مونږه هغهٔ او لوط[۶۳] هغې زمکے ته بچ اُوویستل چه په هغې کښے مونږه د ټولے دُنیا د خلقو دپاره برکتونه ایښودلی دی[۶۴]. او مونږه هغهٔ له اسحاق ورکړو او یعقوب پرے

[۶۲] د الفاظو نه او د وړاندې روستو عبارت نه ښکاره معلومیږي چه هغوئ واقعی په دے خپله فیصله باندې عمل اُوکړو، او کله چه وُور تیار شو او هغوئ ورته حضرت ابراهیم ورګوزار کړو نو بیا د هغې الله تعالیٰ وُور ته حکم اُوکړو چه په ابراهیم باندې یخ شه او بے ضرره شه. پس په قرآن کښے چه کومے معجزه بیان کړے شوې دي په هغے کښے دا هم یوه ښکاره معجزه ده. چه څوک د معجزو تاویلونه صرف په دے وجه کوي چه د هغوئ په نزد الله تعالیٰ د عام معمول (Routine) نه بدل شه کار نه شي کولے نو آخر هغوی الله تعالیٰ مَنی ولے. او که څوک په دے وجه تاویلونه کوي چه د نن زمانے عقل پرست خلق د معجزو منلو ته تیار نه وي، نو مونږ د هغه نه دا پوښتنه کوو چه بے د الله بندهٔ په تا باندې دا څیره چا فرض کړې ده چه هغوئ خامخا معجزو منلو ته تیار کړئ؟ څوک چه په خپل اصلي حالت کښے د قرآن منلو ته تیار نه دے نو هغه په خپل حال باندې پریږده او دا کوشش مه کوه چه د هغه د منلو دپاره قرآن د هغه د خیالاتو مطابق پیش کړے شي. حکه چه قرآن په خپله د دے نه منع کوي چه هغه د نورو نظریاتو مطابق پیش کړے شي. آخر دا کوم قسم تبلیغ دے او کوم عقلمند سړے دے ته جائز ویلے شي. (د زیاتے تشریح دپاره اُوګوره سورۃ عنکبوت حاشیه ۲۹).

[۶۳] د بائیبل د بیان مطابق د حضرت ابراهیم دوه رونړه وُو، نحور او حاران. حضرت لوط د حاران ځوئ وُو (پیدائش باب ۱۱، آیت ۲۶). په سورۃ عنکبوت کښے چه د حضرت ابراهیم کوم ذکر راغلے دے د هغې نه مستفاد معلومیږي چه د هغه د قوم نه صرف یو حضرت لوط په هغهٔ باندې ایمان راوړے وُو. (آیت ۲۶).

[۶۴] یعنی د شام او د فلسطین په زمکه. د دے برکتونه مادي هم دي او روحاني هم. په مادي حیثیت سره هغه د دُنیا د ټولو نه زرخیزه علاقه ده. او په روحاني حیثیت سره هغه د دوو زرو کالو پورے د پیغمبرانو د راتګ علاقه وه، د دنیا په بله علاقه کښے دومره ډیر پیغمبران نه دي راغلي.

نَافِلَةً ؕ وَكُلًّا جَعَلْنَا صٰلِحِيْنَ ﴿۷۲﴾ وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا
وَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءَ الزَّكٰوةِ ۚ
وَكَانُوْا لَنَا عٰبِدِيْنَ ﴿۷۳﴾ وَلُوْطًا اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا وَّنَجَّيْنٰهُ
مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ تَّعْمَلُ الْخَبٰٓئِثَ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ
سَوْءٍ فٰسِقِيْنَ ﴿۷۴﴾ وَاَدْخَلْنٰهُ فِيْ رَحْمَتِنَا ؕ اِنَّهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۷۵﴾

سوائی، او هر یو موصالح کړو. او مونږ هغوی اِمامان کړل چه زمونږ په حُکم سره به ئے د دین لاربودله او مونږه هغوی ته د وحی په ذریعه د نیک کارکولو د مونځ قائمولو او د زکوٰة ورکولو هدایت اوکړو او هغوی زمونږ عبادت کونکی وُو [۶۶]

او لُوط ته مونږ ؤ حکم او عِلم ورکړو [۶۷] او هغه مو د هغې کلی نه بچ اُوویستو چه د هغې خلقو به بدکاریانے کولے ــ په حقیقت کښې هغه ډیر بدکاره او فاسق قوم وُو ــــ او لُوط مونږه په خپل رحمت کښې داخل کړو، هغه د صالحانو خلقو نه وُو۔ ع

[۶۵] یعنی د ځوی نه روستو ئے نوسے هم داسے وُو چه پیغمبری ورکړے شوه۔

[۶۶] د حضرت ابراهیمؑ د ژوند د دے اهمے واقعے ذکر په بائیبل کښې نشته۔ بلکه هغه چه په عراق کښې کوم دور تیر کړے وُو د هغې د ډیره واقعه هم په دے کتاب کښې نشته۔ د نمرود سره د هغه مقابله، د پلار او د قوم سره د هغه جګړه، د بُت پرستئ خلاف د هغه کوشش، په اُور کښې د هغه د اچولو قیصه، او د هغه وطن پرېښودو په دے کښې یوه واقعه هم د بائیبل د کتاب "پیدائیش" مصنف نه ده لیکلی۔ هغه صرف د هغه د هجرت ذکر کړے دے، خو هغه ئے هم په داسے انداز سره کړے دے لکه چه یو خاندان د روزئ ګټلو د پاره یو وطن پرېږدی او بل وطن ته لاړ شی۔ د قرآن او د بائیبل ند دے نه هم زیات دلچسپ اختلاف دا دے چه قرآن وائی چه د حضرت ابراهیمؑ مُشرک پلار به په هغه باندې ډیر ظلم کولو، او بائیبل وائی چه د هغه پلار د خپلو ځامنو، نوسو، او اینګوریانو سره حاران ته لاړو او هلته آباد شو (باب ۱۱ آیتونه ۲۷ تا ۳۲)۔ د دے نه روستو الله تعالیٰ حضرت ابراهیمؑ ته یکدم وائی چه ته حاران پرېږده او په کنعان کښې استوګنه اختیار کړه او "زۀ به ستا نه یو لوئ قوم جوړ کړم او برکت به درکړم او ستا نوم به اُوچت کړم، نو ته د برکت باعث شے، څوک چه تا ته مبارک وائی هغه له به زۀ برکت ورکړم او څوک چه په تا لعنت کوی زۀ به په هغه لعنت کوم او د زمکے تولے قبیلے به ستا په وسیله سره برکت موی" (باب ۱۲- آیت ۱-۳) هیڅ پته نۀ لګی چه نا ساپه په حضرت ابراهیمؑ د ا د مهربانئ نظر ولے اُوشو۔

البته په تلمود کښې د ابراهیمؑ د عراق دور ډیر هغه واقعات ملاویږی کوم چه د قرآن په مختلفو

ځایونو کښې بیان شوی دی. خو چه سړے د دواړو مقابله اُوکړی نو د قیصے په اکثرو ځایونو کښې ښکاره فرق په نظر راځی، سړی ته صفا معلومیږی چه د تلمود بیان د یو جوړه او د خلاف قیاس خبرونو یک ډک دے او د دے برعکس قرآن بالکل په صفا شکل کښې د حضرت ابراهیمؑ د ژوندانه هغه واقعه بیانوی. مونږ د دے د مدعا واضحه کولو د پاره د تلمود د قیصے خلاصه پیش کوو چه د هغه غلطو غلطو صفا ښکاره شی او پوهه شی چه وائی چه قرآن د بائبل او د یهودی ادب نه فائده حاصله کړې ده -

د تلمود بیان دے چه حضرت ابراهیمؑ کله پیدا کیدو نو په هغه ورځ نجومیانو په آسمان باندې یو علامه اولیده او نمرود بادشاه له ئے دا مشوره ورکړه چه د تارح کره کوم بچے پیدا شوے دے هغه اُووژنه. چنانچه هغه د ابراهیمؑ د وژلو اراده اُوکړه. لیکن تارح د خپل غلام یو بچے په بدله کښې ورکړو او هغه ئے ئے کړو. د دے نه روستو تارح خپله ښځه او بچے یو غاړه ته بوتلل او هلته ئے پټ کړل، او هلته هغوی د لسو کالو پورې ګوټ په یو لسم کال تارح حضرت ابراهیمؑ حضرت نوحؑ ته ورسوو او د یو کم شلو ۳۹ یښت کالو پورې هغه د حضرت نوحؑ او د هغه د ځوئے د سام په تربیت کښې وُو. په دغه زمانه کښې حضرت ابراهیمؑ د خپلے سکه ورېرې "ساره" سره نکاح اُوکړه چه دوه څلویښت کاله د هغه نه کشره وه (په بائبل کښې دا نشته چه ساره د حضرت ابراهیمؑ وریره وه. او د عمر فرق ئے هم لس کاله ښائی. پیدائش باب ۱۱. آیت ۱۲۹ و باب ۱۷ آیت ۱۷) -

بیا تلمود وائی چه حضرت ابراهیمؑ د پنځوس کالو په عمر کښې د حضرت نوح کور پریښودو او د خپل پلار کور ته راغے. هغه اُوکتل چه پلار ئے بُت پرست دے او په کور کښې ئے د کال د دولسو میاشتو په حساب سره دولس بتان کیښودلی دی. هغه د پلار د پوهه کولو کوشش اُوکړو، خو چه کله هغه په خبره پوهه نه شو نو یوه ورځے چه ورته موقع ملاؤ شوه نو د کور د بُت خانے بتان ئے مات کړل. تارح چه کله راغے او خپلو بتانو دا حال ئے اُولیدو نو نیغ نمرود له لاړو او دا شکایت ئے اُوکړو چه پنځوس کاله مخکښې زما په کور کښې کوم هلک پیدا شوے وو نن هغه زما په کور کښې دا حرکت کړے دے، د دے فیصله ته اُوکړه. نمرود حضرت ابراهیمؑ راوغوښتو او تپوس ئے ترې اُوکړو. هغه ورله سخت جوابونه ورکړل. نمرود هغه فوراً جیل ته اُولیږلو او بیا ئے معامله خپل کونسل ته پیش کړه چه په مشوره سره کړے مقدمه فیصله اُوکړے شی. د کونسل اکانو فیصله اُوکړه چه دا سړے دے په اور کښې اُوسوزولے شی. چنانچه هغه ته اور تیار کړے شو او حضرت ابراهیمؑ هغه ته وراُوغورزولے شو. د حضرت ابراهیمؑ سره د هغه رور او سخر، حاران هم ورا اُوغورزولے شو، ځکه چه نمرود کله د تارح نه تپوس اُوکړو چه ستا دا ځوئے خو ما د پیدا کیدو په ورځ وژلو، تا هغه ولے بچ کړو. او په بدل کښې دے بل بچے راپاندې ولے اُووژلو، نو هغه ورته اُووے چه دا ما د حاران ویلی وُو. دا وجه وه چه دا کار چا کړے وُو هغه ئے پریښودو او چا چه مشوره ورکړے وه هغه ئے د حضرت ابراهیمؑ سره اُور ته ورکوزار کړو. اُور ته د ورغورځیدو سره حاران فوراً اُوسوزید او هیره شو خو حضرت ابراهیمؑ خلقو اُولیدو چه دننه په اطمینان سره ګرځی راګرځی. نمرود له دا خبر ورکړے شو چه هغه راغے او په خپلو سترګو ئے دا حال اُولیدو نو په زوره ئے اُووے چه "اے د آسمانی خدائے بنده د اُور

وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ مِن قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ مِنَ الْكَرْبِ

او همدا نعمت مونږه نوح له ورکړو. یاد کړه څه وخت چه هغه د دوئ نه وړومبے مونږ ته آواز کړے وُو.[٦٨] مونږه د هغهٔ دُعا قبوله کړه او هغه او د هغهٔ کور والا مو د لوئ مصیبت نه[٦٩]

نه را اُوځه او زما ځئے ته ودرېږه." حضرت ابراهیمؑ بهرته را اُووتو. نمرود د هغه مرید شو او ډیرے قیمتی تحفے ئے ورله ورکړے او رخصت ئے کړو.

د تلمود د بیان مطابق حضرت ابراهیمؑ د دے نه روستو دوه کاله هلته وُو. بیا نمرود دیرے یو خوب اُولیدُو او نجومیانو د هغه خوب دا تعبیر را اُو بنکو چه ابراهیمؑ به ستا د بادشاهئ د تباهئ سبب جوړیږی، هغه اُوږنه هغهٔ د هغه د قتل دپاره سړی ورا اُولیږل، خو حضرت ابراهیمؑ له چه نمرود کوم الیعزر نومے یو غلام ورکړے وُو هغه ابراهیمؑ د دے منصوبے نه مخکښے خبر کړو، نو حضرت ابراهیمؑ اُوتښتیدوا و د حضرت نوحؑ کره ئے پناه واخستله. هلته به تارح راتللو او پټ پټ به ئے ملاقات کولو. او آخر دا چه پلار او ځامنو د وطن پریښودلو فیصله اُوکړه. حضرت نوحؑ او سام هم دا خبره خوښه کړه. چنانچه تارح خپل ځوئے ابراهیمؑ او خپل نوسے لُوطؑ او خپله نوسئ او ابنکور ساره د ځان سره کړل او حاران ته لاړل. (منتخبات تلمود از پی پولانو لندن. صفحه ۳۰ تا ۴۲).

په قیصے تیجه یو عقلمند سړے اُوگوری نو آیا هغه دا تصور کولے شی چه قرآن به دا قیصه د مه داستان نه را غلے وی.

[٦٧] "حکم او علم ورکول" په قرآن مجید کښے عام طور پیغمبری ورکولو ته وائی. د "حکم" نه مراد حکمت هم دے، د صحیح فیصلے کولو طاقت هم دے، او د الله تعالیٰ د طرفه د حکمرانئ سند (Authority) حاصلول هم دی. پاتے شو "علم" نو د دے نه مراد هغه حق علم دے چه هغه د وحی په ذریعه ورکړے شوے وی. د حضرت لوطؑ په حقله د زیاتو تفصیلاتو دپاره اُوگورئ. الاعراف آیتونه ۸۰ تا ۸۴. هود، آیتونه ۶۹ تا ۸۳. الحجر، آیتونه ۵۷ تا ۷۶.

[٦٨] اشاره ده د حضرت نوحؑ هغه دُعاته، چه هغهٔ کله د خپل قوم د اصلاح دپاره ډیره موده کوشش اُوکړو او په آخر کښے ستړے شو نو دا دُعائے اُوغوښتله چه "إِنِّي مَغْلُوبٌ فَانتَصِرْ" "اے خدایه، زهٔ عاجزه شوے یم، اُوس زما امداد اُوکړه" (القمر. آیت ۱۰). او "رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا" "اے خدایه، په زمکه یو کافر هم مه پریږده" (نوح آیت ۲۶).

[٦٩] د کرب عظیم نه مراد یا خو په بد عمله قوم کښے ژوند تیرول دی یا تربیا مراد طوفان دے. د حضرت نوح د قیصے د تفصیلاتو دپاره اُوگورئ. الاعراف، آیتونه ۵۹ تا ۶۴. یونس، آیتونه ۷۱ تا ۷۳. هود، آیتونه ۲۵ تا ۴۸، بنی اسرائیل، آیت ۳).

الْعَظِيْمِ ﴿۷۶﴾ وَ نَصَرْنٰهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۷۷﴾ وَ دَاوٗدَ وَ سُلَيْمٰنَ اِذْ يَحْكُمٰنِ فِي الْحَرْثِ اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَ كُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ ﴿۷۸﴾ فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ وَ كُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّ عِلْمًا ؗ

بچ کړل او د هغې قوم په مقابله کښې موږ هغهٔ مدد اوکړو چه هغوئ زمونږ آیتونه دروغ گڼړلي وُو. هغوی ډیر خراب خلق وُو، نو مونږه هغوئ ټول غرق کړل.

او دا نعمت مونږه داؤد او سلیمان له ورکړو. یاد کړه هغه موقعه څه وخت چه هغوئ دواړو دیو فصل په مقدمه کښې فیصله کوله چه د شپې پکښې د نورو خلقو ېیزے خوړ شوی وُو، او مونږه د هغوی عدالت پخپله لیدلو. په هغه وخت کښې مونږه د صحیح فیصلے کولو پوهه سلیمان له ورکړه، حالانکه حکم او علم مونږه دواړو له ورکړے وو

ت‌ه دَدے واقعے ذکر په بائیبل کښې نشته، او په یهودی کتابونو کښې هم مونږه کومه څه ذِکر اُونه لیدو. مسلمانو مفسرینو چه دَدے کومه تشریح کړی ده هغه دا ده چه دَیو سړی پټی ته دَ بل سړی ېیزے دَ شپے ورادریېدلی وے. هغهٔ حضرت داؤد ته فریاد اُوکړو. هغه فیصله اُوکړو چه دَ هغهٔ ېیزے دِ دَ هغهٔ په زور دا خپلے شی او دهٔ له دِ ورکړے شی. حضرت سلیمان دَدے نه اختلاف اُوکړو او دا رائے ئے پیش کړه چه ېیزے دِ دَ هغه وخته پورے دَ پټی دَ خاوند سره وی ترڅو پورے چه دَ ېیزو خاوند هغه پټے بیا تیار کړے نه وی. دَدے په حقله الله تعالیٰ فرمائی چه دا فیصله مونږه سلیمان ته ښودلی وه. خو چونکه دَ مقدمے دا تفصیل په قرآن کښې بیان شوے نه دے او نه په حدیث کښې دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه دَدے تفصیل نقل شوے دے، نو دا څوک نهٔ شی وئیلے چه په دے قسم مقدمو کښې هم دا دَ اسلامی قانون ضابطه دهٔ. او هم دا وجه ده چه دَ حنفیانو دَ شافعیانو او دَ مالکیانو او دَ اسلام دَ نورو عالمانو په مینځ کښې په دے مسئله کښې اختلاف دے چه دَ څارو دَ بل سړی پټے خراب کړی نو چه تاوان به پرے اوکړی که نه، او که تاوان وی نو چه په څه شکل کښې به ادا کیږی.

دلته دَ حضرت داؤد او دَ سلیمان دا خاص واقعه دَ دے مقصد دَپاره ذکر شوے ده چه پیغمبران دَ نبوت باوجود انسانان وُو، په هغوی کښې دَ خدائی هیڅ احتمال نهٔ وُو. په دے مقدمه کښې حضرت داؤدؑ مرسته دَ وحی په ذریعه اُونهٔ کړے شوه او هغه په فیصله کولو کښې غلط شو، حضرت سلیمان ته ښودنه اُوکړے شوه او هغه صحیح فیصله اُوکړه، حالانکه دواړه پیغمبران وُو. وړاندے چه دَدے دواړو پیغمبرانو کوم کمالات ذکر کړے شوی دی، هغه هم دَدے خبرے دَ پوهه کولو دَپاره ذکر کړے شوی دی چه دا ټول کمالات دَ خدائے تعالیٰ دَ طرفه وُو او په دے کمالاتو سره دَ سړی نه خدائے نهٔ جوړیږی.

اشارةً دَدے آیت نه دَ عدالت دا اصول هم معلوم شو چه که چرے دوه بچان دَ یوے مقدمے فیصله

وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۷۹﴾ وَعَلَّمْنٰهُ
صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ﴿۸۰﴾
وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖۤ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ

دَ داؤد سره مونږ غرونه او مارغان مسخر کړي وُو چه تسبيح به ئې وئيله، دَدې کار کوونکي خاص هم مونږه وُو. او مونږ هغه ته ستاسو دَ فائدې دَ پاره زغرې جوړول ښودلي وُو، چه تاسو دَ يو بل دَ ګوزار نه بچ کړي، نو آيا تاسو شکر اېستونکي يئ؟ او دَ سليمان دَ پاره مونږه تيزه هوا مسخر کړې وه چه دَ هغه په حکم به هغه زمکې ته تلله چه په هغې کښې مونږه

اُوکړي، او دَ دواړو فيصلې مختلف وې، نو اګرچه صحيح فيصله يو يوه وې، ليکن دواړه به حق وې، ليکن په دې شرط چه دَ انصاف کولو قابليت به په دواړو کښې موجود وي، يو به هم ناپوهه او ناتجربه کاره نه وي. نبي صلى الله عليه وسلم په خپلو احاديثو کښې دا خبره ښه په تفصيل سره بيان کړې ده. په بخاري کښې دَ عمرو بن العاص رض روايت دې چه نبي فرمائي "اِذَا اجتهد الحاکم فاصاب فله اجران و اذا اجتهد فاخطاء فله اجر" که حاکم دَ خپله وسه پورې دَ فيصلې کولو پوره کوشش اُوکړي نو که صحيح فيصله ئې اُوکړه نو دَ هغه دَ پاره دوه اجرونه دي او که غلطه فيصله ئې اُوکړه نو يو اجر دې" په ابوداؤد او ابن ماجه کښې دَ بريده رض نه روايت دې چه نبي فرمائي چه "قاضيان دري قسمه دي، په هغوئ کښې يو جنتي دې او دوه دوزخيان دي. جنتي هغه قاضي دې چه حق اُوپيژني او دَ هغې مطابق فيصله اُوکړي. خو څوک چه دَ حق پيژندلو باوجود دَ حق خلاف فيصله اُوکړي نو هغه دوزخي دې. او دغه شان هغه هم دوزخي دې چه بې علمه دَ خلقو فيصلې کوي.

۷۵ دا الفاظ داسې دي چه مَعَ دَاوٗدَ، داسې نه دي چه لِدَاوٗدَ، يعنې دَ "داؤد دَ پاره" نه بلکه دَ داؤد سره غرونه او مارغان مسخر کړې شوي وُو، او په دې وجه هغوئ به هم دَ حضرت داؤد سره دَ الله تسبيح وئيله. دا خبره په سورة ص کښې هم بيان کړې شوې ده. اِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْاِشْرَاقِ ۝ وَالطَّيْرَ مَحْشُوْرَةً كُلٌّ لَّهٗۤ اَوَّابٌ ۝ "مونږه دَ هغه سره غرونه مسخر کړي وُو چه سحر او ماښام به ئې تسبيح وئيله، او مرغئ مو هم مسخر کړي وې چه راجمع کيدلې به، تو لو به دَ هغه تسبيح وئيله." په سورة سبا کښې دي چه "يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ وَالطَّيْرَ" "غرونو ته مونږه حکم ورکړو چه دَ هغه سره تسبيح وايئ او دا حکم مو مرغو ته هم اُوکړو." دَ دې آيتونو نه چه کومه خبره په ذهن کښې کيني هغه دا ده چه کله به حضرت داؤد دَ الله تعالى حمد وثنا په خوږ آواز وئيله نو دَ هغه دَ خوږ ناک آواز سره به په غرونو کښې ګونج راپيدا شو، مرغئ به ودريدې او يو خوند و حالت به جوړ شو. دَ دې معنى تائيد په هغه حديث سره کيږي چه په هغې کښې دا ذکر راغلے دې چه يو ځل حضرت ابو موسى اشعري چه يو خوش آوازه بزرګ انسان وُو، دَ قرآن تلاوت

کولو۔ نبي صلی الله علیه وسلم په دغه طرف تیرېدو نو چه د هغه آواز ئې واورېدو نو ودرېدو او ډېر ساعته پورې ئې دغه آواز اورېدو۔ چه هغه تلاوت ختم کړو نو نبي ﷺ اُوفرمایل "لَقَدْ اُوْتِيَ مِزْمَارًا مِنْ مَزَامِيْرِ اٰلِ دَاوٗدَ"، یعنې دې سړي ته د حضرت داؤد د خوږ آواز نه څه حصه ملاؤ شوې ده"۔

لئـه په سورة سبا کښې زیات تفصیل دا دے: وَ اَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّ قَدِّرْ فِي السَّرْدِ، "او موږ د وسپنه د هغه د پاره نرمه کړه (او هغه ته مو هدایت اُوکړو چه) پوره پوره زغرې جوړوه او تیک په اندازه سره کړۍ جوړوه"۔ د دے نه معلومېږي چه الله تعالیٰ حضرت داؤد له د وسپنې د استعمالولو قدرت ورکړے وُو، او خاص طور د جنګ د پاره د زغرې جوړولو طریقه ئې ورته ښودلې وه۔ په موجوده زمانه کښې چه کوم تاریخي او اثري تحقیقات شوي دي د هغې سره د دے آیت معنیٰ ښه واضح کېږي۔ موجوده تحقیقات دا دي چه په دنیا کښې د وسپنې د استعمال دَور Iron age د سنه ۱۲۰۰ او د سنه ۱۰۰۰ ق م په منځ کښې شروع شوے دے، دا د حضرت داؤد زمانه ده۔ د شام او د ایشیائے کوچک د حِتّي قوم Hittites د عروج زمانه د سنه ۲۰۰۰ ق م نه سنه ۱۲۰۰ ق م پورې وه۔ اول اول دے قوم د وسپنې د ویلي کولو او د وسپنې د تیارولو یوه ګرانه طریقه معلومه کړه او د ټولې دُنیا نه ئې دا خبره په راز کښې ساتله۔ خو په دے طریقه چه کومه وسپنه تیارېدله هغه به د سرو او د سپینو پشان قیمتي وه او په عام استعمال کښې نه راتلله۔ روستو بیا فِلِستیانو هم دا طریقه معلومه کړه او هغوئ به هم چا ته نه ښودله۔ د بائبل بیان دے چه د طالوت د بادشاهۍ نه وړاندې حِتّیانو او فِلِستیانو بني اسرائیلو له کوم شکستونه ورکول د هغې یو غټه وجه دا هم وه چه دِ دے خلقو به د وسپنې ګاډي استعمالول او د وسپنې نورې وسله ورسره هم وه۔ (یشوع باب ۱۷ - آیت ۱۶۔ قُضاۃ باب ۱ - آیت ۱۹ - باب ۴ - آیت ۲-۳)۔ په سنه ۱۰۲۰ ق م کښې چه کله طالوت د خدائے په حکم سره د بني اسرائیلو بادشاه شو نو هغه دے خلقو له مسلسل شکستونه ورکړل او د فلسطین غټه حصه ئې ترې واپس واخستله، او بیا حضرت داؤد (سنه ۱۰۰۴ - سنه ۹۶۵ ق م) په فلسطین، په شرق اُردن او د شام په ډیرو حصو باندِ اسرائیلي سلطنت قائم کړو۔ په دے زمانه کښې چه د حِتّیانو او د فِلِستیانو په قبضه کښې د وسپنې د وسلې جوړولو کوم راز وُو هغه ښکاره شو او دا سے آسانې آسانې طریقې را اُووتلې چه د عام استعمال د پاره د وسپنې ارزان ارزان څیزونه تیارېدل شروع شو۔ د فلسطین په سویل کښې د اَدوم علاقه د کچه وسپنې نه ډکه ده، او اوس اُوس چه په دے علاقه کښې د آثارِ قدیمه کوم ځایونه کنستلے شوي دي په هغې کښې ډیر داسے ځایونه ښکاره شوي دي چه هلته د وسپنې ویلي کولو بټۍ لګیدلے وے۔ د عقبه او اَیله سره جُخت د حضرت سلیمان د زمانې په بندرګاه کښې، یعنې د عِصیُون جابر په آثارِ قدیمه کښې چه کومه بټۍ ملاؤ شوې ده د هغې د معاینې کولو نه دا اندازه لګیدلې ده چه په هغې کښې به څیني هغه اُصول استعمالیدل کوم چه نن د نوې زمانې په (Blast Furnace) کښې استعمالیږي۔ اوس دا یوه قدرتي خبره ده چه حضرت داؤد به د ټولو نه اوّل دا نوې وسله د جنګي غرض د پاره استعمال کړې وي، ځکه چه لږه موده مخکښې د خواوشا دُشمن قومونو د

بٰرَكْنَا فِيْهَا ۚ وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ ﴿٨١﴾ وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ

برکتونه کیښودلې دي، مونږ سره د هر څیز علم وُو.[۷۴] او په شیطانانو کښې ډیر مونږ د هغه

ورځنه د وسطے په ذریعه د هغوئ ژ و ند تنګ کړے وُو.

[۷۳] د حضرت داؤد په حقله زیات تفصیل اُوګورۀ البقرة، آیت ۲۵۱، بنی اسراءیل حاشیه ۷-۶۳-

[۷۴] د دے تفصیل په سورة سبا کښې راغلے دے: "وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ" او د سلیمٰن د پاره مونږ ه هوا مسخر کړې وه، سحر به ئے هم د میاشتے هومره مزل کووُ او مابنام به ئے هم د میاشتے هومره مزل کووُ" او نور زیات تفصیل ئے په سورة ص کښې راغلے دے: "فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيْحَ تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖ رُخَآءً حَيْثُ اَصَابَ" نو مونږه د هغه د پاره هوا مسخر کړه چه د هغه په حکم سره به په آسانه تلله کوم خوا چه به هغه تلل غوښتل" د دے نه معلومه شوه چه د حضرت سلیمانؑ د پاره هوا داسے تابع کړے شوې وه چه د هغهٔ د باد شاهئ نه به ډیوے میاشتے مزل بنه په آسانئ سره کیدے شو. په تلو کښې به هم هوا همیشه د هغهٔ د مرضئ مطابق وه او په واپس راتلو کښې به هم. د بائیبل او د نوې تاریخي تحقیقاتو نه چه کوم معلومات شوې دي هغه دا دي چه حضرت سلیمانؑ د خپل حکومت په دور کښې سمندري تجارت ډیره په غټه پیمانه شروع کړے وُو. یو طرفته به د عصیُون جابر له بندرګاه نه د هغهٔ تجارتي جهازونه یمن او نورو سویلي او مشرقي ملکونو ته تلل، او بل طرفته به د بحرِ روم د ټولو بندرګاهونه د هغهٔ بیړه (چه په بائیبل کښې ورته "ترسیسی" بیړه ویلې شوې ده) مغربي ملکونو ته تلله. په عِصیُون جابر کښې چه د هغه د زمانے کومه عظیم الشانه بټۍ مِلاوُ شوې ده د هغے د مقابلے یوه بټۍ هم لا تر اُوسه پورے په مغربي ایشیا کښې او په مشرقیٰ وسطیٰ کښې نه ده مِلاوُ شوې. د آثارِ قدیمه د ماهرینو اندازه ده چه دلته به د اَدُوم په عَرَبه نومے علاقه کښې د درنګونو نه کچه د سپنه او تانبا را وړے کیدله او په دے بټۍ کښې به ویلې کیدله او د نورو کارونو نه علاوه به د جهازونو جوړولو په کار کښې هم استعمالیدله. د دے نه د قرآن مجید د هغے آیت مطلب واضحه کیږي کوم چه په سورة سبا کښې د حضرت سلیمانؑ په حقله راغلے دے چه "وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ" او مونږه د هغه د پاره د ویلې شوې د سپینې چینه را اُوبهوله" د اړنګ د دے تاریخي حالاتو نه د اخبره هم په ذهن کښې کیږي چه د حضرت سلیمانؑ د پاره د یوے میاشتے د مزل پورے د هوا د "مسخر" کولو څه مطلب دے. په هغه زمانه کښې به سمندري سفر هله کیدو چه کله به هوا موافق وه او په حضرت سلیمانؑ باندې د الله تعالیٰ دا خاص کرم وُو چه هوا به همیشه د هغه د دواړو سمندري بیړو د تګ موافق وه. بیا هم کیدے شي چه حضرت سلیمانؑ له په هوا باندې د حکم چلولو څه اختیار ورکړے شوے وُو لکه څنګه چه د "تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖ" د الفاظو نه معلومیږي، نو د الله تعالیٰ د قدرت نه بهر خبره نه ده هغهٔ د خپلے بادشاهئ په خپله مالک دے. خپل بنده له چه څه اختیار ورکول غواړي هغه ورکولے شي. هر کله چه هغه په خپله چا له څه اختیار ورکړي نو مونږ له په دې خفه کیدل نه دي پکار.

يَغُوصُونَ لَهٗ وَيَعْمَلُونَ عَمَلًا دُونَ ذٰلِكَ ۚ وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِينَ ﴿۸۲﴾

دا مو تابع کړي وُو چه دَ هغهٔ دَپاره به ئې غوپې وهلې او دَ دې نه علاوه نور کارونه به ئې هم کول. او مونږه دَ دې ټول هـر څه نګرانان وُو<sup>۵</sup>

^۵ په سورة سَبا کښې دَ دې تفصیل دا دے ، وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ، وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ○ يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ..... فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ۚ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ○ او په پیریانو کښې مو داسې پیریان دَ هغه مسخر کړي وُو چه دَ هغه دَ رب په حکم سره به ئې دَ هغهٔ دَ وړاندې کار کولو ، او په هغوئ کښې چه به چا زمونږ دَ حکم نه مخ اړولو نو مونږ به ورته دَ غرغنډونکي وُورمزه ورڅکوَله . هغوئ به دَ هغهٔ دَپاره دَ هغهٔ دَ خوښې مطابق ډَنګې ماڼۍ او کالبوتونه او دَ حوض غوندې لوئ لوئ خانګونه او په ځائے پراتهٔ درانهٔ دیګونه جوړول ..... بیا چه کله مونږ ، سلیمان وفات کړونو وے پیریانو ته دَ هغهٔ دَ مرګ پته بل چا ورنهٔ کړه خو دَ زمکے یو زندهٔ سرئ (یعنی وَینهٔ) چه دَ هغهٔ همسئهٔ خوړله . نو هـر کله چه هغه راپریوتو نو پیریانو ته پته اُولګېدله چه که چرے واقعی هغوئ ته دَ غیبو څه خبر وَے نو په دے ذلیله عذاب کښې به دومره موده وے پراتهٔ " (آیت ۱۲-۱۳-۱۴) . دَ دے آیت نه دا خبره بالکل واضحه کیږی چه دَ حضرت سلیمان دَپاره کوم شیطانان مسخر کړے شوی وُو ، او چه دَ هغهٔ دَپاره به ئې مختلف کارونه کول ، هغه ټول پیریان وُو ، او هغه پیریان وُو چه دَ هغوئ په باره کښې دَ عربو دَ مشرکانو دا عقیده وه او هغوئ پخپله هم په دے دوکه کښې پراته وُو چه هغوئ ته کښې علم غیب حاصل دے . اُوس چه څوک قرآن مجید په غریدو ستړګو اُولولی ، او په خیالاتو کښې نورکښا نظریات نهٔ وی ، او بالکل په صفا دماغو سره ئې اُولولی ، نو هغه پخپله دا لیدے شی چه په کوم ځائے کښې قرآن مطلق لفظ "شیطان" او "جن" استعمالوی نو هلته ترې مراد کوم قِسم مخلوق وی او هغه کوم قسم پیریان دی چه دَ عربو دَ مشرکانو پرِدا عقیده وه چه هغوی په غیبو پوهیږی .

دَ نَوے زمانے مفسرین دَ دے خبری دَ ثابتولو دَپاره ډیر زور لګوی چه کوم پیریان او شیطانان دَ حضرت سلیمان دَپاره مسخر کړے شوی وُو ، هغه انسانان وُو او دَ خوا وُشا قومونو نه ورته ورکړے شوی وُو لیکن یوازے دا نه چه دَ قرآن په الفاظو کښې دَ هغوئ دَ دے تأویل دَپاره څه ګنجائش نشته دے ، بلکه په قرآن کښې چه په کوم ځائے کښې دا قیصه راغلی ده هلته دَ وړاندې رو ستو عبارت سره او دَ انداز بیان سره دَ هغوئ دا تأویل (معنیٰ) بالکل نهٔ لګیږی . دَ حضرت سلیمانؑ دَپاره چه به ئې ماڼۍ جوړ ولے که هغوئ چرے انسانان وُو نو آخر په هغوئ کښې کوم داسے خصوصیت وُو چه هغه دومره په لوئ شان سره په قرآن مجید کښې بیان کړے شوے دے . دَ اهرام مصر نه را واخله دَ نیو یارک دَ ډلګو ډنګو غرونو عمارتونو پورے کوم یو څیز انسان نهٔ دے جوړ کړے او دَ کوم بادشاه سره هغه "جن" او "شیطانان" نشته کوم چه ته دَ حضرت سلیمانؑ

وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗۤ اَنِّىْ مَسَّنِىَ الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۸۳﴾

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ وَّاٰتَيْنٰهُ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ

او دا (فهم فکر او د حُکم او د علم نعمت) مونږه ایوب[۷۶] له ورکړے وَو. یاد کړه کله چه هغه خپل رَب ته آواز اُوکړو چه "ما ته بیماری نګیدلی ده او ته ارحم الراحمین یې"[۷۷] مونږه د هغه دُعا قبوله کړه او هغه ته چه کوم تکلیف وُو هغه مو لرے کړو، او هغه له مو صرف هغه هغه اهل عیال ورنه کړو بلکه د هغوی

د پاره ثابتول غواړے؟

۷۶ د حضرت ایوب د شخصیت، د هغهٔ د زمانے او د هغهٔ د قومیت په باره کښے اختلاف دے. د نوی زمانے محققین څوک هغه ته اسرائیلی وائی او څوک ورته مصری او څوک ورته عربی. څوک وائی چه د هغهٔ زمانه د حضرت موسیٰؑ نه مخکښے ده، څوک وائی چه هغهٔ د حضرت داؤدؑ او د حضرت سلیمانؑ د زمانے سره وُو، او څوک وائی چه د دے نه هم روستو وُو. لیکن د ټولو د ټیا سرنو بنیاد هغه سِفرِ ایُّوب یا صحیفهٔ ایوب دهٔ کوم چه د بائیبل د پاکو کتابونو په مجموعه کښے شامل دهٔ. ټولو د هغے صحیفے انداز بیان ته او کلام ته کتلی دی او مختلفے رائے ئے قائمے کړے دی، بل څهٔ تاریخی شهادت ورسره نشته. او د دے سفر ایوب حال دا دے چه د هغے په بیانا تو کښے هم تضاد دے او د هغے بیان د قرآن د بیان نه دومره مختلف دے چه سره په یو وخت دواړه نهٔ شی منلے. لهٰذا مونږه په هغے باندے قطعًا اعتماد نهٔ شو کولے. د زیا تو نه زیات قابلِ اعتماد شهادت کوم نو هغه دا دے چه د یسعیاه نبی او د حزقی ایل نبی په صحیفو کښے د هغهٔ ذکر راغلے دے او دا صحیفے په تاریخی حیثیت سره زیاتے قابلِ اعتماد دی. یسعیاه نبی د مسیح نه مخکښے په اتمه صدئ کښے تیر شوے دے او حزقی ایل نبی د مسیح نه مخکښے په شپږمه صدئ کښے تیر شوے دے. نو دا یقینی خبره ده چه حضرت ایوب علیه السلام په نهمه صدئ کښے یا د دے نه مخکښے وُو. پاتے شوه د هغه قومیت نو د سورهٔ نسآء په آیت ۱۶۳ کښے او د سورهٔ انعام په آیت ۸۴ کښے چه د هغهٔ څنګه ذکر راغلے دے نو د هغے نه دا ګمان کیږی چه هغه د بنی اسرائیلو نه وُو، لیکن د وهب بن مُنَبِّهٖ دا بیان هم د قیاس نه لرے نهٔ دے چه هغه د حضرت اسحاق د ځوئ د "عیسُو" د نسل نه وُو.

۷۷ څنګه په باریک انداز کښے ئے دا دُعا غوښتلی ده. په لنډو الفاظو کښے د خپل تکلیف ذکر کوی او بیا روستو بس صرف دا وائی چه "ته ارحم الراحمین یې". وړاندے ورپسے څهٔ شکایت نهٔ کوی او نهٔ څهٔ څیز غواړی. دا دا سے د اُوچت شان دُعا ده لکه چه یو سړے انتهائی صبرناک او شریف او خوددار انسان وی او د لوږے د لاسه ډیر بے قراره وی او هغه یو سخی انسان ته بس دومره اُووائی چه "زهٔ وږے یم او ته سخی یې" او وړاندے ئے د ژبے نه یو لفظ را او نهٔ باسی.

۷۸ د سورهٔ ص په څلورمه رکوع کښے د دے تفصیل دا رنګے دے چه الله تعالیٰ هغه ته اُوفرمائیل "اُرْكُضْ بِرِجْلِكَ، هٰذَا مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ"، "خپله پښه اُووهه، دا یخے اُوبهٔ موجودی دی د لامبلو او د څکلو د پاره". د دے نه معلومیږی چه په زمکه باندے د پښے د وهلو سره الله تعالیٰ د هغهٔ د پاره یوه

مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَ ذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ ﴿۸۴﴾

موږ ورسره نور هم ورکړو، دَخپل خاص رحمت په طور باندې، او دَپاره دَدې چه دا یو نصیحت وي دَعبادت کذارو خلقو دَپاره. ۷۹

چینه جاري کړه چه دَهغې په اوبو کښې دا خاصیت وُو چه په هغې کښې دَ لامبو سره او دَ هغې دَ اوبو دَ څکلو سره دَهغه مرض لرې شو. دا قسم علاج ده خبرې ته اشاره کوي چه دَهغهٔ دَپوستکي بیماري وه، او دَ بائیبل بیان هم دَدې خبرې تائید کوي چه دَهغهٔ بدن دَ سر نه دَ پښو پورې دَ ټنکرو نه ډک شوې وُو (ایوب، باب ۲، آیت ۷).

۷۹ قرآن مجید چه دَحضرت ایوب قیصه په کوم شان سره پیش کوي نو دَهغې نه معلومیږي چه هغه یو صبرناک انسان وُو. او قرآن وائي چه دَهغهٔ ژوند دَ عبادت کذارو خلقو دَپاره یو نمونه ده لیکن بل طرفته چه سړې سِفرِ ایوب اُولولي نو هغه یو بې صبره انسان ښکاري چه خدائ ته شکایت کوي او هر وخت دَخپل مصیبت فریاد کوي. بار بار دَ خولې نه دا خبره راُوځي چه "ورکه دِشي هغه ورځ چه زهٔ پکښې پیدا شوم" "زهٔ په رحم کښې ولې مړ نهٔ شوم". "زهٔ دَ پیدا کیدو سره ولې مړ نهٔ شوم." او هغه بار بار دَ خدائ خلاف شکایتونه کوي چه "دَخدائ غشي زما دننه لګیدلي دي، زما روح هم دَ هغې زهر څکښي، دَخدائ دَ غضب خبرې په ما پسې راپسې دي." "اې بني آدم ته کتونکیه، که ما ګناه کړې ده نو تا ته پرې څه نقصان دې؟ تا ولې زهٔ نښه کړې یم آن ترمه پورې چه په ما دا خپل ځان بوج دې؟ ته زما ګناه ولې نهٔ معاف کوې او زما بدکاري ولې نهٔ لرې کوې؟" "زهٔ به خدائ ته وایم چه ما ملزم مهٔ کوه، ما ته اُووایه چه ته ولې زما سره جګړه کوې؟ آیا تا ته دا ډیر ښه کار ښکاري چه ظلم اُوکړې او په خپل لاس جوړ کړې شوې څیز سپک اُوګڼې او دَ شریرانو منصوبه روښانه کړې؟" دَ هغه درې دوستان هغهٔ له تسلي ورکوي او هغه ته دَ صبر کولو نصیحت کوي، خو هغه نهٔ مني. هغهٔ دَ نصیحت په جواب کښې مسلسل په خدائ الزام لګوي چه دَ خدائ په دې کار کښې هیڅ حکمت نشته، بس یو ظلم دے چه زما غوندې په یو متقي او عبادت کذار بنده باندې کیږي. هغه دَ خدائ په دې انتظام باندې سخت اعتراضونه کوي چه یو طرفته په بدکاره خلقو باندې نعمتونه راوریږي او بل طرفته په نیکانو خلقو باندې ظلمونه کیږي. هغه خپله یوه یوه نیکي شماري او بیا هغه تکلیفونه بیانوي کوم چه پرې دَ خدائ دَطرفنه راغلي دي، او بیا وائي چه که دَ خدائ سره څهٔ جواب وي نو ما ته دې اُووائي چه دَ کومې ګناه په بدله کښې زما سره دا سلوک کیږي. او که هغه دا بې ادبي دَ خدائ په مقابله کښې دومره زیاته شي چه آخر ورسره هغه دوستان خبرې کول پریږدي. هغوي چپ شي نو یو څلورم سړې په منځ کښې خبرې کول شروع کړي او ایوب له په دې خبره زورنه ورکوي چه هغهٔ دَ خدائ په ځائې خپل ځان صحیح ثابت کړو. دَ هغه تقریر لا ختم شوې نهٔ وي چه په منځ کښې الله تعالیٰ پخپله خبرې کول شروع کړي او بیا دا الله او دَ ایوب په منځ کښې دوه په دوه ښهٔ بحث اُوشي. دا ټول

داستان چه سړې لولي نو په هیڅ ځائے کښې دا سړي ته نه محسوسیږي چه موږ په کښې د هغه صبرناک سړي حال لولو چه هغه په قرآن کښې د عبادت ګذارو خلقو د پاره د سبق نمونه ده.

د حیرانتیا خبره دا ده چه د دې کتاب اولنۍ حصه څه بل څه وائي، منځنۍ حصه ئې څه بل څه وائي او په آخر کښې نتیجه څه بل څه راوځي. په درې واړو حصو کښې هیڅ مناسبت نشته. په اولنۍ حصه کښې وائي چه ایوب یو رښتینې، خدا ترسه او نیک سړې وو، او دومره دولتمند وو چه "په مشرق والو کښې هغه د ټولو نه غټ سړې وو" یو ورځ خدائے ته د خدائے خپل ځامن حاضر شو او ورسره شیطان هم راغې. خدائے تعالیٰ په دې محفل کښې په خپل بنده ایوب باندې ډیر فخر اوکړو. شیطان ورته اووې چه تا د ده له نعمتونه څه ورکړي دي چه هغه په هغې باندې شکر نه اوباسي نو څه به کوي. دا نعمتونه ترې شان واخله او بیا ئې اوګوره که ده کفر اونه کړو نو زما نوم به شیطان نه وي. خدائے اووې، ښه ده، د ده هر څه ستا په اختیار کښې شو. البته د ده ذات ته هیڅ نقصان مه رسوه. شیطان لاړو او ایوب ئې د ټول مال و دولت او د ټول خاندان نه صفا کړو او بالکل یو انه پاتې شو. خو ایوب هیڅ خفه نه شو. هغه خدائے ته سجده اوکړه او دې وئیل چه "زه د مور د خیټې نه لغړ راغلې وم او لغړ به واپس ځم. خدائے راکړي وُو او خدائے واخستل. د خدائے نوم دې مبارک وي." بیا یوه ورځ د الله تعالیٰ سره هم دغسې محفل جوړ شو. د هغه ځامن هم راغلل او شیطان هم حاضر شو. الله تعالیٰ شیطان ته اوښودله چه ګوره کنه ایوب څنګه رښتینی سړې ثابت شو. شیطان اووې چه په بدن ئې لږ شان مصیبت راوله او بیا اوګوره. دې به ستا په مخکښې کفر اوکړي. الله اووې ښه ده، هغه م تاله په اختیار کښې ورکړو، پس صرف د هغه روح دې محفوظ وي. چنانچه شیطان واپس شو او ایوب له راغې او "ایوب ته ئې د پښو د تلونه د سر پورې په ننکوسو تکلیف ورکړو." خپلې ښځې ورته اووې "آیا ته به اوس هم په خپله راستۍ باندې قائم ئې؟ د خدائے تکفیر اوکړه او مړ شه." هغه جواب ورکړو "ته د بې وقوفو ښځو په شان خبرې کوې. آیا موږ به د خدائے د لاس نه خوشحالي مومو او تکلیف به نه مومو"

دا د سفرِ ایوب کتاب د اول او د دویم باب خلاصه ده. لیکن د دې نه روستو د دریم باب نه یو بل مضمون شروع کیږي چه د دوه څلویښتم باب پورې د ایوب د بې صبرۍ او د خدائے خلاف د شکایتونو او د الزامونو یو مسلسل داستان دے، او د دې نه دا خبره ثابتیږي چه د ایوب په باره کښې د الله تعالیٰ اندازه غلطه وه او د شیطان اندازه صحیح وه. بیا په دوه څلویښتم باب کښې خبره په دې ختمیږي چه د الله تعالیٰ سره ئې ښه دوه په دوه بحث اوکړو او د هغې نه روستو ایوب د صبر او د شکر په طور نه بلکه د الله تعالیٰ د طرفنه د زورزې په نتیجه کښې د خدائے نه معافي غواړي او الله تعالیٰ ئې قبلوي او د هغه د تکلیفونه لرې کوي او د مخکښې نه ور له دوچنده څیزونه ورکوي. دا آخري حصه چه سړې لولي نو داسې معلومیږي چه ایوب او الله تعالیٰ دواړه د شیطان په مقابله کښې ناکام شو، او بیا هسې کخیري جوړولو د پاره الله هغه له زور نه ورکوي او هغه په معافۍ غوښتلو مجبوره کوي، او چه بیا کله هغه معافي او غوښتله نو ورله ئې قبوله کړه چه شیطان

وَ اِسْمٰعِيْلَ وَ اِدْرِيْسَ وَ ذَا الْكِفْلِ ؕ كُلٌّ مِّنَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۸۵﴾ وَ

او هم دا نعمت مونږ اسماعيل او ادريس ⁸⁰ او ذوالكفل ⁸¹ ته ورکړو ځکه چه دا ټول صابران خلق وو. او

ته رسوا نه شي.

داکتاب څنګه چه خوله وائي چه دا نه د خدائے کلام دے او نه د حضرت ايوب کلام دے، بلکه دا کلام د حضرت ايوب د زمانے هم نه دے. د هغه نه په سوونو کاله روستو چا د "يوسف زليخے" د قيصے په شان د ايوب قيصه ليکلې ده او په هغې کښے اُيوّب، اليفز تيمانی، سوخی بلد، نعماتی صوفر، د براکيل بوزی ځوے اليهو يو څو کسان دی چه د هغوئ په ژبه د کاسَاتو د نظام په حقله هغه په اصل کښے خپله فلسفه بيان نوی. د هغه شاعری او د هغه بيان که هر څو مره قابل قدر دے خو د آسمانی صحيفے په حيثيت سره هغې له د مقدس کتابونو په مجموعه کښے ځائے ورکول بے مطلبه دی. د حضرت ايوب عليه السلام سره د هغې تعلق بس دومره دے لکه څومره چه د "يوسف زليخے" د قيصے سره تعلق د حضرت يوسف دے، بلکه دومره هم نه دے. مونږ ته بس دومره وپيلے شو چه د دے کتاب په اولنۍ او په آخرئ حصه کښے چه کوم واقعات بيان کړے شوی دی په هغې کښے غير شان صحيح تاريخ شته، او دغه صحيح تاريخ يو يا خو شاعر زبانی طور او رېدلے وی کوم چه به په هغه زمانه کښے مشهور وو، او يا به ئے د يو داسے صحيفے نه اخستلے وی چه هغه اُوس نه پيدا کيږی.

⁸⁰ د تشريح د پاره اُوګوره تفهيم القرآن دريم جلد، سورة مريم، حاشيه ۳۳ -

⁸¹ د ذوالکفل لفظی ترجمه ده "نصيب والا" او مُراد ترے اخلاقی بزرګی او د آخرت د ثواب په لحاظ سره نصيب والا، نه چه د دنيوی فائيدو په لحاظ سره. دا د هغه بزرګ نوم نه دے بلکه د هغه لقب دے. په قرآن مجيد کښے دوه ځايه د هغه ذکر راغلے دے او دواړو ځايه هغه په دے لقب سره ياد کړے شوے دے نوم ئے نه دے اخستلے شوے.

د مفسرينو په دے کښے اختلاف دے چه دا بزرګ څوک دے د کوم وطن او د کوم قوم سره تعلق لری، او په کومه زمانه کښے تير شوے دے. څوک وائي چه دا د حضرت زکريا دويم نوم دے (حالانکه دا بالکل غلطه خبره ده ځکه چه د هغه ذکر اُوس ورانديے راځی)، څوک وائي چه دا حضرت الياس دے، څوک وائي چه يوشع بن نون دے، څوک وائي دا اليسع دے (حالانکه دا خبره هم غلطه ده، په سورة ص کښے د هغه ذکر جُدا شوے دے او د ذوالکفل ذکر جُدا شوے دے)، څوک وائي چه دا د حضرت اليسع خليفه دے، او څوک وائي چه دا د حضرت ايوب ځوے وو چه د هغه نه روستو بيا نبی شو او اصلی نوم ئے بشر وو. آلوسی په روح المعانی کښے ليکلی دی چه "يهوديان وائي چه دا حزقيال (حزقي ايل) نبی دے چه د بنی اسرائيل د قيد په زمانه کښے (۵۹۷ ق م) پيغمبر شو او د خابور نهر په غاړه ئے په يو کلی کښے د پيغمبرئ کار کولو".

په دے مختلفو قولونو کښے څوک دا په يقين سره نه شی وئيلے چه واقعی دا کوم نبی دے. د موجوده زمانے مفسرين وائي چه دا حزقی ايل نبی دے، ليکن مونږ سره د دے رائے قائمولو د پاره څه مناسب

أَدْخَلْنٰهُمْ فِي رَحْمَتِنَا ۖ إِنَّهُمْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَذَا النُّوْنِ إِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا

هغوئ موږ په خپل رحمت کښې داخل کړل ځکه چه هغوئ صالحان وو.
او مَهِيْ والاله هم موږ دا نعمت ورکړو[82] یاد کړه هغه وخت کله چه هغه په غصه تلے وو[83]

دلیل نشته. بیا هم که چرې څه دلیل ملاؤ شی نو دا رائے قابلِ ترجیح کیدے شی، ځکه چه د بائیبل د حزقی ایل صحیفے د کتلو نه معلومیږی چه واقعی هغه د دے تعریف مستحق دے کوم چه په دے آیت کښې شوے دے یعنی صبرناک او نیک صالح. دے په هغه خلقو کښې وو کوم چه د یروشلم د آخری تباهئ نه مخکښې بخت نصر ګرفتار کړی وو. بخت نصر په عراق کښې د اسرائیلی قیدیانو یو نوے کلے د خابور دریاب په غاړه جوړ کړے وو چه نوم ئے تل آبیب وو. هم په دے مقام بانډې په سنه ۵۹۴ ق.م کښې حضرت حزقی ایل ته پیغمبری ملاؤ شوه، چه عمر ئے دیرش کاله وو، او دوه کاله مسلسل ئے دا خدمت کولو چه یو طرفته ئے مصیبت زپلی اسرائیلیان او بل طرفته ئے د یروشلم غافله او مست خلق او حاکمان رابیدارول. په دے لوئ کار کښې هغه دومره سخت مشغول وو چه کله د نبوت په نهم کال د هغه بی بی وفات شوه او خلق د هغه غم رازئ له راجمع شو نو ده خپل غم پریښودو او خپل قوم ئے د خدائے د هغه عذاب نه یرول شروع کړل کوم چه د هغوی په سربانډې ولاړ وو. (باب ۲۴. آیتونه ۱۵-۲۰). د بائیبل حزقی ایل صحیفه دا صحیفه ده چه هغه سړے ئے ولولی نو واقعی معلومیږی چه دا الهامی کلام دے.

۸۲ مراد دے ترے حضرت یونس. کله د هغه نوم اخستلے شوے دے او کله د "ذوالنون" او د "صاحب الحوت" یعنی د "ماهی والا" په القابو سره یاد کړے شوے دے. ماهی والا ورته په دے وجه نه وائی چه ګنی هغه به ماهی نیول یا به ئے خرڅول، بلکه په دے وجه ورته ماهی والا وئیلو چه هغه د الله تعالیٰ په حکم سره یو ماهی تیر کړے وو، لکه څنګه چه د سورۃ صافات په آیت ۱۴۲ کښې دی. د زیاتے تشریح دپاره اوګوره تفهیم القرآن، یونس حاشیه ۹۸ تا ۱۰۰. الصّٰفّٰت، حاشیه ،، تا ۸۵.

۸۳ یعنی هغه د خپل قوم نه ناراضه شو ولاړو، مخکښې د دے نه چه هغه ته د خدائے د طرفنه د هجرت حکم ملاؤ شوے وے او د هغه دپاره خپل کار پریښودل جائز شوے وے.

فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادٰى فِى الظُّلُمٰتِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ
سُبْحٰنَكَ اِنِّىْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٨٧﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ وَنَجَّيْنٰهُ
مِنَ الْغَمِّ وَكَذٰلِكَ نُـنْجِى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٨٨﴾ وَزَكَرِيَّآ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ
رَبِّ لَا تَذَرْنِىْ فَرْدًا وَّاَنْتَ خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿٨٩﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ وَ
وَهَبْنَا لَهٗ يَحْيٰى وَاَصْلَحْنَا لَهٗ زَوْجَهٗ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِى
الْخَيْرٰتِ وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا وَكَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ ﴿٩٠﴾

او دا خیال ئې وُوچه کنې مونږ به هغهٔ نۀ رانیسو[84]. آخر ئې په هغه د تورو تیرو نه آواز اُوکړو[85] "نشته دے بل خدائے بغیر له تانه بل څوک، پاک دے ستا ذات، بیشکه چه زهٔ قصوروار یم". پس مونږه د هغهٔ دُعا قبوله کړه او د غم نه مو خلاص کړو، او دغه شان مونږه مؤمنان بچ کوُو.

او زکریا له، کله چه هغهٔ خپل رب ته آواز اُوکړو چه "اے پروردګاره، ما یوازے مهٔ پریږده، او بهترین وارث هم ته ئې". نو مونږه د هغهٔ دُعا قبوله کړه او هغهٔ له مو یحیٰی ورکړو او د هغه ښځه مو د هغهٔ د پاره رُوغه کړله[86]. دے خلقو به د نیکئ په کارونو کښې منډے وهلے او مونږ ته به ئې د اُمید او د یرے سره آواز کولو او مونږ ته راټیټ شوی وُو[87].

[84] هغهٔ دا خیال اُوکړو چه په دے قوم باندے خو عذاب راتللو والا دے، اُوس ماله پکار دی چه چرته پناه واخلم چه هیڅ نه څه پکښې ضبط او عذابیږم. دا خبره خو په خپل ځائے قابل ګرفت نهٔ وه خو د الله تعالیٰ د اجازت نه بغیر د پیغمبر خپل کار پریښودل قابل ګرفت وُو.

[85] یعنی د ماهیٔ د خیټې نه چه په هغې کښې هم تیاره وه او د پاسه پرے د سمندر تیاره هم وه.

[86] د تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، اول جلد، آل عمران آیتونه ۳۷ تا ۴۱ د حاشیو سره. دریم جلد، مریم، آیتونه ۲ تا ۱۵ د حاشیو سره. د ښځے د روغولو نه مراد د هغې شنډ والے لرے کول دی او د بوډا والي باوجود د بچی راوړلو قابله جوړول دی. "بهترین وارث خو هم ته ئې" یعنی که ته اولاد را هم نهٔ کړے نو پروا نشته، ستا پاک ذات د وراثت د پاره کافی دے.

[87] په دے ورانده روستو عبارت کښې چه د پیغمبرانو ذکر کوم مقصد د پاره شوے د هغه لړ شان بیا په ذهن کښې راتازه کړئ. د حضرت زکریا د واقعے د ذکر کولو نه دا مقصد په ذهن کښې کینول دی چه دا ټول پیغمبران صرف بندګان او انسانان وُو، په هغوی کښې د خدائی هیڅ احتمال نهٔ وُو. بل چا ته اولاد بخښلو والا نهٔ وُو بلکه په خپله الله ته د اولاد د پاره زاری کونکی وُو. د حضرت یونس ذکر ځکه اُوشو چه د پیغمبرئ باوجود کله د هغه نه قصور اُوشو نو هغهٔ د هغې په سزا کښې رااُونیوے شو. او کله چه هغهٔ خپل رب ته

وَالَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهَا مِنْ رُّوْحِنَا وَجَعَلْنٰهَا وَابْنَهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩١﴾ اِنَّ هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ وَّاَنَا رَبُّكُمْ

او هغه زنانه چه د خپله پاک لمنې حفاظت ئې کړے وو.[۸۸] مونږه په هغې کښې د خپل روح نه پوکے اُوکړو[۸۹] او هغه او د هغې ځوئے مو د ټولے دُنیا د پاره نښه اُوګرځول۔

دا ستا اُمت په حقیقت کښې یو اُمت دے او زۀ ستاسو رب يم،

د عاجزئ سره اپيت کړو نو هغهٔ د الله په فضل سره د مکهی د خیټې نه ژوندے را اُوويستلے شو. د حضرت ايوب ذکر د دے د پاره اُوشو چه په پيغمبر باندې مصيبت راتلل څه نوی خبره نۀ ده، او په پيغمبر باندې هم چه کله مصيبت راشي نو د شفا د پاره الله ته زاري کوی۔ پيغمبر نور چاله شفا ورکولو اِلاٰنۀ وی بلکه پخپله خدائ نه شفا غوښتلو والا وی۔ بيا د دے ټولو خبرو سره يو طرفته دا حقيقت هم په ذهن کښې کينوی چه دا ټول پيغمبران د توحيد قائل وُو، خپل حاجتونه بے د يو الله نه بغير بل چا ته نۀ پيش کول، او بل طرفته دا هم ښائي چه الله تعالیٰ هميشه د عام طريقې نه خلاف د خپلو پيغمبرانو امداد کوی، که په شروع کښې پرې څومره آزميښتونه راغلی وی خو آخر د هغوئ دُعا گانے په معجزانه شان سره پوره شوی دی۔

[۸۸] حضرت مريم عليها السلام ته مراد ده۔

[۸۹] د حضرت آدم عليه السلام په حقله هم دا فرمائيلے شوی دی چه اِنِّيْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ طِيْنٍ ۞ فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ ۞ (ص۔ آيتونه ۷۱۔۷۲)۔ "زۀ د خاورے يو بشر جوړوم، نو (اے فرښتو) کله چه زۀ هغه پوره جوړ کړم، او په هغه کښې د خپل روح نه پوکے اُوکړم نو تاسو هغهٔ ته وړاندې سجده اُوکړئ۔" او دا خبره د حضرت عيسیٰ عليه السلام په حقله په مختلفو ځايونو کښې فرمائيلے شوی ده۔ په سورۃ نساء کښې فرمائي رَسُوْلُ اللّٰهِ وَكَلِمَتُهٗٓ ۚ اَلْقٰهَآ اِلٰى مَرْيَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ، (آيت ۱۷۱)۔ "د الله رسول او د الله فرمان چه مريم ته اِلقا کړے شو او د هغه د طرفه يو روح۔" او په سورۃ تحريم کښې فرمائي وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا (آيت ۱۲)، "او د عمران لور مريم چه د خپل شرمګاه حفاظت ئې اُوکړو نو مونږه پوکے اُوکړو په هغې کښې د خپل روح نه۔" د دے سره دا خبره هم په نظر کښې ساتل پکار دی چه الله تعالیٰ د حضرت عيسیٰ پيدائش ته او د حضرت آدم پيدائش ته يو شان پيدائش وائي، په سورۃ آل عمران کښې فرمائي "اِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ ۭ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ۞ (آيت ۵۹) "د عيسیٰ مثال د الله په نزد آدم غوندې دے چه هغه الله تعالیٰ د خاورے نه جوړ کړو بيا ئې اُوفرمائيل چه "شه" او هغه شی۔" په دے آيتونو باندې د غور کولو نه دا خبره ښکاره کيږی چه د پيدائش د عام طريقې په ځائے کله الله تعالیٰ په خپل حکم سره څوک نيغ په نيغه پيدا کول غواړی نو د هغهٔ د پاره "د خپل روح نه پوکے کول" الفاظ استعمالوی۔ د دے روح نسبت الله تعالیٰ ته غالباً چه په دے

فَاعْبُدُونِ ﴿۹۲﴾ وَتَقَطَّعُوٓا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ ۚ كُلٌّ اِلَيْنَا رٰجِعُوْنَ ﴿۹۳﴾ فَمَنْ
يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهٖ ۚ وَاِنَّا لَهٗ
كٰتِبُوْنَ ﴿۹۴﴾ وَحَرٰمٌ عَلٰى قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَآ اَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۹۵﴾ حَتّٰٓى

نو بس تاسو زما عبادت کوئ. خو (دا د خلقو شرارت دے چه) هغوئ په خپل منځ کښے خپل دين ټوټے ټوټے کړو[۹۱] — ټول موږ ته واپس راتلونکي دي.[۹۲] بيا چه څوک نيک عمل کوي، په دا حال کښے چه هغه د ايمان خاوند وي، نو د هغه د کار ناقدري به نه کيږي، او هغه موږ ليکو. او ممکنه نه ده چه کوم کلے موږ تباه کړے وي هغه دِ بيا واپس راشي[۹۲]. آن ترده پورے

وجه شرے ده چه د روح پوک وهل د معجزے پشان يوه غير عادي طريقه ده. د زياتے تشريح د پاره اوګوره تفهيم القرآن اول جلد، النسآء حاشيه ۲۱۲-۲۱۳-

۹۰ـه يعني دا مور او څوے دواړه نه خدايان وو او نه په خدائي کښے شريک وو بلکه د خدائے د نښونو نه يوه نښه وه. څنګه "نښه" وه، د دے د تشريح د پاره اوګوره سورة مريم حاشيه ۲۱ او سورة المومنون حاشيه ۴۳.

۹۱ـه لفظ "ستاسو" ټولو انسانانو ته خطاب دے. مطلب دا دے چه اے انسانانو، تاسو ټول په حقيقت کښے يو امت او يو ملت وئ، دنيا ته چه څومره پيغمبران راغلي دي هغوئ ټولو يو دين راوړے وو، او هغه اصل دين دا وو چه صرف يو الله د انسان رب دے او يواځے د الله بندګي او عبادت کول پکار دي. ستو ورد چه څومره مذهبونه پيدا شو هغه هم دا دين خلقو وران کړے دے او مختلف مذهبونه ئے ترے جوړ کړي دي. د دے اصلي دين نه يو يو څيز را اخستے دے او چا بل څيز، او بيا ئے ورسره د ځان نه نور څيزونه ملګري کړل او دغه شان بے شماره ملتونه جوړ شول. اوس دا خيال کول چه فلاني نبي فلانے مذهب جوړ کړو او فلاني نبي فلانے مذهب، او په انسانانو کښے دا فرق پيغمبرانو راوستلے دے، نو دا هسے يو غلط خيال دے. او د مختلفو مذهبونو دا اختلاف چه دا خپل ځان د مختلفو پيغمبرانو سره تړي، نو دا د دے خبرے دليل نه دے چه د ملتونو او مذهبونو اختلاف دَ پيغمبرانو راوستلے دے. خدائے چه کوم پيغمبران رالېږلي وو هغوئ مختلف مذهبونه نه شو جوړولے او نه ئے د يو خدائے نه علاوه د بل چا بندګي خلقو ته ښودلے شوه.

۹۲ـه د دے آيت درے مطلبونه دي:

يو دا چه په کوم قوم باندِ د الله عذاب نازل شوے دي هغه بيا هيڅکله نه شي پاسيدے د هغوئ دوباره ترقي کول او د هغوئ نوے ژوند نصيب کيدل ممکن نه وي.

دويم دا چه د تباه کيدونه روستو بيا هغه دنيا ته واپس راتلل او دوباره ورته د امتحان موقع ملاويدل ممکن نه دي. بيا خو به د الله تعالیٰ په عدالت کښے د هغوئ پيشي وي.

دريم دا چه د کوم قوم بد عملونه او ظلمونه او د حق نه پښا کوزيدل دِ حد ته ورسي چه په

إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ ﴿٩٦﴾
وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَإِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ أَبْصَارُ الَّذِينَ كَفَرُوا
يَا وَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا بَلْ كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٩٧﴾ إِنَّكُمْ

چه کله یاجوج او ماجوج پرانستے شي او دهرے لوړے نه هغوئ را اُوزي او د حقے وعدے د پوره کیدو وخت راتږدے شي نو ناګهانه به د هغے خلقو سترګے بَقّ پاتے شي چا چه کفر کړے وُو. وائي به چه "هائے زمونږه کمه نصیبه، مونږه د دے بد انجام نه په غفلت کښے پراته وُو، بلکه مونږه خطا کار[۹۴] وُو" بے شکه تاسو

هغوی یا نږ د الله تعالی د طرفنه د تباه کیدو فیصله اُوشي، نو هغوئ له بیا د رجوع کولو او د توبه ایستلو موقع نه شي ورکړے کیدے. د هغوئ د پاره بیا دا ممکنه نه وي چه د ګمراهئ نه بیخي لاره ته واپس راشي.

۹۳ د یاجوج او د ماجوج تشریح د سورة کهف په حاشیه ۶۲، ۶۹ کښے شوی ده. د هغوئ د پرانستلو مطلب دا دے چه هغوئ به په دنیا باندې داسے حمله اُوکړي لکه چه یو ښکاری ځناور ناساپه د پنجرے نه یا د پرې نه آزاد کړے شي. "د حقے وعدے د پوره کیدو وخت به را تږدے شي"، دا صفا وے طرفته اشاره ده چه په دُنیا به د یاجوج او د ماجوج حمله په آخره زمانه کښے وي، او د هغے نه روستو به فوراً قیامت راځي. د نبي صلی الله علیه وسلم کوم حدیث چه امام مُسلم د حُذیفه بن اَسید الغفاری د روایت نه نقل کړے دے هغه د دے آیت مطلب ښه واضح کوي. فرمائي چه "قیامت به تر هغے نه قائمیږي ترڅو چه لاس د هغے نه مخکښے لس علامے اُونه وینئ: لوګے، دجّال، دابّة الارض، د مغرب نه نمر راختل، د عیسی ابن مریم راکوزیدل، د یاجوج او د ماجوج حمله، درے ځایه د زمکے کیناستل (Landslide) یو په مشرق کښے، دویم په مغرب کښے او دریم د عرب په جزیره کښے، بیا به د تولو نه په آخر کښے د یمن نه یو سخت اُور راپورته شي چه خلق به محشر طرفته و رغونډوي (یعنی د هغے نه روستو به بس قیامت راځي) په یو بل حدیث کښے نبي د یاجوج او د ماجوج د خروج ذکر کړے دے او فرمائیلي ئے دي چه په هغه وخت کښے به قیامت دومره نږدے وي لکه د پوره ورځو حامله ښځه چه ګړدانه شي ویلے چه کله به بچے پیدا کیږي د شپے او که ورځے" کالحامل المتم لا یدری اهلها متی تفجؤهم بولدها لیلا او نهارًا". لیکن په قرآن مجید او په احادیثو کښے چه د یاجوج او د ماجوج په حمله څه بیان راغلے دے د هغے نه دا معلومیږي چه دا دواړه به یو ځائے کیږي او په جمع به په دنیا باندې حمله کوي. کیدے شي چه قیامت ته په نږدے زمانه کښے دا دواړه په خپلو کښے او جنګیږي او بیا د هغوئ جنګ په توله دُنیا کښے د فساد سبب جوړ شي.

۹۴ په "غفلت" کښے بیا هم یو قسم د عُذر وو، په دے وجه به هغوئ اول د خپل غفلت ذکر اُوکړي او بیا به بیخپله په دے خبره ګواهي اُوکړي چه مونږ ته پیغمبران راغلي وُو او هغوی مونږه ده

وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ۭ اَنْتُمْ لَهَا وٰرِدُوْنَ ﴿۹۸﴾
لَوْ كَانَ هٰٓؤُلَاۗءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوْهَا ۭ وَكُلٌّ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۹۹﴾ لَهُمْ

اوستاسو هغه خدایان چه تاسو الله پریږدئ او د هغوئ عبادت کوئ، د دوزخ خشاک دئ، هم هلته به تاسو ورځئ ۹۵
که واقعی دوئ خدایان وئ نو هلته به نه تلل. اوس به ټول په هغې کښې همیشه اوسیږي". هلته به هغوئ

ورځه نه خبردار کړي، ځو نو په حقیقت کښې موږ ته نه په غفلت کښې پراته وو او نه بې خبره وو بلکه خطا کار وو.

۹۵ په روایتونو کښې راغلي دي چه په دې آیت باندې عبدالله بن الزبعری اعتراض اوکړو چه بیا خو په دې زمونږه خدایان نه، بلکه مسیحؑ او عزیرا و فرښتې هم دوزخ ته ځي، ځکه چه په دُنیا کښې د هغوئ هم عبادت کیږي. په جواب کښې نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل "نعم، کل من احب ان یعبد من دون الله فهو مع من عبده"، "هو، هر هغه څوک چه دا خوښه وي چه د الله پځائے د دهٔ بندګي اوشي نو هغه به د هغو خلقو سره وي چا چه د هغه بندګي اوکړه" د دې نه معلومیږي چه چا خلقو ته د خدائے پرستۍ تعلیم ورکړے وي او بیا خلقو د هغه نه خدائے جوړ کړو، او یا دا چه هغه هم د دې نه خبر نه وي چه ګنې په دُنیا کښې هم د هغه څوک بندګي کوي، نو هغوئ به دوزخ ته نه ځي ځکه چه هغوئ د دې شرک ذمه وار نه دي. البته چه کومو خلقو دا کوشش اوکړو چه خلق د دوئ ته خدائے اووائي او د دوئ د په کوشش سره خلق په شرک کښې اخته شو، نو هغوئ به د دوئ عبادت کونکو سره دوزخ ته ځي. دغه شان هغه خلق به هم دوزخ ته ځي چا چه د خپل غرض د پاره د الله نه بغیر بل معبود خلقو له جوړ کړو، ځکه چه د مشرکانو به اصلي معبودان هم دوی وي، او هغه ظاهري بُتان وغیره به معبودان نه وي کوم چه دې مفسدانو د خلقو د پاره جوړ کړي وو. دغه شان شیطان هم د خلقو په معبودانو کښې راځي، ځکه چه د دهٔ په اشاره باندې خلقو څه خدایان جوړ کړي دي په اصل کښې هغه معبودان نه دي، بلکه اصلي معبود شیطان پخپله دے ځکه چه دا کار د دهٔ په اشاره باندې کیږي. د دې نه علاوه د کانړو او د لرګو وغیره بُتان به هم د مشرکانو سره دوزخ ته داخلولے کیږي د پاره د دې چه د دې بُتانو په وجه به مشرکانو د دوزخ اور نور هم ورتېز شي، او چه د دوئ په لید و سره مشرکان نور هم خفه شي ځکه چه مشرکانو خو دا طمع وه چه دا بُتان به د هغوئ شفاعت کوي او دا اُ لټا د هغوئ د سخت عذاب سبب اوګرزیدل.

فِيهَا زَفِيرٌ وَّهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ﴿١٠٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا
الْحُسْنَىٰ أُولَٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴿١٠١﴾ لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا وَهُمْ
فِي مَا اشْتَهَتْ أَنفُسُهُمْ خَالِدُونَ ﴿١٠٢﴾ لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ
وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَٰٓئِكَةُ هَٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴿١٠٣﴾
يَوْمَ نَطْوِي السَّمَآءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ

پُرشار کوي[96] او حال به دا وي چه په هغې کښې به د شور د لاسه هيڅ نه اورېدې کيږي. پاتې شو هغه خلق چه د هغوی په حقله به زمونږه د طرفه د خير فيصله د اول نه شوې وي، نو هغوی به يقيناً د هغې (عذاب) نه لرې ساتلې کيږي،[97] د هغې کشار قدر لمبه هم نه اوري، او هغوی به هميشه هميشه د خپلې خوښې په څيزونو کښې اوسيږي. د هغه د غټې يرې وخت به هغوی د ذره هومره نه پريشانه کوي،[98] او فرښتې به ورته په عزت سره راوړاندې کيږي چه "دا ستاسو هغه ورځ ده چه ستاسو سره به ئې وعده کيدله."

هغه ورځ چه آسمان به مونږه داسې راانغاړو لکه چه په طومار کښې د کاغذ پاڼې رانغښتلې کيږي. لکه څنګه چه مونږه اول ځل د پيدا ښت ابتدا کړې وه دغه شان به ئې بيا

٩٦ په اصل کښې لفظ "زَفِيرٌ" استعمال شوې دے، د سختې ګرمۍ په حالت کښې چه سړے ستړے وي او ساه اخلي نو پرشا رغوندوکوي دے ته په عربۍ ژبه کښې زفير وائي۔

٩٧ د دے نه مراد هغه خلق دے چه په دُنيا کښې ئې نيکه لار اختيار کړې وي۔ د داسے خلقو د پاره الله تعالىٰ د اول نه دا وعده کړې ده چه هغوی به د دے عذاب نه محفوظ ساتلې کيږي۔

٩٨ يعنې د محشر ورځ او د خداۓ سره د پيشۍ وخت، چه د عامو خلقو د پاره به د پريشانۍ او د يرې وخت وي، ليکن نيکان خلق به په دغه وخت کښې به د اطمينان په حالت کښې وي۔ ځکه چه هر څه به د هغوی د خيالاتو د نقشې مطابق کيږي۔ په دُنيا کښې چه هغوی کوم ايمان راوړے وُو او کوم نيک عملونه ئې کړي وُو د هغې په وجه به د هغوی حوصله غټه وي او هيڅ غم به ورسره نه وي او د الله په فضل سره به په زړونو کښې دا اميد لري چه ډير زر به ورته د خپلو نيکو عملونو ښا ښا ملا ؤشي۔

نُعِيدُهُ ۚ وَعْدًا عَلَيْنَا ۚ إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ ﴿١٠٤﴾ وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ
مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ﴿١٠٥﴾ إِنَّ فِي
هَٰذَا لَبَلَاغًا لِقَوْمٍ عَابِدِينَ ﴿١٠٦﴾ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ ﴿١٠٧﴾

دوباره پیدا کړو۔ دا یوه وعده ده زمونږه په ذمه، او دا کار به مونږه خامخا کوو۔ او په زبور کښې مونږ د نصیحت نه روستو داليکلې دی چه د زمکې وارثان به زمونږه نیکان بندګان وی۔ په دې کښې یو لوئ خبر دے د عبادت ګذارو خلقو د پاره۔ ۹۹

اے محمد ﷺ، مونږ چه ته دُنیا ته لیږلے یې، نو دا په اصل کښې د دُنیا والا په حق کښې زمونږ رحمت دے۔ ۱۰۰

۹۹ ځینې خلق د دے آیت په مطلب نه دی پوه شوی او د دے نه ئې یو داسې مطلب اخستلے دے چه هغه د ټول قرآن تردید کوی او د دین ټول نظام ختموی۔ هغوئ د آیت نه دا مطلب اخلی چه د دُنیا په موجوده ژوند کښې به د زمکې وراثت (یعنی حکومت او بادشاهی او د زمکې په وسیلو باندې تصرُّف) صرف نیکانو خلقو ته ملاویږی او خاص دوئ له الله تعالیٰ دا نعمت ورکوی۔ بیا د دے قاعدے نه هغوئ دا نتیجه راوباسی چه په صالح او په غیر صالح کښې د فرق کولو معیار هم دا د زمکې وراثت دے، چا ته چه دا وراثت ملاؤ شی هغه صالح دے او چا ته چه ملاؤ نه شی نو هغه غیر صالح دے۔ د دے نه روستو هغوئ بیا د هغې قومونو ذکر کوی چه هغوئ اول هم په دُنیا کښې د زمکې وارثان وو او اوس هم د وراثت مالکان دی۔ هغوئ وینی چه کافران، مشرکان دهریه، فاسقان او فاجران اول هم د زمکې وارثان وو او اوس هم دی۔ په کومو کومو کښې چه هغه ټول صفتونه ملګښې هم وو او اوس هم پکښې دی کوم صفتونو ته چه قرآن کفر، فسق، فجور، ګناه او بدی وائی، هغوئ د دے وراثت نه محرومه نه شول بلکه دا وراثت ورته ملاؤ شوے دے او اوس هم ورته ملاویږی۔ د فرعون او نمرود نه راواخله د نن زمانې د کمونسټو حاکمانو پورې ټول په ښکاره د خدائے تعالیٰ نه منکر دی بلکه د خدائے تعالیٰ مقابله کوی او بیا هم د زمکې وارثان دی۔ دے منظر ته چه هغوئ اوګوری نو دا رائے قائموی چه قرآن کومه قاعده بیان کړې ده هغه غلطیدے خو نه شی، البته غلطی چه څه ده نو هغه د لفظ صالح په هغه مطلب کښې ده کوم چه تر مسلمانان اخلی۔ نو هغوئ د صلاح یو داسې نوے تصوّر لټوی چه د هغې مطابق د زمکې وارثان ټول یو شان "صالحان" اوګرزی خواه که هغوئ ابوبکر صدیق او عمر فاروق وی او که چنګیز خان او هلاکو خان وی۔ د دے نوی تصوّر په لټون کښې د ډارون د ارتقاء نظریه د هغوئ رهنمائی کوی او قرآن چه د "صلاح" کوم تصوّر پیش کړے دے دا هغوئ د ډارون د "صلاحیت" (Fitness) د تصوّر سره یو شان کوی۔

د دے نوی تفسیر په رڼا کښې د دے آیت دا معنیٰ جوړیږی چه کوم خلق ملکونه فتح کوی او د خپل طاقت په زور په ملکونو حکومت کوی او د زمکې وسائل په کامیابئ سره استعمالوی نو هغوئ د خدائے "صالحان بندګان" دی او د هغوئ دا کار عین "عبادت" دے، او د هغوئ کا رد ټولو "عابدانو" خلقو د پاره یو پیغام دے

چه که چرې تاسو د ا عبادت نۀ کوئ او په دې وجه د زمکې د وراثت نه محرومه يئ نو نۀ تاسو صالحان کيدې شئ او نۀ د خدائ عبادت گذار بندګان.

دې حضراتو چه دا معنیٰ اوکړه نو روستو ورته دا خبره وړوړاندې شوه چه که چرې د "صلاح" او د "عبادت" دا معنیٰ اوشي نو بیا د قرآن د تعلیم مطابق هغه کوم ایمان (بالله، بالیوم الآخر، بالرسل او بالکتب) دے چه د هغې نه بغیر الله تعالیٰ یو نیک عمل هم نۀ قبلوی؟ او بیا د قرآن د دې دعوت څۀ مطلب دے چه د هغې شریعت پیروی کوئ کوم چه الله تعالیٰ د خپل رسول په ذریعه رالیږلے دے؟ او بیا د قرآن د دے با ربار ویناڅۀ مطلب دے چه چا رسول ؐ نۀ منو او د خدائ په حکمونو ئې عمل اونۀ کړو هغه کافران فاسق دی او د عذاب مستحق دے؟ دا داسې خبرې وې چه که چرې دې خلقو پرې په ایمانداری سره غور کړے وے نو دا به ورته معلومه شوې وه چه د دے آیت په مطلب بیانولو کښې د هغوی نه سخته غلطي شوې ده. لیکن هغوئ د خپلې غلطئ منلو په ځائې بڼه په زوروتیا سره د اسلام، د توحید، د آخرت او د رسالت وغیره معنے په دې غرض بدلے کړے چه د هغوی د دے آیت د تفسیر سره مطابقت اوخوری او د دے یو کار د تیک کولو د پاره هغوی د قرآن ټول تعلیمات ګډ وډ کړل. او بیا لطیفه دا ده چه څوک د هغوی د دے تفسیر نه اختلاف کوی نو هغوی پرې الټا دا الزام لګوی چه "پخپله نۀ بدلیږی او قرآن بدلوی". دا په اصل کښې د مادی ترقئ د خواهش لرلو هیضنه ده چه په څینو خلقو داسې لګیدلې ده چه هغوئ د قرآن په معنوی تحریف کښې هم هیڅ باک نۀ کوی.

د هغوئ په دے تفسیر کښې اولنئ بنیادی غلطي دا ده چه دا خلق د یو آیت داسې تفسیر کوی په هغه د قرآن د ټولو تعلیماتو نه خلاف دے. حالانکه اصولاً د قرآن د هر آیت صرف هغه تفسیر صحیح کیدے شی کوم چه د قرآن د مجموعي نظامِ فکر سره مطابقت لری. کوم سړی چه یو ځل هم په غور سره د قرآن د لوستلو کوشش کړے وی نو هغه ته به خامخا دا معلومه وی چه "قرآن کوم څیز نۀ نیکی او تقوی وائی د هغې مطلب مادی ترقی او د حکمرانئ کولو صلاحیت" نۀ دے. او که د لفظ "صالح" نه مطلب "صاحبِ صلاحیت" واخستلے شی نو دا یو آیت د ټول قرآن د مطلب نه مخالف کیږی.

دویمه بنیادی غلطي دا ده چه دا خلق یو آیت د وړاندې روستو عبارت نه جدا کړی او بیا پخپله خوښه د هغې د الفاظو نه معنیٰ راوباسی، حالانکه د هر آیت صرف هغه معنیٰ صحیح کیدے شی کوم چه د وړاندې روستو عبارت سره مناسبت لری. که چرې دا غلطي نۀ وے شوی نو ډیره په آسانئ سره دا معلومیدے شوه چه د ډیره نه کومه خبره راروانه ده هغه په عالمِ آخرت کښې د مؤمنانو صالحانو او د کافرانو او د مشرکانو د انجام بحث کوی. په دے مضمون کښې دننه ناساپه د دے خبرې د بیانولو اخر څۀ موقع وه چه په دنیا کښې د زمکې د وراثت انتظام د کوم قاعدې مطابق کیږی.

د تفسیر چه کوم صحیح اصول دی د هغې مطابق چه سړے اوګوری نو د آیت مفاد امطلب دے چه په عالمِ آخرت کښې به د زمکې وارثان صرف صالحان خلق وی او د ژوند په هغه هیشه نظام کښې به د دنیاوی ژوند عارضی نظام پشان حالت نۀ وی چه په زمکه باندې به د فاسقانو او ظالمانو حکمرانی هم رائی. دا مضمون د سورة مومنون

په آیت ۱۱۰ او ۱۱۱ کښې هم بیان شوې دې او دا دې نه هم زیات په تفصیل سره د سورة زُمَر په آخر کښې بیان شوې دې چې هلته الله تعالیٰ د قیامت ذکر کوي او د اول صُور او د دویم صُور ذکر کوي او بیا روستو د چیل عدالت ذکر کوي، بیا د کفرو انجام بیانوي او ورپسې د نیکو خلقو انجام په دې طریقه بیانوي چې "وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ ○ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ○ " او کوم خلقو چې د خپل رب د یرې نه تقوی اختیار کړې وه هغوی به جنت ته ډلې ډلې بوتلې شي آن تر دې چې کله هغوی هلته اورسي نو هغوی ته به د جنت دروازې پرانستې شي او د جنت انتظام کوونکي فرښتې به ورته اووائي چې سلام دې وي په تاسو باندې، تاسو ډیر ښه وئ، راځئ اوس دلته د همیشه اوسیدلو د پاره ورننوځئ. او هغوی به وائي چې ثنا ده هغه خدائ لره چې زمونږ سره ئې خپله وعده پوره کړه او مونږ ئې د زمکې وارثان کړو، اوس چې مونږ به په جنت کښې کوم ځائې چیرول غواړو هلته ځان له ځائې جوړ ولې شو، پس ډیر ښه اجر دې د عمل کوونکو د پاره "۔ اوګورئ دا دواړه آیتونه یو خبره بیانوي او په دواړو آیتونو کښې د زمکې د وراثت تعلق د عالم آخرت سره دې نه چې د دې دُنیا سره۔

اوس زبور اوګورئ چې په دې آیت کښې ئې حواله ورکړې شوې ده. اګرچه دا خبره زمونږ د پاره مشکله ده چې په بائیبل کښې اوس زبور نومې کوم کتاب دې چې آیا هغه په خپل اصلي شکل کښې دې او که نه دې ځکه چې په دې کښې د مزامیر داؤد نه علاوه د نورو خلقو مزامیر هم خلط ملط کړې شوې دي او اصلي زبور هیچرته نشته۔ بیا هم چې کوم زبور اوس په دې وخت کښې موجود دې په هغې کښې د نیکئ او د توکل د نصیحت کوونکو روستو دا بیان دې:

"ځکه چې بدکردار خلق به ختم کړې شي لیکن کوم خلق چې د خدائ نه اُمید لري هغوی به د ملک وارثان وي. ځکه چې په لږ ساعت کښې به شریر ختم کړې شي، ته به د هغه ځائې ته په غور سره کورې خو هغه به نه وي، لیکن صبرناک به د ملک وارثان وي او د ډیر سلامتئ د وجه نه به خوشحاله وي ......

د هغوی میراث به د همیشه د پاره وي ...... صادقان به د زمکې وارثان وي او په هغې کښې به همیشه آباد وي" (۳۷ د داؤد مزمور۔ آیتونه ۹۔ ۱۰۔ ۱۱۔ ۱۸۔ ۲۹)۔

اوګوره دلته د صادقانو خلقو د پاره د زمکې د همیشه وراثت ذکر شوې او په آسماني کتابونو کښې د همیشه ژوند تعلق د آخرت سره دې نه چې د دُنیا د ژوند سره۔

په دُنیا کښې د زمکې د عارضي وراثت تقسیم چې په کومه قاعده شوې دې هغه په سورة اعراف کښې په دې طریقه بیان شوې دې چې إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ (آیت ۱۲۸)، "زمکه د الله ده، په خپلو بندګانو کښې چې چاته په میراث کښې ورکول غواړي هغه له ئې ورکوي" د الله تعالیٰ د مشیت لاندې دا وراثت مومن او کافر، صالح او فاسق، فرمانبرداره او نافرمانه، هر چاته ملاویږي خو د عملونو بدلې په طور نه بلکه د امتحان په طور، لکه ځنګه چې د دې آیت نه روستو په دویم آیت کښې فرمائي وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ○ (آیت ۱۲۹) "او هغه به تاسو په زمکه کښې خلیفګان جوړ کړي بیا به کتې شي

قُلْ اِنَّمَا یُوْحٰۤی اِلَیَّ اَنَّمَاۤ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۰۸﴾
فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ اٰذَنْتُكُمْ عَلٰی سَوَآءٍ ؕ وَاِنْ اَدْرِیْۤ اَقَرِیْبٌ اَمْ بَعِیْدٌ
مَّا تُوْعَدُوْنَ ﴿۱۰۹﴾ اِنَّهٗ یَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ وَیَعْلَمُ مَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۱۱۰﴾

---

دوی ته اُووایه" ما ته چه کوم وحی راځی هغه دا ده چه ستاسو خدائے صرف یو خدائے دے، نو آیا تاسو منونکی یئ؟ که هغوی مخ واړوی نو ته ورته اُووایه چه ما بنه په ښکاره تاسو خبردار کړی یئ. اُوس زۀ په دے نۀ پوهیږم چه ستاسو سره د کوم څیز وعده کیږی چه آیا هغه نزدے دے او که لرے. الله په هغه خبرو هم پوهیږی کومے چه په اُوچت آواز کیږی او په هغه خبرو هم کومے چه تاسو په پټه کوئ

---

چه تاسو څنګه عمل کوئ" په دے وراثت کښے هیڅوک نشته. دا مستقل او همیشه بندوبست نۀ دے. دا صرف د یو امتحان موقع ده چه د الله تعالیٰ د قاعدے مطابق په دنیا کښے مختلفو قومونو ته وار په وار ورکړے کیږی. د دے برعکس به په آخرت کښے د دے زمکے همیشه بندوبست اُوشی، او دا بندوبست به د قرآن د دے قاعدے مطابق اُوشی چه" زمکه د الله ده او الله به صرف مؤمنان صالحان خلق د دے وارثان جوړوی، د امتحان په طور نۀ، بلکه د هغه نیک عمل د بدلے په طور کوم چه هغوی په دنیا کښے کړی وی" ( د زیاتے تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، النور، حاشیه ۸۳).

۱۰۰ دویم ترجمه دا هم کیدے شی چه" مونږ ته د دنیا والو د پاره د رحمت په طور لیږلے یئ" په دواړو صورتونو کښے مطلب دا دے چه د نبی صلی الله علیه وسلم پیغمبری په اصل کښے د انسانانو د پاره د خدائے رحمت او مهربانی ده، ځکه چه هغه دُنیا ته راغے او په غفلت کښے پراته خلق ئے را بیدار کړل، او هغوی له الله تعالیٰ علم ورکړے دے چه په هغے د حق او د باطل فرق واضح کوی، او هغه ته ئے د سلامتیا لارا او د تباهئ لار صفا صفا ښودلی ده. د مکے کافرانو به د نبیؐ پیغمبری د ځان د پاره زحمت او مصیبت ګنړلو او وئیل به ئے چه د دے سړی زمونږ په قوم کښے بے اتفاقی راوستلی ده او رشته داران ئے د یو بل نه جُدا کړی دی. د دے په جواب کښے فرمائی چه بے وقوفانو، تاسو چه کوم سره زحمت ګنړئ دا په حقیقت کښے ستاسو د پاره د خدائے رحمت دے.

۱۰۱ یعنی د خدائے عذاب چه د رسالت د نۀ منلو په وجه به راځی، خواه که په هر شکل کښے وی.

۱۰۲ اشاره ده هغه مخالفو خبرو ته او د سازش هغه پټو پټو خبرو ته کومے چه د سورة په شروع کښے ذکر کړے شوی وے. هلته هم د رسول په خوله هغوی له دا جواب ورکړے شوے وُو چه تاسو کومے خبرے جوړوئ هغه ټولے خدائے اُوری او په ټولو پوهیږی. یعنی په دے مه دوکه کیږئ چه دا خبرے به هوا کښے والوتلے او د دے به هیڅ تپوس نۀ کیږی.

---



وَ اِنْ اَدْرِیْ لَعَلَّهٗ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَ مَتَاعٌ اِلٰى حِیْنٍ ﴿۱۱۱﴾ قٰلَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ ؕ وَ رَبُّنَا الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ ع

او زما خو دا خیال دے چه شاید دا (تاخیر) ستاسو دَ پاره یوه فتنه دَه[۱۰۳] او تاسو لږو خاص وخت پورے دَ مزے کولو موقع درکړے کیږی"۔

(آخرداچه) رسول اُووے چه" اے زما ربه، حقه فیصلهٔ وکړه، او اے خلقو، تاسو چه کومے خبرے جوړوئ دَ هغے په مقابله کښے زمونږه پروردګار چه رحمٰن دے زمونږ دَ پاره دَ امداد ذریعه دهٔ"۔ ع

---

[۱۰۳] یعنی تاسو دَ دے تاخیر په وجه په فتنه کښے پریوتی یئ۔ تاخیر خو دَ دے غرض دَ پاره دے چه تاسو له دَ ځان سمولو دَ پاره کافی مهلت درکړے شی۔ خو تاسو په دے دوکه کښے پریوتئ چه ګنی دَ نبیؐ ټولے خبرے دروغ دی، که چرے دا رښتینے نبی دَ ے او دَ خدائے دَ طرفه راغلے وے نو دَ دهٔ په دروغژن کولو به په موږه څوا عذاب راغلے وے۔

# دخانه کعبې نقشه



# الحَجّ

**نوم** | دَ دے سورة نوم دَ څلورم رکوع دَ دويم آيت وَاَذِّنۡ فِى النَّاسِ بِالۡحَجِّ نه اخستلے شوے دے۔

**دَنازليدو زمانه** | په دے سورة کښے دَ مکّى سورتونو او دَ مدنى سورتونو خاصيتونه ګډ وډ دى. په دے وجه دَ مفسرينو په دے خبره کښے اختلاف دے چه دا مکّى دے او که مدنى۔ ليکن زمونږ په نزد وجه دا ده چه دَ دے سورة يو حِصّه دَ مکّى دور په آخر کښے او دويمه حصه مدنى دور په شروع کښے نازله شوى ده۔ او په دے وجه دَ دواړو دورونو خاصيتونه په دے کښے را جمع شوى دى.

دَ اولنۍ حصے دَ انداز بيان نه صفا دا معلوميږى چه دا حصه په مکه کښے نازله شوى ده او غالب ګمان دا دے چه دا حصه دَ مکے په آخرى دور کښے دَ هجرت نه لږه شان مخکښے نازله شوى ده. دا حصه په آيت ۲۴ (وَهُدُوۡۤا اِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الۡقَوۡلِ وَهُدُوۡۤا اِلٰى صِرَاطِ الۡحَمِيۡدِ) باندے ختميږى دَ دے نه روستو دَ "اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَيَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ" نه يکدم دَ مضمون
[illegible] حصه مدينه منوره

په هغه کښې مسلمانانو ته د جنګ اجازت ورکړې شوې دې. او د حدیثونه دا خبره ثابته ده چه دا اجازت نه روستو فوراً د قریشو خلاف عملي سرګرمیانې شروع شوې او اولنې مهم په صفر سنه ۲ هـ کښې د بحر احمر غاړې ته روان شو چه د غزوه وَدّان یا د غزوه ابواء په نوم مشهور ده.

**موضوع**: په دې سورة کښې درې ډلې مخاطب دي. د مکې مشرکان، مذبذب مسلمانان، او صادق مؤمنان.

مشرکانو ته نصیحت په مکه کښې شروع شو او په مدینه کښې سرته اُورسیدو. په دې نصیحت کښې هغوی ته په زور او زیر سره خبره کړې شوې چه تاسو ضد اُوکړو او په خپلو غلطو خیالاتو باندې ټینګ شوئ، خدائے مو پریښودو او په هغه معبودانو باندې مو اعتماد اُوکړو چه د هغوی سره هیڅ طاقت نشته، او د خدائے رسول مو دروغ اُوګنړو. اُوس به ستاسو انجام هم هغه وی لکه څنګه چه ستاسو نه مخکښې د کراهانو خلقوؤ. تاسو چه نبیؐ دروغ اُوګنړو او د خپل قوم په نیکانو خلقو مو ظلم اُوکړو نو خپل نقصان مو اُوکړو. د دې په وجه به په تاسو د خدائے کوم غضب نازلیږی د هغې نه تاسو د ابناوټي معبودان نه شي بچ کولے. د دې اخطار نه د خبرداري سره سره هغوی ته په ټول سورة کښې ځائے په ځائے نصیحت شوې دې او د شرک خلاف او د توحید او د آخرت په حق کښې ورته اثرناک دلیلونه هم پیش کړې شوی دی.

مذبذبو مسلمانانو د خدائے بندګي قبوله کړې خو وه لیکن په دې لار کښې څه خطره او تکلیف برداشت کولو ته تیار نه وُو. هغوی ته بنه په سختي سره ویلے شوی دی چه آخر دا څنګه ایمان دے چه که خوشحاله خوشحالي وی نو بیا الله ستاسو خدائے وی او تاسو د هغه بندګان یئ. خو چه کله د خدائے په لار کښې مصیبت راشي نو بیا نه الله ستاسو خدائے وی او نه تاسو د هغه بندګان یئ. حالانکه په دې طریقه تاسو ځان نه هغه مصیبت او هغه نقصان یا تکلیف نه شئ لرے کولے کوم چه خدائے ستاسو په نصیب کښې لیکلے وی.

مؤمنانو ته په دوُو طریقو سره خطاب شوې دې. یو خطاب داسې دې چه په هغې کښې هغوی بچله هم مخاطب دی او د عربو عام خلق هم. او په دویم خطاب کښې صرف مومنان مخاطب دی.

په اولني خطاب کښې د مکې مشرکانو ته ویلے شوی دی چه تاسو مسلمانانو د مسجد حرام نه بند کړی دی. تاسو بنه نه دی کړی ځکه چه مسجد حرام ستاسو څه ذاتي جایئداد نه دے او نه تاسو ته دا حق حاصل دے چه خلق د حج نه منع کړئ. دا اعتراض یو حق اعتراض وُو او په سیاسي حیثیت سره د قریشو خلاف یوه غټه جنګي حمله وه. په دې سره د ټول عرب په ذهن کښې دا سوال راپیدا شو چه آیا قریش د حرم خادمان دی او که مالکان؟ که نن د خپله ذاتي دشمنۍ په وجه هغوی یوه ډله د حج نه منع کوی او په هغې باندې څوک غږ اُونه کړی نو کیدې شي چه صباله د هغوی د چا سره تعلقات خراب شي او په هغوی هم حج او عمره بند کړي. په دې سلسله کښې د مسجد حرام تاریخ بیان کړې شوې دې او دا ویلے شوی دی چه کله حضرت ابراهیم علیه السلام د خدائے په حکم سره کعبه جوړه کړه نو ټولو خلقو ته ئے د حج کولو اعلان اُوکړو او د

اوږله ورځه نه ده د مقامی خلقو او د مسافرانو د پاره یو شان حقونه مقرر کړل - او دا بله طرفته
دا وییلے شوی دی چه دا کور د شرک د پاره نه بلکه د یو خدای د بندګۍ د پاره جوړ شوے وو،
اوس دا دیره بې مناسبه ده چه هلته د یو خدای بندګی منع وی او د بتانو د بندګۍ د پاره
د پوره آزادی وی.

په دویم خطاب کښې مسلمانانو ته اجازت ورکړې شوې ده چه د قریشو د ظلم جواب په
طاقت سره ورکړی او ورسره ورسره هغوی ته دا هم وییلے شوی دی چه کله ستاسو اقتدار راشی
نو تاسو یکومه طریقه اختیارول پکار دی او په خپل حکومت کښې به کوم مقصد د پاره کار کوئ.
دا مضمون د سورة په منځ کښې هم دے او د سورة په آخر کښې هم - په آخر کښې د مؤمنانو د پاره د "مسلمان"
نوم باقاعده اعلان اوشو او دا اوفرمایلے شو چه په اصل کښې تاسو د حضرت ابراهیم جانشین
یئ، تاسو د دې خدمت د پاره غوره کړې شوی یئ چه په دنیا کښې په خلقو باندې د ګواه په
حیثیت سره ودرید کړئ یعنی د شهادت علی الناس په مقام ودریږئ، اوس تاسو له پکار
دی چه د دنیا مخ ته د مونځ قائمولو (اقامتِ صلوٰة) د زکوٰة ورکولو (ایتاء زکوٰة) او د نیکو کارونو
کولو یوه بهترینه نمونه پیش کړئ، او د الله په بروسه د الله د کلمه د اوچتولو د پاره جهاد
اوکړئ.

د دې سره د سورة بقره او د سورة انفال په دیباچو باندې هم نظر واچوئ نو به مطلب
به په آسانه پوهه شئ.

## سُوْرَةُ الْحَجِّ مَدَنِيَّةٌ

اٰیاتہا ۷۸ — رکوعاتہا ۱۰

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۚ اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيْمٌ ①

اے خلقو، د خپل رب د غضب نه ځان ساتئ، حقیقت دا دے چه د قیامت زلزله ډیره (هیبتناک) شے دے۔[1]

[1] دا زلزله به د قیامت په اوّل حالت کښې وی او غالب یقین دا دے چه دا به په هغه وخت کښې وی کله چه زمکه ناساپه اُلټا گرځیدل شروع کړی او نمر د مغرب نه را او خیژی۔ دا خبره په پخوانو مفسرینو کښې علقمه او شعبی بیان کړی ده چه "یکون ذلک عند طلوع الشمس من مغربها"۔ او هم دا خبره د هغه اُوږد حدیث نه معلومیږی کوم چه ابن جریر او طبرانی او ابن ابی حاتم وغیره د حضرت ابوهریره د روایت نه نقل کړے دے۔ په هغې کښې نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د "نفخ صُور" درے مرحلې دی۔ یوه نفخ فزع، دویمه نفخ صَعق او دریم نفخ قیام لرب العلمین۔ یعنی د اول پوکی د آواز سره به عامه یره او پریشانی پیدا شی، د دویم پوکی د آواز سره به ټول مړه شی او د دریم پوکی د آواز سره به ټول خلق را ژوندی شی او د خدائے په وړاندې به پیش کړے شی۔ بیا نو د اولنی آواز تفصیلی حالت بیانوی چه په هغه وخت کښې د زمکه حالت د هغې کشتۍ په شان وی چه هغه سمندر په چپو کښې راگیره شوې وی او کله یو خوا کږه شی او کله بل خوا، یا به د هغه فانوس په شان وی چه هغه آوېزان وی او هر اوړه تیزه تیزه تالئ وړکوی۔ په هغه وخت کښې چه به د زمکې په مخ څه تیریږی د هغې نقشه د قرآن مجید په مختلفو ځایونو کښې بیان کړې شوې ده مثلاً:

فَاِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ۙ وَّحُمِلَتِ الْاَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ۙ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ۙ (الحاقة)

بیا چه کله په صُور کښې یو پوکے اُووهلے شی او زمکه او غرونه اوچت کړے شی او په یو وار سره مات کړے شی نو هغه عظیمه واقعه به راشی۔

اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا ۙ وَاَخْرَجَتِ الْاَرْضُ اَثْقَالَهَا ۙ وَقَالَ الْاِنْسَانُ مَا لَهَا ۚ (الزلزال)

هر کله چه زمکه به تیزه اُوخوزولے شی او خپل دننه بوج به بهر را اُوغورزوی او انسان به اُووائی چه دا په دے څه شوی دی۔

يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ۙ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ۗ قُلُوْبٌ يَّوْمَئِذٍ وَّاجِفَةٌ ۙ اَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ۘ (النازعات)

په کومه ورځ چه د زلزلې یو جړق راشی او ورپسې بل جړق، په هغه ورځ به زړونه رپیږی او سترگې به د یره نه په یو طرف ولاړې وی۔

اِذَا رُجَّتِ الْاَرْضُ رَجًّا ۙ وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۙ فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا ۙ (الواقعة)

په کومه ورځ چه زمکه اُوجرقولے شی او غرونه ریزه ریزه کړے شی او د دوړې په شان والوزولے شی۔

يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ أَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكٰرٰى وَمَا هُمْ بِسُكٰرٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيدٌ ۞ ﴿۲﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّيَتَّبِعُ

په کومه ورځ چه تاسو هغه زلزله اُووينئ، نو داسې حال به وي چه هره تي ورکونکې ښځه به خپل تي رودونکي ماشوم نه بې خبره شي[۲] او د هرې حملدارې ښځې نه به حمل پريوزي، او خلق به درته به هوښ نکاري، حالانکې هغوئ به په نشه کښې نه وي، بلکه د الله عذاب به څه داسې سخت وي[۳]

بعضې خلق داسې دي چه بې علمه د الله په باره کښې بحثونه کوي[۴] او د هر سرکشه شيطان

فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِنْ كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَّجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبَانِ السَّمَآءُ مُنْفَطِرٌ بِهٖ ۝ (المزمل)

که چرې تاسو د پيغمبر خبره اُونه منله نو د هغه ورځ د مصيبت نه به څنګه بچ شئ چه ماشومان به بوډاګان کوي او چه د هغې د سختئ نه به آسمان شليږي.

اګر چه بعضې مفسرين وائي چه دا زلزله به په هغه وخت کښې وي چه کله مړي را ژوندي شي او خپل رب ته به حاضريږي، او د دې په تائيد کښې ډير حديثونه هم رانقل کړي دي، ليکن د قرآن د دې واضحو الفاظو په مقابله کښې دغه روايتونه قابل قبول نه دي. قرآن وائي چه د دې زلزلې وخت هغه دے کله چه ميندې د خپل تي ماشومان پريږدي او تښتې شروع کړي او د حملدارو ښځو نه حمل اُوغورزيږي. اوس خو دا معلومه خبره ده چه په آخرت کښې به نه يو ښځه خپل بچي له تي ورکوي او نه به د حملدارې ښځې د حمل غورزيدو موقع وي، ځکه چه د قرآن د بيان مطابق به هلته ټولې رشتې ختم شوي وي او هر سړے به په زړه د خپل ځان د حساب په باره ولاړ وي. لهٰذا قابل ترجيح روايت هغه دے کوم چه مونږه مخکښې نقل کړے دے. اګر چه د دې سند ضعيف دے خو د قرآن سره مطابقت لري نو په دې وجه مضبوطيږي. او دا نور روايتونه اګر چه د سند په لحاظ سره مضبوط دي ليکن د قرآن د ظاهري بيان سره مطابقت نه لري نو په دې وجه کمزوري دي.

[۲] په آيت کښې د مُرْضِع په ځائې مُرْضِعَه لفظ استعمال شوے دے. په دواړو کښې دا فرق دے چه مُرْضِع هغه ښځې ته وائي چه تي ورکونکې وي، او مُرْضِعَه په هغه حالت کښې ويلے کيږي چه کله ښځه عملاً ماشوم له تي ورکوي او ماشوم ئې تي رودي. نو دلته دا نقشه وړاندې کړې شوې ده چه کله د قيامت زلزله راشي نو ميندې به خپل تي رودونکي بچي پريږدي او تښتي به او د دې يره سره به هم دا فکر نه وي چه د هغه په خوږ بچي به څه تيريږي.

[۳] دلته اصل مقصد د قيامت حال بيانول نه دي بلکه د خدائے د عذاب نه يرول مقصد دے چه خلق د هغه کارونو نه ځان اُوساتي کوم چه د خدائے د غضب سبب جوړيږي. لهٰذا د قيامت د دې مختصر حالت بيانولو نه روستو په اصل مقصد باندې خبرې شروع کيږي.

كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ ۝۳ كُتِبَ عَلَيْهِ اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ فَاَنَّهٗ يُضِلُّهٗ وَ
يَهْدِيْهِ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ۝۴ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ
مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ
ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ؕ وَنُقِرُّ فِي الْاَرْحَامِ

پیروي کوي، حالانکه د هغه خو په نصیب کښې دا لیکلې شوې ده چه څوک ځان له هغه دوست کوي نو هغه به ئې بې لارې کوي او د دوزخ د عذاب لاره به ورته ښائي. اے خلقو، که چرې د مرګ نه پس د ژوندُون په باره کښې ستاسو څه شک وي نو تاسو ته دِ معلومه وي چه مونږ تاسو د خاورې نه پیدا کړي یئ، بیا د نطفې نه[۵]، بیا د وینې د ټوټې نه، بیا د غوښې د ټوټې نه چه شکل والا هم وي او بې شکلا هم[۶] (دا درته مونږ ځکه ښایو) چه په تاسو باندې حقیقت واضح کړو. مونږ چه کوم (نطفې) پخپله اُوغواړو نو د یو خاص وخت پورې ئې د مور

ف۴ د وړاندینۍ تقریر نه معلومیږي چه د دې خلقو جګړه د الله د وجود په باره کښې نه وه بلکه د هغوئ جګړه د الله د حقونو او د هغه د اختیاراتو او د هغه د رالیږلې شوې تعلیماتو په باره کښې وه. نبي صلی الله علیه وسلم به هغوئ ته وئیل چه توحید او آخرت اُومنئ او هغوئ به ورسره په دې خبره جګړه کوله. په دې دواړو عقیدو باندې به جګړه آخر دې خبرې ته اُورسیده له چه خدائ څه کولے شي او څه نه شي کولے، او په کائناتو کښې خدائي صرف د یو خدائ ده او که نه د نورو هم ده -

ف۵ د دې مطلب یا خو دا دے چه هر انسان د هغه څیزونو نه پیدا کیږي چه هغه ټول د زمکې نه حاصلیږي او د دې تخلیق ابتدا د نطفې نه کیږي. یا دا چه د انسان شروع د آدم علیه السلام نه شوې ده چه هغه د خاورې نه جوړ شوے وو، او بیا وړاندې د انساني نسل سلسله د نطفې نه پیدا کیدل شروع شو، لکه چه په سورة سجده کښې فرمائي "وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِيْنٍ ۝ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ۝" (آیتونه ۷-۸)، "د انسان پیدائښت ئې د خاورې نه شروع کړو، بیائې د هغه نسل د یو ست نه روان کړو چه کوم د بې قدره اُوبو په شکل کښې راؤځي".

ف۶ دا اشاره ده هغه مختلفو حالتونو ته کوم چه په بچي باندې د مور په خیټه کښې تیریږي. د دې هغه تفصیلات ئې نه دي بیان کړي کوم چه نن صبا سړے د طاقتور خوردبین په ذریعه لیدے شي، بلکه هغه غټ غټ او ښکاره حالتونه ئې بیان کړي دي چه د هغه نه د هغې زمانې عام ناپوهه سړے هم واقف وو. یعني د ښځې په خیټه کښې چه د سړي نطفه قرار بیا موي نو اول تر د وینې یوه ټوکوړه جوړه شي، بیا تر د غوښې یو ټوټه جوړه شي چه اول پکښې شکل نه وي او بیا روستو پکښې ګوډګوډ د انسان شکل راښکاره کیږي. د ښځې د زیان په مختلفو حالتونو کښې په خلقو دا ټولے مرحلې پیدا لو ځکه د مختلفو حالتونو ته اشاره شوې ده. په دې باندې د پوهیدلو د پاره نه په هغه وخت کښې د

مَا نَشَآءُ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ ۚ وَمِنْكُمْ
مَّنْ يُّتَوَفّٰى وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ
شَيْـًٔا ۗ وَتَرَى الْاَرْضَ هَامِدَةً فَاِذَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَ
رَبَتْ وَاَنْۢبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۝٥ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ

په رحم کښې اوساتو، بیا تاسو د یو بچي په شکل کښې راوباسو (بیا تاسو پالو) د پاره د دې چه تاسو خپلې پوره ځوانۍ ته ورسئ. او په تاسو کښې څوک په وخت واپس راغوښتلے کیږي او څوک د دے د پاره بدترین عمر ته رسولے کیږي چه په هر څه باندې د پوهیدو نه روستو بیا ناپوهه شي [۷]. او ته وینې چه زمکه وچه پرته ده، خو چه کله پرې موږ اوبه اورولې او هغه ترو تازه شوه، او راوکرځیده او په حرکت راغله او دا هر قسم ښائسته بوټي راوټوکوي. دا ټول هر څه ځکه دي چه الله حق دے [۸]

علم الجنین د تفصیلي تحقیقاتو هغه ضرورت دے او نه ئې څه ضرورت شته.

[۷] یعنې د بوډا والۍ هغه حالت چه سړے پکښې د خپل بدن نه هم ناخبره وي. هغه سړے چه اول نورو ته عقل ښائي، هغه چه بوډا شي نو بیا د بچو پشان کارونه کوي. په کوم علم او هوښیارتیا چه په هغه نازونه کول هغه داسے ختم شي چه بیا ماشومان هم د هغه په خبرو پورے خاندي.

[۸] دلته د دے فقرے درے مطلبونه دي. یو دا چه الله ربښتینې دے او ستاسو دا گمان باطل دے چه د مرگ نه روستو د دوباره ژوند هیڅ امکان نشته. دویم دا چه د الله وجود صرف یو خیالي او فرضي وجود نه دے چه گني د ځینې عقلي مشکلاتو د ختمولو د خاطره منلے شوے دے. هغه صرف د فلسفیانو د خیال مطابق واجب الوجود او علت العلل First Cause نه دے بلکه هغه حقیقي اختیارمند دے هغه هر وخت په خپل قدرت سره او په خپل ارادے سره، او په خپل علم او په خپل حکمت سره د ټول کائنات د یو یو څیز تدبیر کوي. دریم دا چه هغه لوبو والا نه دے چه صرف د خپل زړه د خوشحالولو د پاره د لوبو څیزونه جوړوي او بیا ئې هم دغسے ماتوي راماتوي. هغه حق دے، د هغه ټول کارونه مقصدي وي او د حکمت نه ډک وي.

په خېټه کښې وي او په دغه دوران کښې چه پرې څومره مرحلې تېرېږي په هغې کښې چه په هره مرحله سره غور اُوکړې نو زړۀ ئې داګواهي کوي چه په دې کښې هر وخت د یو حکمت والا اراده کار کوي. هغه فیصله کوي چه کوم بچې د انسانۍ شکل ته اُورسي، او کوم بچې د وینې د ټوکرې یا د غوښې د ټوټې یا د بېګړي بچي په شکل کښې ختم کړې شي. هغه فیصله کوي چه کوم بچې د ژوندي دنیا ته لاړ شي او کوم د مړ لاړ شي. څوک د صحیح سالم وي او څوک د ړوند، کوڼ، ګونګے یا شل کوډ وي. څوک د ښائسته وي او څوک د بد شکله وي. کوم د سړے وي او کوم د ښځه وي. کوم د قابل وي او کوم د ناقابله. د پیدائښت دا عمل چه هره ورځ د کروړونو ښځو په خېټو کښې کېږي، په دې کښې د یو خدائے نه سوا د بل هیڅ لاس نه رسي، بلکه چا ته دا هم نه وي معلوم چه د چا په خېټه کښې څۀ جوړېږي او څۀ به پیدا کېږي. حالانکه د انسانانو د قسمتونو اکثره فیصلے هم په دے مرحله کښې کېږي، او هم په دے موقعه کښې یوازې د افرادو نه بلکه د قومونو او د ټولو انسانانو د آئنده ژوند فیصله کېږي. د دے نه روستو چه کوم بچي دنیا ته راځي، د هغوئ په حقله دا فیصله څوک کوي چه څوک به د ژوند د اولے ساه اخستلو سره ختمېږي، چا نه به ځوان سړے جوړېږي او څوک به بوډا والي ته رسي؟ دلته هم دا ښکاري لکه چه یو غالب حکمت کار کوي، او چه سړے غور اُوکړي نو معلومېږي چه د ابو عالمګیر تدبیرا و حکمت دے چه په کښې یوازې د افرادو نه بلکه د قومونو او د ملکونو د قسمت فیصلے هم کېږي. دا هرڅه چه سړے اُووینې او بیا هم په دے خبره کښې شک کوي چه الله "حق دے" او صرف یو الله "حق" دے، نو بې شکه چه هغه بې عقله دے.

دویمه چه کومه خبره د دے آیت نه ثابتېږي هغه دا ده چه "الله مړي ژوندي کوي". خلق چه دا خبره واوري نو حیرانېږي چه الله تعالٰی به په یو وخت کښې دا مړي را ژوندي کوي، لیکن که هغوئ سترګې اُوغړوي او اُوګوري نو اُوبه وینې چه الله هر وخت مړي ژوندي کوي. د کومو څیزونو نه چه انسان بدن جوړ دے او په کومو خوراکونو چه هغه قائمېږي هغه ته لږ شان اُوګورئ. کوئله، وسپنه، چونه، نمکیات، هوا کانې، او دا سې نور څیزونه نور دي. په دے کښې په یو څیز کښې هم نۀ ژوند شته او نۀ نور څه انسانی خاصیتونه. خو دا بې روحه او مړۀ څیزونه را جمع کړې شوي دي او ژوندے انسان ترې جوړ کړې شوے دے. بیا د دے څیزونو نه خوراک ستا بدن ته ځي او هلته ترې په نارینو او ښځو کښې هغه اُوبه جوړېږي چه هغه کې یو بل سره ملاؤ شي نو ستا غوندې ژوندے انسان ترې روزانه جوړېږي او دُنیا ته راځي. د دے نه پس خپلے کېرچاپېره زمکے ته اُوګوره. د بې شماره څیزونو تخمونه دي چه هغه هواګانو او مرغو په هر ځائے کښې خواره کړي دي، او د بې شماره څیزونو جرړے دي چه په هر ځائے کښې د خاورو لاندې پرتې دي. په دے کښې د ژوند هیڅ نښه موجود نۀ وه. ستا نه کېرچاپېره د چه زمکه د دے لکونو مړو قبر وو. خو چه کله پرې د اُوبو یو څاڅکے راپرېوتو نو هر طرفته ژوند راګېلې هره مړه جرړه د خپل قبر نه راُوچته شوه، او هر بې روحه تخم د یو ژوندي بوټي په شکل کښې راپورته شو. د مړو د را ژوندي کېدو دا عمل په هر پشکال کښې ستا د سترګو وړاندې کېږي.

دریم چه کوم څیز د دې آیت نه ثابتیږي هغه دا دے چه "الله په هر څیز قادر دے". ټول کائنات پریږده صرف دا خپله زمکه واخله، او د زمکې هم ټول حقیقتونه پریږده صرف د انسانانو او د بوټو ژوند باندې نظر وا چوه او اُوګوره. په دې ټیټ چه د الله تعالیٰ د قدرت کومې نښې تاته په نظر راځي آیا د هغې په لیدو سره یو عقلمند سړے دا خبره کولے شي چه خدائے بس هغه څه کولے شي کوم چه نن موږ وینو او صبا که دے نور څه کول غواړي نو هغه نه شي کولے؟ خدائے خو یوه ډیره لویه هستي ده، د انسان په حقله د تیرې شوې صدۍ پورې د خلقو اندازه وه چه دے صرف هغه کاډۍ جوړولے شي چه په زمکه باندې ګرځي، په هوا کښې الوتونکې کاډې نه شي جوړولے. لیکن نن هوائي جهازونو دا ثابته کړه چه د انسان د "اِمکاناتو" په حقله د خلقو اندازه څومره غلطه وه. اُوس که چرې څوک د الله تعالیٰ د پاره د هغه د فن کار په لیدو سره د اِمکاناتو څه حدونه مقرره وي او وائي چه هغه د دې نه سیوا نور څه نه شي کولے، نو هغه صرف د خپل ذهن د تنګوالي ثبوت ورکوي، د خدائے قدرت د هغه د امکاناتو په حدونو کښې نه شي رابندیدے.

څلورمه او پنځمه خبرې یعنې "چه قیامت به خامخا راځي" او دا چه "الله به ضرور هغه خلق را ژوندي کوي کوم چه مړه شوي دي" د پاسنو دریو خبرو عقلي نتیجه ده. د الله کارونو ته چه د هغه د قدرت د اړخ نه اُوګورے نو زړهٔ به دې ګواهي ورکړي چه هغه کله اُوغواړي نو قیامت راوستلے شي او چه کله اُوغواړي نو هغه ټول مړي بیا را ژوندي کولے شي کوم چه هغه اول د نیشت نه شته کړي وو. او که د الله کارونو ته د هغه د حکمت د اړخ نه اُوګورے نو عقل به دې ګواهي ورکړي چه دا دواړه کارونه به هغه ضرور کوي ځکه چه د دې د کولو نه بغیر حکمتي عمل نه پوره کیږي او د دې نه پوره کول د یو حکیم د شان سره مناسب نه دي. څه لږ شان حکمت او هوښیارتیا چه انسان ته حاصل ده د هغې په وجه مونږ دا وینو چه سړے خپل مال یا خپل جایداد یا خپل کاروبار چا ته حواله کوي نو په څه وخت کښې د هغه سره حساب ضرور کوي. ګویا د امانت او د محاسبې په منځ کښې یو عقلي رابطه ده چه د انسان محدود حکمت ئے هم ضروري ګڼړي. بیا د دې حکمت په بنیاد باندې انسان په ارادي او په غیر ارادي کارونو کښې فرق کوي، د ارادي کارونو سره اخلاقي ذمه واري تړي، په نیک او بد کارونو کښې تمیز کوي، د ښه کارونو په نتیجه کښې انعام غواړي، او په بدو کارونو باندې سزا ورکوي، او د دې غرض د پاره د عدالت یو نظام جوړوي. دا حکمت چه کوم خالق په انسان کښې پیدا کړے دے، آیا دا باورکیدے شي چه هغه به پخپله د حکمت نه خالي وي؟ آیا دا د منلو خبره ده چه هغه دا دومره لویه دُنیا د دومره ډیرو اختیاراتو سره انسان ته حواله کړه او بیا ترې هیره شوه، اُوس به کله هم د هغه نه حساب کتاب د چا سره نه کوي؟ آیا یو عقلمند سړے دا ویلے شي چه انسان ته د کومو غلطو عملونو سزا نه ده ملاوُ شوې یا ورته د خپلې غلطۍ پوره سزا نه ده ملاوُ شوې کني د هغې د پاره به عدالت نه قائمیږي، او د کومو نیکو بدله چه ورته نه ده ملاوُ شوې

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ
مُّنِيْرٍ ﴿٨﴾ ثَانِيَ عِطْفِهٖ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ لَهٗ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ
وَّنُذِيْقُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿٩﴾ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ

ځيني نور خلق داسې دي چه بغيره علم نه[10] او بغيره هدايت نه[11] او بغيره روښانه کوونکي کتاب نه[12] په تاؤ کړي څټ[13] د خدای په باره کښې جګړه کوي د پاره ددې چه خلق د خدای د لارې نه بې لارې کړي.[14] داسې سړي د پاره په دنيا کښې هم شرمندګي ده او د قيامت په ورځ به ورته مونږ د اور د عذاب مزه ورڅکوو ـــ دا ستا هغه مستقبل دے چه ستا خپلو لاسونو ستا د پاره

کې هغه به ورته هيڅ نه ملاويږي چه چرې داسې نه دي نو بيا خو مړګ نه روسته ژوند او قيامت د الله حکيم حکمت سره ضروري ده چه پوره کيدل ئې د عقل مطابق دي او نه پوره کيدل ئې د عقل نه لرې خبره ده.

[10] يعنې هغه ذاتي واقفيت چه د مشاهدې او د تجربې نه حاصل شوے وي.

[11] يعنې هغه واقفيت چه د څه دليل نه حاصل شوے وي، يا د يو عالم پيروئ نه حاصل شوے وي.

[12] يعنې هغه واقفيت چه د خدای د نازل کړې شوي کتاب نه حاصل شوے وي.

[13] په دې کښې درې حالتونه شامل دي، جاهلي ضد، تکبر او غرور، او د پوهه کوونکي خبرې ته توجه نه کول.

[14] اول د هغه خلقو ذکر وو چه هغوئ په خپله بې لارې دي. او په دې آيت کښې د هغه خلقو ذکر دے چه نه يوازې دا چه په خپله بې لارې دي بلکه نور خلق هم بې لارې کوي.



يَدٰكَ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ⑩ وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ
اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ اِطْمَاَنَّ بِهٖ وَ اِنْ اَصَابَتْهُ
فِتْنَةُ اِنْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ خَسِرَ الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةَ ذٰلِكَ هُوَ
الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ⑪ يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهٗ وَ مَا لَا يَنْفَعُهٗ

تیار کړے دے کنځ نو الله په خپلو بندګانو باندې ظلم کونکے نه دے ع

او ځینې خلق داسې دي چې په غاړه غاړه د الله بندګي کوي[۱۵] که فایده ورته ورسي نو مطمئن شي او که څه مصیبت پرې راشي نو بیرته واپس شي[۱۶] څه دُنیا هم خرابه شوه او آخرت هم. دا دے ښکاره نقصان[۱۷]. بیا هغه الله پرېږدي او هغه څه رابولي چې نه ورته څه نقصان ور رسولے شي او نه فایده،

[۱۵] یعني د دین د دایرې په منځ کښې نه بلکه په غاړه باندې، یعني د کفر او د اسلام په سرحد باندې بندګي کوي. لکه چې یو مذبذب سړے د لښکر په غاړه باندې ولاړ وي، که فتح اُووینې نو د لښکر سره شامل شي او که شکست اُووینې نو غلے شان پټ شي.

[۱۶] د دے نه مراد هغه مذبذب خلق چې اسلام قبلوي خو د فایدې د شرط سره، هغوی په د شرط ایمان راوړي چې د هغوی مرادونه د پوره کیږي، هغوی ته د د هر قسم آرام حاصل وي، د خدائے دین د د هغوی نه څه قربانی نه غواړي، او نه د په دُنیا کښې د هغوی یو خواهش او آرام نیمګړے پاتې کیږي. که داوي نو هغوی د خدائے نه راضي دي او د هغه دین ورېخوښ دے. لیکن که پرې مصیبت پرې راشي، یا ورته د خدائے په لاره کښې څه نقصان او تکلیف ور ورسي، یا ئے څه آرزو پوره نه شي، نو بیا ئے د خدائے په خدائي او د رسول په رسالت او د دین په حقانیت باندې هیڅ اطمینان نه وي. بیا چې ورته د کوم دربار نه د فایدې رسید و اُمید وي نو هغې ته سر ټیټوي.

[۱۷] دا یو ډیر لوئے حقیقت دے چې په یو څو لفظونو کښې بیان کړے شوے دے. د مذبذب مسلمان حال په حقیقت کښې د ټولو نه بدتر دے. کافر که د خپل رب نه بے پروا وي او د خدائے د حکمونو پابندي نه کوي او ښه په تسلی سره د دُنیا په فایدو پسے ورپسے وي نو هغه که خپل آخرت برباد کړي نو دُنیا خو څه نه څه اُوګټي. او مومن چې ښه په کلکه د خدائے د دین پیروي کوي نو اګرچې په دنیا کښې ورته هم آخر کامیابي نصیب کیږي، خو بیا هم که چرې دنیا ئے هډو په لاس رانشي، نو په آخرت کښې خو ئے کامیابي یقیني ده. لیکن دا مذبذب مسلمان نه خپله دنیا جوړولے شي او نه ئے په آخرت کښې د کامیابۍ څه امکان شته. که د دُنیا د پاره منډه وهي نو د خدائے او د آخرت په حقله چې ئے څه ګمان په زړه کښې پروت دے، او د اسلام سره د تعلق ساتلو په وجه چې کښې څه اخلاقي پیدا شوي دي، هغه ئے لښ رانیسي، او د دُنیا په ګټلو کښې ورته د کافر په شان تسلي نه وي حاصل. او که د آخرت د پاره منډه وهي نو د دُنیا لالچ

ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ﴿١٢﴾ يَدْعُوْا لَمَنْ ضَرُّهٗٓ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ ۭ
لَبِئْسَ الْمَوْلٰى وَلَبِئْسَ الْعَشِيْرُ ﴿١٣﴾ اِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا

دا ده انتهائي ګمراهي. هغه چا ته آوازونه کوي چه نقصان ئې د نفع نه ډېر نزدې دے[18]، ډېر بد دے د هغه مولٰی او ډېر بد دے د هغه ملګرے[19] (د دے برعکس به) الله تعالٰی هغه خلق چا ایمان ئې راوړے وي او نیک عملونه ئې کړي[20]، یقیناً چه الله جنتونو ته داخل کړي چه لاندې به ترې نهرونه بهیږي، الله کوي هر هغه چه

او د نقصان موندلو پېره او په شا هسې تو باندې پابندي نه قبلولو ئې هغه طرفته نه پرېږدي بلکه دنیا پرستي ئې عقیده او عمل دواړه خراب کړي چه په آخرت کښې ئې د عذاب نه بچ کېدل ممکن نه وي. د شان دنیا ئې هم خرابه شي او آخرت هم.

[18] په اولنی آیت کښې وئیلے شوي دي چه د الله نه بغیر نور ټول معبودان قطعاً نه چا ته نفع رسوې شي او نه نقصان ځکه چه هغوئ چا ته د نفع نقصان رسولو قدرت نه لري. په دوېم آیت کښې دي چه د هغوئ نقصان د هغوئ د نفع نه ډېر نزدې دے، ځکه چه هغوئ ته د خپل حاجت پوره کولو د پاره د لاس نیولو سره خو ایمان ختم شي. او پاتې شوه هغه نفع نو د هغې حاصلېدل خو هېڅ یقیني نه دي کېدے شي چه د دې د ګمراه کولو د پاره ئې الله تعالٰی په یو دربار باندې پوره کړي، او کېدے شي چه په هغه دربار باندې خپل ایمان هم بائیلي او مراد هم ورته حاصل نه شي.

[19] یعني هر چا چه هغه په دے لار باندې روان کړو، خواه که هغه انسان وي او که شیطان، خو هغه ډېر بد کارساز او سرپرست دے او ډېر بد دوست او ملګرے دے.

[20] یعني چه د هغوئ حال د دے مطلب پرسته او مذبذبه او بې یقینه مسلمان پشان نه دے، بلکه په ښه سوچ فکر سره ئې د خدائې او د رسول او د آخرت د منلو فیصله کړې، بیا ښه په کلکه په حق لار باندې روان وي، خواه که حالات ښه وي او که خراب وي، خواه که مصیبتونه پرې راځي او که انعامونه ورته حاصلېږي.

يُرِيدُ ﴿١٤﴾ مَن كَانَ يَظُنُّ أَن لَّن يَنصُرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ
فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُ
مَا يَغِيظُ ﴿١٥﴾ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَاهُ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ وَأَنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يُرِيدُ ﴿١٦﴾

غواړي.[۲۱] څوک چه دا ګمان لري چه الله به په دُنیا او په آخرت کښې د هغه (محمدﷺ) امداد اُونه کړي نو هغه له پکار دي چه یو رسۍ په ذریعه آسمان ته ورسي او بیا سُوریه اُوکړي او بیا اُوګوري چه آیا د هغه تدبیر هغه څیز منع کولے شي کوم چه د هغه خوښ نه دے[۲۲] ــــــــ د داسې صفا صفا خبرو سره مونږ دا قرآن نازل کړے دے، او هدایت چه الله چا ته غواړي هغه ته کوي.

[۲۱] یعنی د الله د اختیار او حُکم حد نشته. په دُنیا او په آخرت کښې چه هغه چا ته څه ورکول غواړي هغه ورکوي او چه څه نه ورکول غواړي هغه نه ورکوي. د هغه ورکړه څوک منع کولے نه شي. او هغه چه نه ورکول غواړي نو بل څوک ئے ورکولے نه شي.

[۲۲] د دے آیت په تفسیر کښې ډیر اختلافات دي. د مختلفو مفسرینو د تفسیرونو خلاصه دا ده:

(۱) د چا چه دا خیال وي چه الله به د هغه (یعنی د محمدﷺ) امداد اُونه کړي نو هغه دِ په چت پورې رسۍ اُوتړي او خپل ځان دِ مړ کړي.

(۲) د چا چه دا خیال وي چه الله به د هغه (یعنی د محمدﷺ) امداد اُونه کړي نو هغه دِ د یو رسۍ په ذریعه آسمان ته لاړ شي او د مدد بندولو کوشش دِ اُوکړي او بیا دِ اُوګوري چه بند یې کړی او که نه.

(۳) د چا چه دا خیال وي چه الله به د هغه (یعنی د محمدﷺ) امداد اُونه کړي نو هغه دِ آسمان ته وُخیژي او د وحی بندولو کوشش دِ اُوکړي.

(۴) د چا چه دا خیال وي چه الله به د هغه (یعنی د محمدﷺ) امداد اُونه کړي نو هغه دِ آسمان ته وُخیژي او هغه به د رزق بندولو کوشش اُوکړي.

(۵) د چا چه دا خیال وي چه الله به د هغه (یعنی خپله د خیال کوونکي) امداد اُونه کړي نو هغه دِ د خپل کور په چت پورې رسۍ اُوتړي او خودکشي دِ اُوکړي.

(۶) د چا چه دا خیال وي چه الله به د هغه (یعنی خپله د خیال کوونکي) امداد اُونه کړي نو هغه دِ آسمان ته وُخیژي او د امداد کولو کوشش دِ اُوکړي.

په دے کښې اولنی څلور مطلبونه خو بالکل د وړاندې روستو عبارت سره تعلق نه لري. او آخري دوه مطلبونه اګر چه د وړاندې روستو عبارت سره څه نزدے دي لیکن د کلام تیک مطلب نه ادا کوي. که چرې د سیاق و سباق په رڼا کښې د دے آیت غور اُوکړي نو صفا معلومیږي چه دا ګمان کوونکے سړے هم هغه دے څوک چه د دے نه وړاندې په غاړه وُسي او عبادت کوي. تر څو چه حالات ښه وي نو په اطمینان سره وُسي، خو چه کله په هغه تکلیف او مصیبت راشي، یا پرڅه داسې حالت راشي چه کوم د هغه خوښ نه وي نو بیا د [illegible]

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّابِئِينَ وَالنَّصَارَىٰ وَالْمَجُوسَ وَ

کوم خلقو چه ایمان راوړو[23]، او څوک چه یهودیان شو[24]، او صابیان[25]، او نصارا[26]، او مجوسیان[27]، او

تعالی نه پناشی او په دربارونو پانې تنده شو لری ـ د دې سړي حالت د سه ولې دی؟ دا څکه دا سه دی چه هغه د خدای په تقدیر راضي نشه او دا ئې خیال دی چه د قسمت جوړولو او وړانولو طاقت د الله نه بغیر بل چا سره لاس کښې هم شته، او په دې وجه د الله نه نا امیده شي او د غیرو د دربارونو طمع دار شي د دا سې سړي په حقله فرمائي چه د چا دا خیالات وي نو هغه دې خپل ټول زور اولګوي، آن تر دې که آسمان ته ختل ترې شي نو هم دې وخیژي او وګوري چه آیا د ده د تدبیرونو د ئې تقدیر بدلولی شي؟ "آسمان ته ختل او په هغه کښې سوری کول" د دې نه مراد دا دی چه ډیره کوشش د انسان په وس کښې وي هغه دې اوکړي د دې الفاظو نه خپل لفظي مطلب مراد نه دی ـ

۲۳ یعنی "مسلمانان" چه په خپله خپله زمانه کښې ئې د خدای په ټولو پیغمبرانو او منل، او د هغه په کتابونو باندې ئې ایمان راوړو، او د محمد صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د تیرو شوو پیغمبرانو سره په هغه باندې هم ایمان راوړو ـ په دوی کښې رښتینی مؤمنان هم شامل وو او هغه خلق هم وو چه شاملیدل خو به د مؤمنانو په ډله کښې لیکن په "قاره" به ئې بندګی کوله او د کفر او د ایمان په منځ کښې مذبذب وو ـ

۲۴ د تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن اول جلد، النسآء، حاشیه ۷۲ ـ

۲۵ په پخوانۍ زمانه کښې دوه داسې ډلې صابیان په نوم مشهورې وې ـ یوه د هغه ډله د حضرت یحیی علیه السلام پیروکاران وو چه د عراق په پاسنۍ علاقه یعنی الجزیره کښې په کثرت اوسیدل او د حضرت یحیی په پیروۍ کښې به ئې د اصطباغ په طریقه باندې عمل کولو ـ دویمه ډله هغه خلق وو چه د ستورو عبادت به ئې کولو او د خپل دین نسبت به ئې حضرت شیث او حضرت ادریس علیهما السلام ته کولو او د دې خبرې قائل وو چه په عنصرونو باندې ستوري حکومت کوي او په ستورو باندې فرښتې حکومت کوي ـ حرّان د هغوی مرکز وو او د عراق په مختلفو ځایونو کښې خوارۀ وو ـ دا دویمه ډله د خپلې فلسفې او د ساینس په وجه او د خپلې طبیبۍ په وجه زیاته مشهوره شوې وه ـ لیکن زیات غالب ګمان دا دی چه دلته اولنۍ ډله مراد ده ـ ځکه چه غالباً دا دویمه ډله د قرآن د نازلیدو په زمانه کښې په دې نوم سره نه یادیدله ـ

۲۶ د تشریح د پاره اوګوره تفهیم القرآن، المائدة، حاشیه ۳۶ ـ

۲۷ یعنی د ایران آتش پرست خلق چه د رڼا او د تیارې دوه خدایان به ئې منل او ځان ته به ئې د زردشت پیروکاران ویل ـ د مزدک د ګمراهۍ په وجه د هغوی مذهب او اخلاق ډیر خراب شوي وو، آن تر دې پورې چه د سکه خور سره نکاح کول په هغوی کښې رواج جوړ شوی وو ـ

الَّذِينَ أَشْرَكُوا ۖ إِنَّ اللَّهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ
كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿١٧﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَسْجُدُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي
الْأَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُومُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ وَكَثِيرٌ
مِنَ النَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ ۗ وَمَنْ يُهِنِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ

---

چه کوم مخلوق شرک اوکړو، [۲۸] د دې ټولو په منځ کښې به الله د قیامت په ورځ فیصله اوکړي، [۲۹] هر شے د الله په نظر کښې دے. آیا ته وینې نه چې الله ته سر په سجده [۳۰] پراته دي هغه ټول څوک چې په آسمانونو کښې دي، [۳۱] او څوک چې په زمکه کښې دي، نمر او سپوږمۍ او ستوري او غرونه او ونې او څناور او ډیر انسانان [۳۲] او ډیر هغه خلق هم چې د عذاب مستحق شوي دي؟ [۳۳] او څوک چې الله ذلیله او خوار کړي نو هغه له

---

۲۸ یعنی د عربو د نورو ملکونو مشرکان خلق چه د پاسنو دوو ډلو په شان په څه خاص نوم نه یادیدل قرآن مجید چه کله دوی د نورو ډلو نه بیل ظاهروی نو د "مشرکین" او د "الَّذِينَ أَشْرَكُوا" په نوم سره ئې یادوی، اګرچه د مؤمنانو نه علاوه باقي د نورو ټولو په عقیدو او عملونو کښې شرک داخل شوے وو.

۲۹ یعنی د خدائے په باره کښې چه د انسانانو د مختلفو ډلو په منځ کښې کوم جګړه ده د هغې فیصله به په دې دنیا کښې نه وي بلکه د قیامت په ورځ به وي. هلته به د دې معاملې فیصله کیږي چې کومه ډله په حق ده او کومه په باطله ده. اګرچه په یو لحاظ سره دا فیصله دلته په دې دنیا کښې هم د خدائے کتابونو کړې، لیکن دلته د فیصلې لفظ "د جګړې د ختمولو" او د دواړو ډلو په منځ کښې د انصاف کولو په معنیٰ کښې استعمال شوے دے هغه وخت چې د یوې ډلې په حق کښې او د بلې ډلې خلاف باقاعده سند ورکړے شي.

۳۰ د تشریح د پاره اوګورئ تفهیم القرآن دویم جلد، الرعد، حاشیه ۲۴، ۲۵، النحل حاشیه ۴۱-۴۲.

۳۱ یعنی فرښتې، اجرامِ فلکي، او هغه ټول مخلوقات چې د زمکې نه پورته په نورو جهانونو کښې دي، خواه که هغه د انسان په شان عقل والا او اختیارمند وي، او که د څناورو او د کانړو بوټو او د هوا د رنګ په شان بې عقله او بې اختیاره وي.

۳۲ یعنی هغه انسانان چې په مجبورۍ سره نه بلکه بنه په خپله رضا سره الله ته سجده کوي. د دوی په مقابله کښې دویم انساني ډله، چې په روستني فقره کښې ئې ذکر راروان شے، هغه ده چې په خپله اراده خدائے ته د سجده کولو نه انکار کوي، لیکن د نورو بې اختیارو مخلوقاتو په شان هغوی هم د فطرت د قانون نه آزاد نه دي او د ټولو سره مجبوراً په سجده کولو کښې شامل دي. د دوی د عذاب د مستحق کیدو وجه داده چې دوی د خپل اختیار په وجه د بغاوت لاره اختیار کړې ده.

۳۳ مطلب دا دے چه اګرچه د دې مختلفو ډلو د جګړې فیصله خو به د قیامت په ورځ کیږي

فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ ﴿١٩﴾ يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ ﴿٢٠﴾
وَلَهُم مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيدٍ ﴿٢١﴾ كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ
أُعِيدُوا فِيهَا وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴿٢٢﴾ إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ
آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ
فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ۖ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴿٢٣﴾ وَهُدُوا

یشید لی اُوبۀ اَچولے کیږی چه دَ هغے سره به نے یوازے ځرمنے نه بلکه پکیږه کښې دننه حصے هم ویلې کیږی، او دَ هغوی دَ وهلو دَپاره به دَ اُوسپنے ګُرزونه وی. هر کله چه هغوی دَ یریږی او دَ جهنم نه دَ وتلو کوشش کوی نو بیا به ورته کړے شی چه وَ څکئ دَ اور دَ سوزیدو دَ سزا مزه ۳۷ بل طرف چه کومو خلقو ایمان راوړو او نیک عملونه ئے اُوکړل هغوی به الله تعالیٰ داسے جنتونو ته ور داخل کړی چه لاندې به ترے نهرونه بهیږی. هلته به هغوی دَ سرو زرو په بنګړو او ملغلرو سره بنائسته کړے شی او دَ هغوی جامے به دَ ریښمو وی. هغوی ته دَ پاکیزه

یو هغه ده چه دَ خدائے او دَ رسول خبره نه منی او دَ کفر لار ئے اختیار کړے وی، خواه که په کفر کښې د ننه په یوه هر څو مره اختلافات وی او دَ کفر هر څو مره مختلف شکلونه وی.

۳۷ په راتلونکی وخت کښې چه دَ کوم څیز کیدل بالکل قطعی او یقینی وی نو هغه له چه څوک زیږه زور ورکوی نو په داسے طریقه ئے بیانوی لکه چه هغه شوے وی. دَ وُوَرو جامونه مراد غالبًا هغه څیز دے کوم چه په سورة ابراهیم آیت ۵۰ کښې سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ فرمائیلے شوے دَ تشریح دَپاره اُوګوره تفهیم القرآن، ابراهیم، حاشیه ۵۸.

۳۸ دَ دے نه مراد دا دے چه هغوی ته به شاهانه جامے ور اغوستولے کیږی. قرآن چه کله نازلیدو نو په هغه زمانه کښې به باد شاهانو او لویو لویو سردارانو دَ سرو زرو او دَ ملغلرو کالی استعمالول، او نن ورځ په زمانه کښې هم دَ هندوستان راجاګانو او نوابانو داسے کالی استعمال کړی دی.

إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ ۖ وَهُدُوا إِلَىٰ صِرَاطِ الْحَمِيدِ ﴿٢٤﴾ إِنَّ الَّذِينَ
كَفَرُوا وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِي جَعَلْنَاهُ
لِلنَّاسِ سَوَاءً الْعَاكِفُ فِيهِ وَالْبَادِ ۚ وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ

خبرې د قبلولو هدایت اوکړے شو[٣٩] او د ستائلی شوی خدائے لار ورته اوښودلے شوه[٤٠]. کوم خلق چه کفر اوکړو[٤١] او چه (نن) د الله د لارے نه او د هغه مسجد حرام د زیارت نه خلق منع کوی[٤٢] کوم چه مونږ د ټولو خلقو د پاره جوړ کړے دے، او چه په هغې کښې د مقامی خلقو او د بهرنو راتلونکو خلقو حقونه برابر دی[٤٣] (د هغوی عمل یقیناً چه د سزا مستحق دے) او هر څوک چه په دے (مسجد حرام) کښې د حق نه بدله

٣٩ اګرچه د پاکیزه خبرې الفاظ عام دی، لیکن مراد ترې هغه پاککلمه او هغه نیک عقیده ده چه د هغې د قبلولو په وجه هغوی مؤمنان شو۔

٤٠ لکه څنګه چه په دیباچه کښې بیان شوے دے، زمونږ په نزد دا د سورة هغه حصه ښکاریږی کومه چه په مکی دور کښې نازل شوے وه۔ د دے تیرے مضمون او انداز بیان هم هغه دے کوم چه د مکی سورتونو وی، او په دے کښې هیڅ داسے علامه نشته چه د هغې په وجه د سړی دا شک راشی چه شاید دا ټوله حصه یا د دے یو جز به په مدینه کښې نازل شوے وی۔ صرف د دے آیت هَٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ ۖ (دا دوه ډلے دی چه د دوی په مینځ کښې د خپل رب په باره کښې جګړه ده) په متعلق څینې مفسرین دا وائی چه دا آیت مدنی دے۔ لیکن د دے قول بنیاد صرف دا دے چه د هغوی په نز د دے د دوو ډلو نه مراد د جنګ بدر دوه ډلے دی، او دا څه مضبوط بنیاد نه دے۔ په وړاندې روستو عبارت کښې هیڅ څیز داسے نشته چه هغه ګنی دا اشاره د جنګ بدر د دوو ډلو ته راګرزوی۔ الفاظ عام دی، او د وړاندې عبارت نه صفا معلومیږی چه د دے نه مراد هغه عامه جګړه ده چه هغه د کفر او د ایمان د دوو ډلو په مینځ کښې د شروع نه را روانه ده او د قیامته پورے به جاری وی۔ که چرے د دے تعلق د جنګ بدر د دوو ډلو سره وے نو بیا به دا آیت په سورة انفال کښې وُو نه به په دے سورة کښې وُو او نه به په دے رواں عبارت کښې وُو۔ د تفسیر کولو دا طریقه که چرے صحیح اوګڼلی نو د دے صبه دا مطلب وی چه د قرآن آیتونه بالکل خواره واره نازل شوی دی او بیا هم د غیبے ربطه د خپله خوښه مطابق را غونډ کړے شوی دی۔ حالانکه د قرآن کلام چه څومره منظم دے دا په خپله د دغے خبرې تردید دے۔

٤١ یعنی د محمد صلی الله علیه وسلم د دعوت د منلو نه ئے انکار اوکړو۔ وړاندې مضمون نه صفا معلومیږی چه د دے نه مراد د مکے کافران دی۔

٤٢ یعنی محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه پیروکاران حج او عمرے کولو ته نه پریږدی۔

٤٣ یعنی د یو سړی یا د یو خاندان یا د یو قبیلے جائیداد نه دے، بلکه عام وقف څیز دے او

هیڅا ته دا حق نشته حاصل چه دے د زیارت کولو نه څوک منع کړی.

دلته دوه خبرې دی چه په فقهی نقطه نظر سره په هغې کښې د عالمانو اختلاف دے:

اول دا چه د "مسجد حرام" نه مراد څه دے؟ آیا صرف جومات یا د مکې پوره حرم؟

دویم دا چه په دے کښې د عاکف (د مقامی اوسیدونکی) او د باد (یعنی د بهرنه د راتلونکی سړی) د حقونو د برابرئیدو څه مطلب دے؟

یوه ډله وائی چه د دے نه مراد صرف جومات دے. ځکه چه د قرآن د ظاهری الفاظو نه معلومیږی او په دے کښې د حقونو د برابرئیدو مطلب د عبادت په حق کښې برابرئیدل دی، لکه څنګه چه د نبی صلی الله علیه وسلم د دے حدیث نه معلومیږی چه "یا بنی عبد مناف من ولی منکم من امور الناس شیئًا فلا یمنعن احدًا طاف بهذا البیت وصلیٰ اَیَّةَ ساعة شاء من لیل او نهار." "اے د عبد مناف بچو! په تاسو کښې که هر څوک د خلقو په معاملاتو باندې د څه اقتدار مالک وی نو هغه له پکار دی چه د شپې یا د ورځې په هر وخت کښې څوک د خانه کعبې د طواف نه یا په خانه کعبه کښې د مونځ کولو نه منع نه کړی." کوم خلق چه د دے خبرې حامیان دی نو هغوی وائی چه د مسجد حرام نه پوره حرم مراد اخستل او بیا هلته په هر حیثیت سره د مقامی خلقو او د بهرنه د راتلونکو خلقو حقونه برابرګرزول غلط خبره ده ځکه چه د مکې په کورونو او په زمکه باندې د خلقو د ملکیت او د وراثت حقونه او د بیع او د اجارې حقونه د اسلام نه مخکښې وو او د اسلام نه روستو هم دی، آن تر دے پورے چه د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې د صفوان بن اُمیه کور په مکه کښې د جیل جوړولو د پاره په څلور زره درهمه واخستے شو. نو دا برابروالے صرف په عبادت کښې دے بل په هیڅ څیز کښې نه دے. دا قول د امام شافعی او د هغه د هم خیال ملګرو دے.

دویمه ډله وائی چه د مسجد حرام نه مراد د مکې ټول حرم دے. د دے اولنئ دلیل دا دے چه په خپله په دے آیت کښې په کوم څیز باندې د مکې مشرکانو ملامته کړے شوی دی، هغه د حج نه مسلمانان منع کول دی، او د هغوی د دے کار رد په دے خبره شوے دے چه هلته د ټولو حقونه برابر دی. اوس خو دا هرچاته معلومه ده چه حج یوازې په جومات کښې نه کیږی بلکه صفا او مروه، منیٰ، مزدلفه او عرفات ټول د حج د ارکانو مقامات دی. بیا په قرآن کښې په ګڼو ځایونو کښې په ډیرو ځایونو کښې مسجد حرام ویلے شوے دے او مراد ترې پوره حرم شریف شوے. مثلاً "وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِنْدَ اللَّهِ." "د مسجد حرام نه خلق منع کول او د مسجد حرام اوسیدونکی د هغه نه ایستل د حرم په میاشت کښې د الله په نزد جنګ کولو نه غټه ګناه ده." (بقره. آیت ۲۱۷). ظاهره خبره ده چه دلته د جومات نه مونځ کونکی خلق ایستل مراد نه دی بلکه د مکې نه مسلمانان ایستل مراد دی. بل ځائې کښې فرمائی "ذَٰلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ" "دا رعایت د هغه چا د پاره دے چه د هغه کورونه د مسجد حرام اوسیدونکی نه وی." البقرة آیت ۱۹۶). دلته هم د مسجد حرام نه مراد د مکې پوره حرم دے نه یوازے جومات. لهذا په "مسجد حرام" کښې برابرئیدل یوازے په جومات کښې برابرئیدل نه دی، بلکه د مکې په ټول

حرم کښې برابر حقونه حاصلیدل دي.

بیا دا چه واړه څه دا مساوات یوازې په عبادت او په تعظیم او په حرمت کښې نه دی، بلکه دا ځکه په حرم کښې ذکر لوحقونو په اعتبار سره ده. ذ حرم زمکه ذ خدائے ذ طرفنه عام وقف زمکه ده لهٰذا په دې زمکه یا ئې او ذ دې په عمارتونو باندې ذ چا ذ ملکیت حق نشته ده. هر سړے په هر ځائے کښې ذ ده کولے شي یعنې قیام کولے شي. هیڅوک ئې منع کولے نه شي او نه ئې ناست سړے څوک پاسولے شي. ذ دې په ثبوت کښې دا خلق ډیر احادیث او ډیر آثار پیش کوی مثلاً،

ذ عبد الله بن عمرو روایت ده چه نبي صلى الله عليه وسلم اُوفرمائیل "مکة مناخٌ لاتباع رباعها ولا تؤاجر بيوتها"

"مکه ذ مسافرو ذ راتلو ځائے ده، نه ذ دې ذ زمکه خرڅولے کیږي او نه ذ دې مکانونه په کرایه ورکیدے کیږي."

ذ ابراهیم نخعي مرسل روایت دے چه نبي اُوفرمائیل "مکة حرمها الله لا يحل بيع رباعها ولا اجارة بيوتها" "ذ مکې نه الله تعالىٰ حرم جوړ کړے ده، ذ دې زمکه خرڅول او ذ دې ذ مکانونو کرایه اخستل حلال نه دی" (دا دې تاسو ته معلومه وي چه ذ ابراهیم نخعي مرسلات حدیث ذ مرفوع په حکم کښې دی ځکه چه ذ هغه دا قاعده مشهوره ده چه کله هغه مرسل روایت کوي نو په اصل کښې ئې هغه ذ عبد الله بن مسعودؓ په واسطه سره روایت کوي). مجاهد هم تقریباً په دې الفاظو سره یو روایت نقل کړے دے.

ذ علقمه بن نضلہ نه روایت دے چه "ذ رسول الله صلى الله عليه وسلم او ذ ابوبکر او ذ عمر او ذ عثمان رضي الله عنهم په زمانه کښې به ذ مکې زمکه سوائب (یعنې شاملات زمکه) گڼلے شوه، چه ذ چا به ضرورت وو هغوئ به سیدو په کښې او چه ضرورت به ئې نه وو نو بل به ئې په کښې اوسیدو."

ذ عبد الله بن عمرو روایت دے چه حضرت عمرؓ حکم کړے وو چه حج په زمانه کښې دې ذ مکې ذ سیدو وګړو ځله دروازې بندې نه وي، بلکه ذ مجاهد روایت خو دا ده چه حضرت عمرؓ ذ مکې والو ته حکم کړے وو چه ذ خپلو کورونو صحن یعنې انګنړ دې نه بندوي او هغوئ دې په کورونو باندې دروازې نه لګوي منع کړی وو ذ پاره ذ دې چه مسافر په کوم ځائے کښې ورته دیرا لګول غواړي په هغه ځائے کښې دیره وکړي. هم دا روایت ذ عطاء ده او هغه وائي چه صرف سهیل بن عمرو ته حضرت عمرؓ په صحن باندې ذ دروازې لګولو اجازت ورکړے وو ځکه چه هغه به تجارت کولو وچیل اُوښان به ئې هلته بندول.

ذ عبد الله بن عمر قول دے چه څوک ذ مکې ذ مکانونو کرایه اخلي هغه په خپله ګیډه کښې اُور اچوي.

ذ عبد الله بن عباس قول دے چه الله تعالىٰ ذ مکې ذ ټول حرم ذ خلقو ذ پاره جوړ کړے ده او هلته ذ ټولو حقونه برابر دی. ذ مکې والو ته دا حق نه ده حاصل چه ذ بهر نه مسافرو نه کرایه اخلي.

ذ مکې ذ امیر په نوم ذ عمر بن عبد العزیز حکم چه ذ مکې ذ مکانونو کرایه مه اخله ځکه چه دا حرامه ده.

ذ دغه روایتونو په وجه زیاتره تابعین دې طرف ته دي، او په فقهاؤ کښې ذ امام مالک، ذ امام ابو حنیفه، ذ سفیان ثوري، ذ امام احمد بن حنبل او ذ اسحاق بن راهویه هم دا رائے ده چه ذ مکې ذ زمکې خرڅول، او ذ حج په موسم کښې ذ مکې ذ مکانونو کرایه جائز نه ده. البته ډیرو فقهاؤ ذ مکې په مکانونو باندې ذ خلقو ملکیت تسلیم کړے ده او ذ هغې ذ مکان خرڅول ئې جائز ګرځولي دي نه چه ذ زمکې خرڅول.

بِظُلۡمٍ نُّذِقۡهُ مِنۡ عَذَابٍ اَلِيۡمٍ ﴿۲۵﴾ وَاِذۡ بَوَّاۡنَا لِاِبۡرٰهِيۡمَ مَكَانَ الۡبَيۡتِ

دَ ظلم لاره اختیاروی ۴۳ هغه ته به موږ د دردناک عذاب مزه ورڅکوو. ع

یادکړئ هغه وخت کله چې موږ دَ ابراهیمؑ دَپاره دَ دې کور (خانه کعبې) ځای په ګوته کړے وُو

دا مسلک دَ الله دَ کتاب او دَ رسول دَ سنت او دَ خلیفه ګانو دَ طریقې سره ډیر ترڅه معلومیږی، ځکه چه الله تعالیٰ په ټولو مسلمانانو باندې حج دَدې دَپاره نۀ دے فرض کړے چه دا دِ دَ مکې والو دَپاره دَ آمدنۍ ذریعه جوړه شي او کوم مسلمانان چه دَ فرض ادا کولو دَپاره هلته لاړشي دَ هغوی نه دِ دغه ځائے دَ زمکې مالکان بنه پیسه ډیره کرایه واخلی. هغه دَ ټولو مؤمنانو دَپاره یو عام وقف ځائے دے. دَ هغې زمکه دَ چا ملکیت نۀ دے. هر مسافر ته حق حاصل دے چه کوم ځائے قیام کوی نو کولے شی.

۴۴ دَ دې نه مُراد هر هغه کار دے چه هغه دَ حق نه خلاف وی او ظلم ورته ویلے کیږی، څه یو خاص کار ترې مراد نۀ دے. دا قسم کارونه اګرچه په هر حال کښې ګناه ده، لیکن په حرم کښې دَ هغې کول زیاته سخته ګناه ده. مفسرینو بعضو ډیرو ضرورتی قسم خبرو هم په الحاد فی الحرم کښې شمار کړې دے او دَدے آیت مصداق ئې ګرځولے دے. دَ دے عامو ګناهونو نه علاوه دَ حرم دَ عزت په حقله چه کوم خاص حکمونه دی دَ هغې خلاف ورزی کول په اوله طریقه ګناه ده. مثلاً:

دَ حرم نه بهر چه چا څوک قتل کړے وی، یا بل څه داسې جُرم ئې کړے وی چه دَ هغې په وجه پرِ حد لازم کیږی، او بیا هغه په حرم کښې پناه واخلی نو ترڅو پورې چه هغه په حرم کښې وی تر هغې پورې به ورته څه نۀ ویلے کیږی. دَ حرم دا حیثیت دَ حضرت ابراهیمؑ دَ زمانې راسې را روان دے، دَ مکې دَ فتح کولو په ورځ صرف یو ساعت دَپاره دا حیثیت ختم کړے شو، او بیا دَ همیشه دَپاره قائم شو. په قرآن کښې فرمائی "وَمَنۡ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا" "څوک چه په دے کښې داخل شو هغه په امن شو". دَ حضرت عمرؓ، دَ عبدالله بن عمرؓ او دَ عبدالله بن عباسؓ دا قولونه په معتبرو روایتونو کښې راغلی دی چه که چرے موږ دَ خپل پلار قاتل هم اُومومو نو هیڅ به ورته نۀ وایو. دا وجه ده چه اکثر تابعین او حنفیان او حنبلیان او اهل حدیث دَ دے خبرې قائل دی چه کوم مُجرم دَ حرم نه بهر شوے وی دَ هغې قصاص به په حرم کښې نشی اخستلے کیدے.

په حرم کښې جنګ کول او وینه تویول حرام دی. دَ مکې دَ فتح کیدو په دویمه ورځ چه نبي صلی الله علیه وسلم کوم خطبه ورکړې وه په هغې کښې ئې دا اعلان کړے وُو چه "اے خلقو، الله تعالیٰ مکه دَ اول ورځې نه حرام کړې ده او دا دَ قیامته پورې حرام ده. څوک چه په الله او په آخرت ایمان لری دَ هغه دَپاره حلال نۀ دی چه دلته دِ چا وینه توی کړی." بیا نبیؑ اُو فرمائیل چه "که څوک زما دا جنګ دَ ځان دَپاره دلیل ګرځوی او دلته وینه تویول جائز ګڼړی نو هغه ته اُووایئ چه هغه الله تعالیٰ دَ خپل رسول دَپاره جائز کړې وُه نۀ چه ستاسو دَپاره. او زما دَپاره هم دا صرف دَ یوې ورځې دَ یو ساعت دَپاره حلال کړے شوی وُو، تر بیا دَ هغې حُرمت هغسې قائم دے لکه څنګه چه پرون وُو."

دَ حرم مقدس ونې دِ نۀ څوک نۀ پریکوی، نۀ خپله راز رغون شوی ګیا څوک ربیي، نۀ دَ مرغو او دنه

أَن لَّا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَ
الرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿٢٦﴾ وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ
كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ﴿٢٧﴾ لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ

(ددے هدایت سره) چه زما سره هیڅ څیز مه شریکوه او زما کور د طواف کوونکو او د قیام او د رکوع او د سجدې کوونکو دپاره پاک ساته[۴۳]، او خلقوته د حج دپاره عام اعلان وکړه چه هغوی تا ته د لرې لرې ځایونو نه پیاده او په اوښانو باندې سواره راشی[۴۴]، دپاره ددے چه هغه فائدے اووینی کومے چه دلته د هغوی دپاره ساتلے شوی دی

د ځناور ښکار څوک کوی، او نه څوک د ښکار په غرض د هغه ځله نه ځناور رشړی په ځائی د حرم نه ئے بهر کړی او بیا ئے ښکار کړی. د دے حکم نه صرف مار، لړم او نور ضرر رسی ځناور بهر دی. او په کیا کښے تر ا ذخر یعنی سرکړه او وچه گیا بهر ده. د دے په حقله په صحیح حدیثونو کښے صفا صفا حکمونه راغلی دی.

په حرم کښے غورزیدلے څیز را اوچتول منع دی، لکه څنګه چه په ابوداؤد کښے راغلی دی: "ان النبی صلی اللہ علیہ وسلم نهٰی عن لقطة الحاج" یعنی "نبیؐ د حاجیانو نه غورزیدلے څیز را اوچتول منع کړی دی".

دلته چه هر څوک د حج یا د عمرے په نیت سره ځی هغه د احرام تړلو نه بغیر نه شی داخلیدے. البته په دے کښے اختلاف دے چه څوک د بل غرض دپاره داخلیږی چه آیا د هغه دپاره احرام تړل ضروری دی او که نه. د ابن عباسؓ مذهب دے چه په هیڅ حالت کښے د احرام نه بغیر نشی داخلیدے. د امام احمدؒ او امام شافعیؒ یو قول هم د دے خبرے په تائید کښے دے. دویم مذهب دا دے چه هغه خلق په احرام نه تړلو څوک چه د خپل کار دپاره بار بار دلته ځی راځی. باقی هر چا له احرام تړل پکار دی. دا د امام احمدؒ او امام شافعیؒ دویم قول دے. دریم مذهب دا دے چه څوک د میقاتونو په حد کښے دننه وسی هغوی له ته بغیر د احرام تړلو نه داخلیدے شی، او څوک چه د میقات د حد نه بهر وسی هغوی بغیر د احرام تړلو نه نه شی داخلیدے. دا قول د امام ابوحنیفهؒ دے.

۴۵ ځنو مفسرینو په "پاک ساته" باندې هغه فرمان ختم کړے دے کوم چه حضرت ابراهیمؑ ته شوے وو او وائی چه "خلقو ته د حج دپاره عام اجازت ورکړه" دا خطاب نبی صلی اللہ علیہ وسلم ته دے. لیکن د کلام د انداز نه صفا معلومیږی چه دا خطاب هم حضرت ابراهیمؑ ته دے او د هغه حکم یوه حصه ده کوم چه هغه ته د کعبې د جوړولو په وخت کښے ورکړے شوے وو. د دے نه علاوه دلته د کلام مقصد هم دا دے چه خلقو ته معلومه شی چه دا کور دا ولے وېځ نه کړے شو د یو خدائے د بندګئ دپاره جوړ کړے شوے وو او د تولو خدائے پرستو خلقو ته دلته د حج دپاره د راتلو عام اجازت وو.

۴۶ په اصل کښے لفظ ضامر استعمال شوے دے چه خاص طور کمزورو اوښانو ته ویلے کیږی. د دے نه مسافر مراد دی کوم چه د لرے لرے ځایونو نه راځی او په لاره کښے د هغوی اوښان د خوراک او د اوبو د نه ملاویدو په وجه کمزوری شوی وی.

وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ

او په یو څو مقرر و ورځو کښې په هغه څارو د الله نوم واخلي کوم چه ورله هغه ورکړي دي،[49]

[47] دلته هغه حکم ختم شو کوم چه په اول کښې حضرت ابراهیم ته شوې وُو، او وړاندې نې خبره په دې باب زیاتې تشریح ده - نو ځکه زمونږ د دې رائې وجه دا ده چه د کلام ٭ قدیم څوانی کور طواف کړه ٭ باندې ختم شوې ده چه ظاهره خبره ده چه د خانه کعبه د جوړېدلو په وخت کښې به نه دي فرمائیلے شوي. (حضرت ابراهیمؑ چه کله خانه کعبه جوړوله نو د هغې په حقله تفصیلات اُوګوره په سورة بقره آیتونه ۱۲۵-۱۲۹ کښې، په آل عمران آیتونو ۹۶-۹۷ کښې او په سورة ابراهیم، آیتونه ۳۵-۴۱ کښې)-

[48] د دې نه مُراد صرف دیني فائدے نه دي بلکه دُنیوي فائدے هم دي. دا خو د دې خانه کعبه او د دے د حج برکت وُو چه د حضرت ابراهیمؑ د زمانې نه را واخله د نبي صلی الله علیه وسلم د زمانې پورې په دوه نیم زره کاله موده کښې عربو ته د وحدت یو مرکز حاصل وُو چه د هغې په وجه د هغوي عربیت قائم وُو. د مرکز ته به خلق د حج د پاره د ملک د هر ځائې نه تلل راتلل او په دے وجه د هغوي ژبه یوه وه، د هغوي طور طریقه یو شان وه او د قومیت د خیالاتو نه په وخت په وخت خبریدل. بیا دا هم د دے حج برکت وُو چه د عربو د بد امنۍ په زمانه کښې به پوره څلور میاشتے امن وامان وُو په هغې کښې به د ملک د هر ځائې سفر سړي کوله شو او تجارتي قافلے هم په خیریت سره تلے راتلے شوے. د غه شان د عربو د روزګار د پاره هم حج یو رحمت وُو. د زیات تشریح د پاره اُوګوره تفهیم القرآن، آل عمران، حاشیه ۸۰-۸۱ - المائدۀ، حاشیه ۱۱۳-

د اسلام نه روستو د حج دیني فائدو سره د حج دُنیوي فائدے هم ډیرے زیاتے شوے - اوّل هغه یوازے د عرب د پاره رحمت وُو - اوس هغه د ټوله دُنیا د مسلمانانو د پاره رحمت شو.

[49] د څارو نه مُراد اُوښ، غوا، ګډه، بیزه ده، لکه څنګه چه د سورة انعام په آیتونو ۱۴۲-۱۴۴ کښې ویلے شوي دي. په څارو باندې د الله د نوم اخستلو مُراد دا دے چه سره د ذبح کولو په وخت د الله نوم واخلي او د الله په نوم باندې ئې ذبح کړي، لکه څنګه چه د روستنۍ فقرے نه ښکاره معلومیږي. په قرآن مجید کښې د قربانۍ د پاره عام طور دا الفاظ استعمال شوي دي چه "په څارو باندې د الله نوم اخلئ" او هر ځائې کښې د دے نه مراد د الله په نوم باندې څاروے ذبح کول دي. په دے سره دا حقیقت څرګند کړے شوے دے چه د الله د نوم اخستلو نه بغیر، یا د الله نه بغیر د بل چا په نوم باندې څاروي ذبح کول د کافرانو او د مشرکانو طریقه ده. مسلمانان چه کله څاروے ذبح کوي نو د الله نوم به پرې اخلي، او ذبح کوي به ئې، او کله چه قرباني کوي نو د الله د پاره به ئې کوي.

ایامِ معلومات (د یو څو مقررو ورځو) نه مراد کومے ورځے دي؟ په دے کښې اختلاف دے. یو قول دا دے چه د دے نه مراد د ذي الحجے (د نوي اختر) د میاشتے اولنۍ لس ورځے دي. دا قول د ابن عباسؓ، حسن بصري، ابراهیم نخعي، قتاده او د نورو ډیرو صحابو او تابعینو دے. امام ابو حنیفهؒ هم په دے قول کښې شامل دے. د امام شافعيؒ او د امام احمدؒ یو یو قول هم د دے په تائید کښې دے. دویم قول دا دے چه د دے نه مراد یوم النحر (یعنې د ذي الحجے د میاشتے لسمه ورځ) او د دے نه روستو درے ورځے دي. د دے په تائید کښې ابن عباس

فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ﴿٢٨﴾ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَ

په هغو کښې تاسو هم خورئ او تنګ لاسو محتاجو خلقو ته هم ورکوئ.[۵۹] بیا خپل خیرے لرے کړئ[۶۰] او

دَ ابن عمرؓ، دَ ابراهیم نخعي، دَ حسن او دَ عطا قولونه پیش کړے کیږی، او دَ امام شافعیؒ او دَ احمد نه هم یو قول دَدے په حق کښے نقل کړے شوے دے. دریم قول دا دے چه دَدے نه مُراد دریے ورځې دی، یوم النحر او دوه ورځې دَ دے نه روستو. دَدے په تائید کښے دَ حضرت عمرؓ، دَ حضرت علیؓ، دَ ابن عمرؓ، دَ ابن عباسؓ، دَ انس بن مالکؓ، دَ ابو هریرهؓ، دَ سعید بن مُسَیَّب او دَ سعید بن جُبَیر رضی الله عنهم قولونه نقل شوی دی. په فقهاؤ کښے سُفیان ثوریؒ، امام مالکؒ، امام ابو یوسفؒ او امام محمدؒ دا قول اختیار کړے دے او په حنفی او مالکی مذهب کښے هم په دے باندے فتویٰ ده. باقی څه لږ قولونه نور هم دی، مثلاً څوک دَ قربانۍ کولو ورځے دَ محرم دَ میاشتے دَ اولے ورځے پورے جائز کړی دی، څوک دا وخت صرف دَ یوم النحر پورے محدود کړی دی، او څوک وائی چه دَ یوم النحر نه روستو صرف دَ یوے ورځے پورے قربانی کیږی. لیکن دا قول کمزور قولونه دی چه دلیلونه مضبوط نه دی.

[۵۹] څنو خلقو دَدے نه دا مطلب اخستے دے چه ځینې خوړل او بیا نه ورکول دواړه واجب دی ځکه چه حکم دَ امر په صیغې سره شوے دے. دویمه ډله وائی چه ځینې خوړل مستحب دی او بیا نه ورکول واجب دی دا رائے دَ امام شافعیؒ او دَ امام مالکؒ ده. دریمه ډله وائی چه ځینې خوړل او بیا نه ورکول دواړه مستحب دی. ځینې خوړل ځکه مستحب دی چه دَ جاهلیت په زمانه کښے بعضو خلقو دَ خپلے قربانۍ غوښه ځینې خوړل نا جائز گنړل، او بیا نه ورکول ځکه مستحب دی چه په دے کښے دَ غریبانو سره امداد دے. دا دَ امام ابو حنیفهؒ قول دے. ابن جریرؒ دَ حسن بصری، دَ عطاء، دَ مجاهد او دَ ابراهیم نخعي دا قول نقل کړے دے چه ﴿فَكُلُوا مِنْهَا﴾ کښے دَ امر دَ صیغې دَ وجے نه ځینې خوړل نه ثابتیږی. دا هغه حکم دے لکه چه فرمائی ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ «کله چه تاسو احرامات کړئ نو بیا ښکار کوئ» (المائده آیت ۲) او ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ «بیا چه کله مونځ ختم شی نو په زمکه کښے خوارۀ شئ» (الجمعه آیت ۱۰). دَدے دا مطلب نه دے چه دَ احرام ماتولو نه روستو ښکار کول او دَ جمعے دَ مونځ نه روستو په زمکه کښے خوریدل کول واجب دی بلکه مطلب دا دے چه بیا که چرے څوک دا کوی نو منع نشته. دغه شان دلته هم چونکه خلقو دَ خپلے قربانۍ غوښه ځینې خوړل منع گنړل نو ځکه اُو فرمائیلے شو چه نه، دا خورئ، یعنی دَدے هیڅ منع نشته.

په تنګ لاسو فقیرانو باندے دَ خوړولو په حقله چه کوم فرمان شوے دے دَ هغے دا مطلب نه دے چه څوک په غنیانو باندے نه خوړولے شی دوست، کاوندی، رشته دار، خواه که هغه محتاجه نه وی، خو بیا هم هغوی له دَ قربانۍ دَ غوښے نه ورکول جائز دی. دا خبره دَ اصحاب کرامو دَ عمل نه ثابته ده. علقمه وائی چه حضرت عبدالله بن مسعودؓ ماله دَ قربانۍ څاروے راکړو لیږو او راته ئے اُوفرمائیل چه په یوم النحر ذبحه کړه ځینې ئے اُوخوره، مسکینانو له ئے هم ورکړه، او زما دَ رور کورته هم ورئے لیږه. دَ ابن عمرؓ هم دا قول دے چه یوه حصه ځینې اُوخورئ، یوه حصه کاوندی له ورکړئ او یوه حصه په مسکینانو تقسیم کړئ.

[۶۰] یعنی په یوم النحر (دَ ذی الحجے په لسمه ورځ) چه دَ قربانۍ نه فارغ شئ نو احرامات کړئ ...

لِيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ
حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ عِندَ رَبِّهِ ۗ وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا

خپل نذرونه پوره کړي[52] او دې پخوانۍ کور طواف اوکړي[53]۔
دا ؤو (د کعبې د جوړولو مقصد) او الله چه کوم حرمتونه قایم کړي دي څوک چه د هغې عزت
کوي نو دا کار د هغه د رب په نزد د هغه د پاره ډیر بهتر دے[54]۔
او ستاسو د پاره څرپیدونکي څاروي حلال کړے شو[55] بغیر د هغه څیزونو نه کوم

برابر کړي، اولامبي، او د احرام د حالت نولې پابندیانې ختم کړي. په لغت کښې د تَفَث اصلي معنی مغشوشوالے
او خیرې دے کوم چه په سړي باندې د سفر په وجه وي. خو دلته د حج په سلسله کښې د خیرې لرے کولو ذکر
راغلے دے نو د دے به هغه مطلب وي کوم چه پورته بیان شوے دے. ځکه چه حاجي ترڅو پورې د حج د کار وړ
نه او د قرباني نه وزګار شوے نه وي نو تر هغې نه هغه ویښته پرېکولے شي، نه نوکان پرېکولے شي او نه
د بدن نوره صفائي کولے شي. (په دے سلسله کښې دا خبره په ذهن کښې کینول پکار دي چه د قربانۍ
کولو نه روستو نورې ټولې پابندیانې خو ختمې شي، لیکن خپلې ښځې لور تلل تر هغې نه جائز کیږي ترڅو چه
سړي طواف افاضه نه وي کړے۔
[52] یعني څه نذر چه چا د دے موقعے د پاره منلے وي۔
[53] د کعبې د پاره "بیت عتیق" لفظ استعمالول ډیر معني خیز دے. لفظ "عتیق" په عربۍ ژبه کښې
د درېو معنو د پاره استعمالیږي. یو قدیم یعني پخوانے، دویم آزاد چه په هغې باندې د چا ملکیت نه وي،
دریم عزت والا. دا درے واړه معنې د دے پاک کور سره مناسب دي۔
د طواف نه مراد طوافِ افاضه، یعني طوافِ زیارت دے چه د ذي الحجې د میاشتې په لسمه ورځ د قربانۍ
کولو او د احرام ماتولو نه روستو کولے شي. دا طواف د حج په ارکانو کښې شامل دے. او چونکه د خیرې د لرې
کولو حکم سره د دے ذکر شوے دے نو په دے وجه دا په دے خبره دلالت کوي چه دا طواف د قربانۍ
کولو او د احرام ماتولو نه روستو پکار دے۔
[54] په ظاهره دا یو عام نصیحت دے چه الله تعالی کوم حرمتونه قایم کړي دي د هغې د احترام او د ادب
کولو د پاره شوے دے. لیکن دلته تر هغه حرمتونه خاص طور مراد دي کوم چه د مسجد حرام او د حج او د عمرې او
د مکې د حرم په باره کښې قایم کړے شوي دي. دا نکته په دے کښې یوه باریکه اشاره ده طرف ته هم ده چه قریش
د هغه ټولو حرمتونو هتک او سپکاوے کړے دے کوم چه د ابراهیم علیه السلام د وخت نه قایم کړے شوي دي
یعني د حرم نه ئې مسلمانان او وېستل، په هغوی ئې د حج لاره بنده کړه او د حج په کارونو کښې ئې مشرکانه او
جاهلانه رسمونه شامل کړل او بیت الله ئې د شرک په ګندګۍ ککړ کړو۔
[55] په دے موقع د څرپیدونکو څارو د حلالوالي د ذکر کولو نه مقصد دا دے چه د دوو خبرو اصلاح
وشي، یوه دا چه قریشو او د عربو مشرکانو به بحیره، او سائبه او وصیله او حام هم په هغه حرمتونو

يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ ﴿۳۰﴾

چه تاسو ته بنودلے شوی دی.^۵۶ نو د بتانو د گندگئ نه ځان ساتئ،^۵۷ د دروغو خبرو نه پرهیز کوئ،^۵۸

کښ شامل کوا چه الله قائم کړی دی. نو دا دویم نسا اُو فرمائیلے شو چه ادا الله قائم کړے شوی حُرمتونه دی، بلکه حضرتونه خوړونکی شاروی حلال کړی دی. دویمه د پوره احرام په حالت کښ ښکار کول حرام دی هسے نه چه د اخیال اشی چه غسے دغوبین ونکو شاروو ذبحه کول او د هغے خوړل هم حرام دی. دا دویم دا اُو فرمائیلے شو چه دا الله قائم کړے شوی حُرمتونه دی

^۵۶ اشاره ده هغه حکم ته کوم چه په سورة انعام او په سورة نحل کښ شوے دے چه "الله کوم څیزونه حرام کړی دی هغه دا دی: مُردار، وینه، د خنزیر غوښه او هغه شاروی چه کا الله د نوم نه بغیر د بل چا په نوم ذبح کړے شی". (الانعام، آیت ۱۴۵- النحل، آیت ۱۱۵)-

^۵۷ یعنی د بتانو د عبادت نه داسے ځان ساتئ لکه څنګه چه د گندگئ نه سړے کرکه کوی او ځان ترے ساتی- مطلب دا شو چه دا بتان د گندگئ ډکی دی سړے چه نزدے ورځی نو پلیتیږی به-

^۵۸ اگر چه الفاظ عام دی او کومه ندا ثابتیږی چه هر قسم دروغ، بهتان او د دروغو گواهی حرام ده، لیکن دلته خاص طور اشاره هغه باطلو عقیدو، هغه باطلو حکمونو، او هغه باطلو رسمونو رواجونو ته ده چه د هغے نه کفر او شرک وده موی- د الله سره نورشه شریکول او د هغه په ذات کښ او د هغه په صفتونو کښے او د هغه په اختیاراتو کښ او د هغه په حقونو کښ بندګان حصه دار جوړول هغه غټ دروغ دی چه د هغے نه دلته منع شوی ده. او بیا هغه دروغ هم د دے فرمان لاندے راځی چه د هغے په وجه به مشرکانو بحیره او سائبه او حام وغیره حرام کنړل، لکه چه په سورة نحل کښ فرمائی وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ، "او ستاسو ژبے چه د دروغو کوم حکمونه لګوی چه دا حلال دی او هغه حرام دی، نو په دغه شان حکمونو لګولو سره په الله باندے دروغ مه ورتړئ" (آیت ۱۱۶)-

د دے سره د دروغو قسم او د دروغو گواهی هم د دے لاندے راځی، لکه څنګه چه په صحیح احادیثو کښ د نبیؐ نه روایت شوے دے چه هغه اُو فرمائیل "عُدلت شهادة الزور بالاشراك بالله،" "د دروغو گواهی د شرک بالله سره برابر کړے شوی ده"، او بیا نبیؐ په ثبوت کښ دا آیت پیش کړه- په اسلامی قانون کښے دا جرم د سزا ورکولو مستحق دے. د امام ابو یوسفؒ او د امام محمدؒ دا فتوی ده چه څوک په عدالت کښے د دروغو گواه ثابت شونو د هغه شهرت د اُوکړے شی او د اُوږد قید سزا د ورکړے شی. دا د حضرت عمرؓ قول دے او فعل ئے هم دے. د مکحول روایت دے چه حضرت عمرؓ اُو فرمائیل "یضرب ظهره و یحلق رأسه ویسخم وجهه ویطال حبسه"، "د هغه شا د په کوړو اُو وهلے شی، سر د تیا اُوخرئیلے شی، مخ د تور کړے شی او د اوږد قید سزا د ورکړے شی"۔ عبدالله بن عامر د خپل پلار نه روایت کوی چه حضرت عمرؓ په عدالت کښے د یو سړی گواهی دروغ ښکاره شوه نو هغه ئے یو ورځ په عام بازار کښ ودرولو او اعلان ئے اُوکړو چه دا فلانے ځوئے د فلانی دروغژن گواه دے، دے او پیژنئ- او بیائے هغه قید کړو-

حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ۗ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ
السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ ﴿۳۱﴾
ذٰلِكَ ۗ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿۳۲﴾

یو مخیزي د الله بندګان شئ، د هغه سره شوك مه شریکوئ۔ او څوك چه د الله سره شرك كوي نو هغه داسې دے لكه چه هغه د آسمان نه راپريوتو، اوس خو به يا مارغان وتښتوي يا به ئې هوا داسې ځائے ته ورغورزار كړي چه هلته به ئې اندامونه ريزه ريزه شي[۵۹]۔

دا دے اصل معامله (په دے ځان پوهه كړئ)، او څوك چه د الله د مقرر كړے شوو شعائرو[۶۰] احترام اوكړي نو دا (احترام) د زړونو د تقوى په وجه دے[۶۱]

په موجوده زمانه کښې که د دے سړي نوم په اخبارونو کښې وركړے شي نو دا مقصد پوره كيدے شي۔

۵۹ په دے مثال کښې د آسمان نه مراد د انسان خپل اصلي او حقيقي حالت دے، يعني انسان پيدائشي طور د يو خدائے نه بغير د بل چا پابند نه دے او د توحيد نه علاوه بل هيڅ يو مذهب نه پيژني. كه چرې انسان د پيغمبرانو تعليم قبول كړي نو هغه په هم هغه خپل اصلي حالت باندې د علم او د پوهې سره ټينګ پاتې شي، او وړاندې مزل ئے مخ په پورته وي نه چه مخ په ښكته. ليكن كه چرې انسان شرك (يا دهريت يا الحاد) اختيار كړي نو هغه د خپل اصلي حالت (يعني آسمان) نه راپريوزي او بيا په پرځا غابه دوه حالتونو كښې يو حالت وي. يو دا چه شيطانان او ګمراه انسانان، چه دلته ئے مثال د ښكاري مارغانو سره وركړے شوے دے، هغه طرفته راكلل شروع شي او هر يو دا كوشش كوي چه د ځان ملګرے ئے كړي. دويم دا چه د هغه د خپل نفس خواهشات او د هغه خپل جذبات او خيالات، چه دلته ورلګهوا سره تشبيه وركړے شوې ده، هغه په هوا هوا كښې ګرزوي او آخر دا چه يو داسې ژوره كنده ته ئے ورغورزار كړي۔

د سحيق لفظ د سحق نه وتلے دے چه اصلي معنى ئے ده وړه وړه كول، يو ځائے ته سحيق په دے صورت كښې ويلے كيږي كله چه هغه دومره ژور وي چه څه شے ورته ورغورزار شي نو هغه ټوټه ټوټه شي. دلته د فكر او د اخلاقو لاندې حالت ته په مثال كښې هغه ژوره كنده ويلې شوې ده چه سړے ورته ورپريوزي نو اندامونه ئے ريزه ريزه شي۔

۶۰ يعني د خدائے پرستۍ نښې، خواه كه هغه اعمال وي، لكه مونځ، روژه، حج وغيره، او كه اشياء وي، لكه جوماتونه او د قربانۍ اوښ وغيره. د زيات تشريح د پاره اوګورئ تفهيم القرآن اول جلد، المائده، حاشيه ۵۔

۶۱ يعني دا احترام كول د زړه د تقوى نتيجه ده او د دے خبرې علامه ده چه د سړي په زړه كښې څه نه څه د خدائے يره شته دے ځكه خو هغه د خدائے د شعائرو احترام كوي. او كه څوك په قصد باندې د شعائر الله هتك كوي نو دا د دې خبرې ښكاره ثبوت دے چه د هغه په زړه كښې د خدائے يره نشته، يا خو هغه د خدائے قائل نه دے، او كه د خدائے قائل دے نو بيا ئے د بغاوت لار اختيار كړې ده۔

لَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَآ إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ ﴿۳۳﴾ ع

تاسو ته دے (قربانئ د خاروو) نه د یو مقرر وخت پورې د فائدے اغستلو حق حاصل دے، بیا د هغوی (د قربانئ کولو یعنی ذبحه کولو) ځائے هم د دے پخوانی کورته دے[۶۲][۶۳]

[۶۲] په اولنی آیت کښے د شعائر الله د احترام کولو عام حکم اوشو او دے ته د زړهٔ د تقوی علامه اوګرځولے شوه۔ د دے نه ردستو د فقرهٔ د یوے غلط فهمئ د لرے کولو د پاره اوفرمائیلے شوه۔ په شعائر الله کښے د قربانئ خاروی هم شامل دی، لکه څنګه چه په د عربو خلقو منلهٔ او قرآن د ځپله هم وړاندې فرمائی چه "وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللهِ" او د قربانئ د غه اوښان مونږه ستاسو د پاره په شعائر الله کښے شامل کړی دی۔" اوس دا خبره په ذهن کښے راپیدا کیږی چه د شعائر الله د احترام کولو کوم حکم بر شوے دے آیا د هغے مطلب دا دے چه کله د قربانئ خاروی بیت الله طرفته روان کړے شی نو د هغے نه هیڅ فائده نهٔ شی اغستلے کیدے؟ آیا په هغوی سوریدل یا په هغوی سامان اوړل، یا د هغوی پئ څکل د شعائر الله د تعظیم خلاف خو نهٔ دی؟ د عربو د خلقو هم دغه خیال وو چه دا د تعظیم خلاف دی۔ نو هغوی به د قربانئ خاروی بالکل تش تور بوتلل۔ په لار کښے د هغوی نه څه فائده اغستل د هغوی په نزد ګناه وه۔ د دے غلط فهمئ د لرے کولو د پاره دلته فرمائی چه د قربانئ ځائے ته د رسیدو پورے تاسو د قربانئ د خاروو نه فائده اخستے شئ، او دا خبره د شعائر الله د تعظیم خلاف نهٔ ده۔ هم دا خبره د هغه حدیثونو نه معلومیږی کوم چه ابوهریرهؓ او حضرت انسؓ نه روایت کړے شوی دی۔ په هغے کښے دا بیان شوے دے چه نبی صلی الله علیه وسلم یو سړے اولید چه اوښ ئے د پړئ نه بیولے دے او پیاده روان دے او سخت په تکلیف کښے مبتلا دے۔ نبیؐ ورته اوفرمائیل چه په دے باندې سور شه۔ هغه سړی عرض اوکړو چه دا د قربانئ اوښ دے نبیؐ اوفرمائیل "چه زهٔ وایم چه سور شه"۔

په مفسرینو کښے ابن عباسؓ، قتاده، مجاهد، ضحاک او عطا خراسانی وائی چه په دے آیت کښے "د یو مقرر وخت پورے" نه مراد دا دے چه "ترڅو پورے چه خاروی د قربانئ د پاره مقرر کړے شوی نهٔ وی او د قربانئ خاروی ورته وئیلے شوی نهٔ وی"۔ د دے تفسیر مطابق سړے د دے خاروو نه صرف تر هغه وخته پورے فائده اغستلے شی چه ترڅو پورے په دے قربانئ نوم کیښودے شوے نهٔ وی۔ چه کله په د قربانئ نوم کیښودے شو او بیت الله ته د بوتللو نیت پرے اوشو نو بیا د هغے نه فائده نهٔ شی اغستلے کیدے۔ لیکن دا تفسیر په هیڅ طریقه صحیح نهٔ معلومیږی۔ اول خو په دے صورت کښے د استعمال او د فائدے اغستلو اجازت ورکول بے مطلبه دے۔ ځکه چه "د قربانئ د خاروی" نه علاوه د نورو خاروو نه د فائدے اغستلو یا د نهٔ اغستلو په باره کښے شک کله پیدا شوے وو چه د هغے شک د لرے کولو د پاره د اجازت ورکولو ضرورت پیښ شو۔ بیا آیت صفا وائی چه د هغے خاروو د استعمال لو اجازت دے چه کوم په "شعائر الله" کښے شمار کړی وی، او ظاهره خبره ده چه دا هله کیدے شی چه کله هغه د قربانئ د پاره مقرر کړے شی۔

نورو مفسرینو، مثلاً عروه بن زبیر او عطاء بن ابی رباح وائی چه "د مقرر وخت" نه مراد د قربانئ

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۗ فَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ فَلَهُ أَسْلِمُوا ۗ وَبَشِّرِ

د هر امت د پاره موږ د قربانۍ یو قاعده مقرر کړې ده د پاره د دې چه (د هغې امت) خلق په هغه څارو باندې د الله نوم واخلي کوم چه ورله هغه ورکړي دي ۶۴ (پکښې مختلفو طریقو کښې مقصد یو دی) پس ستاسو خدای یو خدای دے او هم د هغه فرمان منونکي جوړ شئ. او اے نبی، زیری ورکړه

وخت" دے، د قربانۍ نه علاوه د قربانۍ څاروي د سورلۍ د پاره هم استعمالیدے شي، د هغې پئ هم څکلے کیدے شي، د هغوی بچي هم اخستلے کیدے شي او د هغوی وړې او ویښته وغیره هم سکوَلے کیدے شي. امام شافعیؒ دا تفسیر اختیار کړے دے. حنفیان اګرچه د اول تفسیر قائل دي مګر بیا هم دومره رعایت کوي چه د ضرورت په وخت کښې ترې فائده اخستلے کیدے شي.

۶۳ لکه چه بل ځائے کښې فرمائي "هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ" (المائدة آیت ۹۵) د دې نه مراد دا نه دے چه په کعبه یا په مسجد حرام کښې د قربانۍ اوکړې، بلکه د حرم په حدودو کښې دننه قربانۍ کول ترې مراد دے. دا کدے خبرے یو بل دلیل دے چه قرآن کله لفظ کعبه، یا بیت الله یا مسجد حرام اُووائي نو د هغې نه مراد حرم مکه وي نه چه صرف هغه عمارت.

۶۴ د دے آیت نه دوه خبرې معلومے شوے. یوه دا چه قربانۍ د الله تعالیٰ په ټولو شریعتونو کښې د عبادت یوه لازمي حصه پاتې شوې ده. د توحید في العبادت په بنیادي خبرو کښې دا خبره هم شامله ده چه انسان په کوم شکل کښې د غیر الله بندګي کړې ده چه هغه منع کړي او عبادت صرف د الله د پاره خالص کړي. مثلاً انسان غیر الله ته رکوع او سجده کړې ده. نو د الله شریعتونو هغه د الله د پاره خاص کړه. انسان غیر الله ته نذرانے پیش کړي دي. شریعت الٰهي د هغه نذرانے منع کړے او زکوٰة او صدقه ئے د الله د پاره واجب کړه. انسان د باطلو معبودانو دربارونو ته تلے دے. شریعت الٰهي د یو مقام نه پاک ځائے یا د الله کور جوړ کړو او د هغې د زیارت او د طواف کولو حکم ئے اُوکړو. انسان د غیر الله په نوم روژے نیولے دي. شریعت الٰهي دا هم د الله د پاره خاص کړے. بیخی هم دغه شان انسان د خپلو جوړ کړو معبودانو د پاره د څارو قربانۍ هم کوي او د الله شریعت دا هم د غیر الله د پاره قطعاً حرام کړه او د الله د پاره ئے واجب کړه.

دویمه خبره د دے آیت نه دا معلومه شوه چه اصل شے د الله په نوم باندې قربانۍ کول دي. باقي شو دا خبره چه قربانۍ کله او په کوم ځائے کښې او په کومه طریقه اُوکړے شي نو دا اصل شے نه دے. په دے کښې د مختلفو زمانو او د مختلفو قومونو او د مختلفو ملکونو د پیغمبرانو په شریعتونو کښې د حالاتو په لحاظ سره اختلاف را غلے دے، لیکن د ټولو مقصد یو دے.

الْمُخْبِتِينَ ﴿٣٤﴾ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَالصَّابِرِينَ
عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ وَالْمُقِيمِي الصَّلَاةِ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٥﴾
وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا لَكُم مِّن شَعَائِرِ اللَّهِ لَكُمْ فِيهَا

عاجزي کوونکو خلقو له[64]، چه د هغوئ دا حال دے چه د الله ذکر اوري نو زړونه ئے رپیږي، چه هر مصیبت پرې راځي نو په هغې صبر کوي، مونځ قائموي، او کوم رزق چه ورله مونږ ورکړے دے د هغې نه خرچ کوي[65]

او (د قربانئ) اوښان[66] مونږ ستاسو د پاره په شعائر الله کښې شامل کړي دي، ستاسو د پاره په هغې کښې

[64] په اصل کښې لفظ "مُخْبِتِيْنَ" استعمال کړے شوے دے چه مطلب ئے په یو لفظ سره نه ادا کیږي. په دے کښې درے مطلبونه شامل دي. غرور او تکبر پرېښودل او د الله په مقابله کښې عاجزي اختیارول. د الله په بندګئ او غلامئ باندې مطمئن کیدل او د الله په فیصلو باندې راضي کیدل.

[65] د دے نه مخکښې مونږ دا وئیلي دي چه الله تعالیٰ حرام او ناپاک مال ته هیچرې خپل رزق نه دے وئیلے. د دے وجې نه د آیت مطلب دا دے چه کوم پاک رزق مونږ هغوئ له ورکړے دے او کوم حلال کټه مونږه د هغوئ نصیب کړي ده د هغې نه هغوي خرچ کوي. بیا د خرچ نه مراد هم هر قسم خرچ نه دے بلکه د دے نه مراد خپل او د خپل بال بچ ضرورتونه پوره کول دي، د رشته دارانو او د ګاونډیانو او حاجتمندو خلقو مدد کول دي، د عامے فائدے په کارونو کښې حصه اخستل دي او د الله د کلمه د اوچتولو د پاره مالي قرباني کول دي. بے ځایه خرچ کول، د عیش عشرت د پاره خرچ کول او د ریا د پاره خرچ کول هغه څیز نه دے چه هغې ته قرآن "انفاق" وائي، بلکه قرآن دے ته "اسراف او تبذیر" وائي. دغه رنګه چه کوم خرچ په نازره او په شومتیا سره اوکړے شي، یعنې خپل بال بچ هم تنګ او ساتي، او خپله هم خپل ضرورتونه د خپل حیثیت مطابق پوره نه کړي او د خلقو امداد هم د خپل وس مطابق نه کوي نو په دے صورت کښې اګرچه سړے څه نه څه خرچ خو کوي، لیکن هغې ته "انفاق" نه وائي. قرآن هغې ته "بُخل" او "شُحِّ نفس" وائي.

[66] په اصل کښې لفظ "بُدن" استعمال شوے دے چه په عربئ ژبه کښې د اوښانو د پاره مخصوص دے. لیکن نبي صلی الله علیه وسلم د قربانئ په حکم کښې غواګانې هم د اوښانو سره شاملې کړي دي. لکه څنګه چه د یو اوښ قرباني د اووه کسانو د پاره کافي کیږي، دغه شان د یوے غوا په قربانئ کښې هم اووه کسان شاملیدے شي. په مسلم کښې د جابر بن عبد الله روایت دے چه "امرنا رسول الله صلی الله علیه وسلم ان نشترك في الاضاحي البدنة عن سبعة والبقرة عن سبعة." "رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته حکم اوکړو چه مونږه په قربانئ کښې شریک شو، اوښ د اووه کسانو د پاره او غوا د اووه کسانو د پاره."

خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ ۖ فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا

خیر دے ۶۸، پس هغه وَ دروَی او دَ الله نوم پرے واخلئ ۶۹، او کله چه (دَ قربانئ نه روستو) دَ هغوی شا گانے په زمکه

۶۸ یعنی تاسو دَ هغے نه ډیره فایده اخلئ۔ دا اشاره دهٔ دے خبرے ته چه تاسو له قربانی کول ولے پکار دی۔ انسان له چه خدائے کوم څیزونه ورکړی دی او دهٔ دَ هغے نه فایدې اخلی نو دهٔ له پکار دی چه دَ هر څیز قربانی دَ الله په نوم اُوکړی، نه یوازے دَ نعمت دَ شکرئے ایستلو دپاره، بلکه دَ الله دَ لوئی او دَ هغه مالک والی دَ منلو دپاره هم، دَپاره دَ دے چه سړے دَ زړهٔ نه هم او په عمل سره هم دا خبره اُومنی چه دا ټول هر څه کښے اَ دَ دی او هغهٔ موږ له راکړی دی۔ ایمان او اسلام دَ نفس قربانی ده۔ مونځ او روژه دَ بدن او دَ بدن دَ طاقتونو قربانی ده۔ زکوٰة دَ هغے مالونو قربانی ده چه په مختلفو شکلونو کښے الله موږ له راکړی دی۔ جهاد دَ وخت دَ ذهن او دَ بدن قربانی ده۔ دَ الله په لار کښے جنګ کول دَ روح قربانی ده۔ دا ټول دَ یو یو قسم نعمت او دَ یو یو بخشش شکریه ده۔ دغه شان دَ څارویو دَ قربانئ حکم هم موږ ته شوے دے، دَپاره دَ دے چه موږ دَ الله تعالیٰ په دے لوئی نعمت باندے دَ الله تعالیٰ شکر ادا کړو او دَ هغه لوئی اُومنو چه هغه ډیر څناور زموږ دَ فایدے دَپاره پیدا کړی دی چه په هغے باندے موږ سورلی کوُو چه دَ هغے نه ذکر کرونده او دَ بار وړلو خدمت اخلو، چه دَ هغے غوښه خورو او دَ هغے پئ څکو، او دَ هغے دَ څرمنو، او کچے دَ وړئ، دَ ویښتو او دَ هډو کو نه، غرض دا چه دَ هغے دَ یو یو څیز نه بے حسابه فایدے اخلو۔

۶۹ یاد لرئ چه دَ اُوښ قربانی په ولاړه کیږی۔ دَ اُوښ یوه خپه اُوتړلے شی، بیا دَ هغهٔ مرئ په زور سره په نیزه اُووهلے شی چه وینه راوتل ترے شروع شی۔ کله چه ترے ډیره وینه اُووځی نو اُوښ په زمکه راپریوزی۔ دا مطلب دے دَ صَوَافَّ۔ ابن عباسؓ، مجاهد او ضحاک وغیره دَ دے دا تشریح کړی ده۔ بلکه دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه هم دا تشریح نقل کړے شوی ده۔ په مسلم او په بخاری کښے روایت دے چه ابن عمر یو سړے اُولیدو چه هغه خپل اُوښ کینولے دے او ذبحه کوی ئے۔ هغه ورته اُووے "ابعثها قیاما مقیدة سنة ابی القاسم صلی الله علیه وسلم۔" دے وَ دروه او خپه ورله اُوتړه، دا دَ ابو القاسم صلی الله علیه وسلم طریقه ده۔" په ابو داؤد کښے دَ جابر بن عبد الله روایت دے چه نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغهٔ اصحابو به دَ اُوښ کسه خپه تړله او په دریو خپو به ئے ودرولو او بیا به ئے ذبحه کولو۔ دَ دے مفهوم ته پخپله قرآن هم اشاره کوی: اِذَا وَجَبَتْ جُنُوْبُهَا، "کله چه دَ هغوی شا گانے په زمکه اولیږی" دا به هغه صورت کښے ویلے کیږی چه کله څاروے ولاړ وی او بیا په زمکه راپریوزی کنی په ملاستے ئے خو هسے هم شا په زمکه لګیدلی وی۔

۷۰ دا الفاظ بیا په دے خبره دلالت کوی چه په کوم څاروی دَ الله نوم نه وی اخستلے شوے نو هغه حلال نه وی، ځکه خو الله تعالیٰ هغوی ته" دَ ذبحه کولو" په ځائے دا فرمائی چه " په هغوی باندے دَ الله نوم واخلئ" او مطلب ئے دَ څارو ذبحه کول دی۔ دَ دے نه دا خبره پخپله معلومیږی چه په اسلامی شریعت کښے دَ څارو

فَكُلُوْا مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ
تَشْكُرُوْنَ ﴿۳۶﴾ لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ
التَّقْوٰى مِنْكُمْ كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَ

او لږځي نو د هغې نه چنيله هم خورئ او په هغه خلقو ئې هم خوروئ چه په صبر سره ناست دی او په هغه خلقو هم چه چيل حاجت پيش کړي. هم دا رنګې دا څاروي موږ ستاسو د پاره مسخر کړي دی د پاره د دې چه تاسو شکريه ادا کړئ.[۶۲] نه د هغې غوښه الله ته رسي او نه وينه، ليکن هغه ته ستاسو تقوی رسي.[۶۳] په دې شان هغه ستاسو د پاره دا څاروي مسخر کړي دي چه تاسو د هغه په ښودلی شوی هدايت باندې د هغه لوئي بيان کړئ.[۶۴] او

د ذبحې کولو طريقه صرف يو ده او هغه دا چه د الله نوم پرې اخستلې کيږي او ذبحه کيږي. د دې نه علاوه بله هيڅ طريقه نشته.

د ذبحې کولو په وخت کښې بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ الفاظ وئيل هم د دې ځائې نه اخستلې شوی دی. په آيت ۳۶ کښې فرمائي "فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا" "په هغې باندې د الله نوم اخلئ". او په آيت ۳۷ کښې فرمائي "لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ" "چه تاسو د هغه په ښودلی شوی هدايت باندې د هغه لوئي بيان کړئ".

د قربانئ کولو په وخت کښې د الله د نوم اخستلو مختلف صورتونه په احاديثو کښې نقل شوی دی. مثلاً، (۱) بِسْمِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ "د الله په نوم، او الله د ټولو نه لوئې دے. اے خدايه! ستا مال دے او خاص ستا د پاره حاضر دے." (۲) اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ، "الله د ټولو نه لوئې دے. د الله نه بغير بل هيڅوک د عبادت لائق نشته. اے خدايه دا ستا مال دے او خاص ستا د پاره حاضر دے." (۳) اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ، اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ "ما خپل مخ د ټولو طرفونو نه د هغې ذات طرف ته کړو چه هغه ځمکه او آسمانونه پيدا کړی دی. او زه د مشرکانو نه نه يم. بيشکه چه زما مونځ او زما قربانئ او زما مرګ او زما ژوند ټول د الله رب العلمين د پاره دی، هغه له هيڅوک شريک نشته. د دې ما ته حکم شوے دے او زه د منونکو خلقو نه يم. اے خدايه دا ستا مال دے او ستا د پاره حاضر دے".

[۶۲] په ځمکه د لګيدو مطلب يوازې دا نه دے چه هغه په ځمکه باندې پريوزي، بلکه دا هم چه هغه پريوزي او په آرام شي او ښاترې پوره اوزي. په ابوداؤد، ترمذی او مسند احمد کښې د نبي صلی الله عليه وسلم دا حديث نقل شوے دے چه "ما قُطِعَ (اَوْ مَابَانَ) مِنَ الْبَهِيْمَةِ وَهِيَ حَيَّةٌ فَهُوَ مَيْتَةٌ" "يعنی د څاروی نه چه کومه غوښه په داسې حالت کښې پريکړې شي چه هغه لا ژوندے وی نو هغه مُردار ده".

[۶۳] دلته بيا دے ته اشاره ده چه د قربانئ کولو حکم ولې شوے دے. فرمائي دا ځکه چه دا شکريه ده د هغې

عظیم الشان نعمت چه الله تاسو له مسخر کړی څاروی درکړی دی۔

۶۳ مکه څنګه چه په جاهلیت په زمانه کښې د بتانو د قربانئ غوښه په بتانو وراچولې کېدله، د غسې به د الله د نوم د قربانئ غوښه د کعبې مخ ته کېښودې کېدله او وینه به ئې د کعبې په دیوالونو وراچولې کېدله، د هغوئ په نزد دا قربانی د دې د پاره کېدله چه الله ته د دې وینه او غوښه پېش کړې شي۔ د دې جهالت د ختمولو د پاره فرمائی چه کوم اصل شې الله ته پېش کېږي هغه د څاروي وینه او غوښه نه ده بلکه ستاسو تقوی ده۔ که چرې تاسو د شکر د جذبې سره په خالص نیت صرف د الله د پاره قربانی اوکړه نو د دې جذبې او د دې نیت او د دې خلوص نذرانه به الله ته رسي، کنې نو وینه او غوښه به دلته پاتې کېږي۔ هم دا خبره د نبي صلی الله علیه وسلم نه نقل شوې ده۔ فرمائی چه "ان الله لاینظر الی صورکم ولا الی الوانکم ولکن ینظر الی قلوبکم و اعمالکم"، "الله ستاسو شکلونو او رنګونو ته نه ګوري، بلکه هغه ستاسو زړونو او عملونو ته ګوري"۔

۶۴ یعنی د زړه د اخلاص د هغه لوئې ارمتې او په عمل سره د هغې اظهار اوکړئ۔ بیا د قربانئ غرض او سبب ته اشاره شوې ده۔ قربانی یوازې د دې د پاره نه ده واجب کړې شوې چه د څاروو د تسخیر په نعمت باندې د الله شکریه ده، بلکه د دې د پاره هم واجب کړې شوې ده چه د چا اختیار دی او چا زمونږ د پاره مسخر کړی دی، چه د زړه د اخلاص د هغه مالکانه حقه اومنو او په عمل سره د هغې اظهار اوکړو، چه هیڅ چا ته دا خیال مو رانشي چه دا ټول هر څه زمونږ خپل مال دی۔ دا خبره په هغه فقره کښې اداکېږي کوم چه د قربانئ کولو په وخت کښې ویلې کېږي چه "اللهم منک ولک"، "اے خدایه دا ستا مال دی او خاص ستا د پاره حاضر دی"۔

دلته په دې خبره هم ځان پوهه کول پکار دی چه دلته د قربانئ کوم حکم شوې ده هغه یوازې د حاجیانو د پاره نه ده، او نه یوازې د دې د پاره ده چه خاص د حج په موقع د مکه کښې اوشي، بلکه دا حکم د ټولو مالدارو مسلمانانو د پاره عام دی، خواه که هغوئ په هر ځائې کښې وي، هغوئ له پکار دی چه د څاروو د تسخیر په نعمت باندې شکریه اداکړي او د الله لوئې هم بیان کړي او د حاجیانو سره په عمل کښې شریک هم شي۔ که د حج سعادت حاصل نه شو نو نه سهی، کم از کم د حج په ورځو کښې خو د ټولې دنیا مسلمانان هغه کار کوي کوم چه حاجیان د بیت الله خواته کوي۔ دا خبره په ډېرو صحیح حدیثونو کښې راغلې ده او په ډېرو معتبرو روایتونو سره هم ثابته شوې ده چه نبي صلی الله علیه وسلم به پخپله په مدینه منوره کښې هر کال د لوئې اختر په ورځ قربانی کوله او په مسلمانانو کښې د هغه د سنت نه دا طریقه جاري شوه۔ په مسند احمد او ابن ماجه کښې د ابوهریرهؓ روایت دی چه نبيؐ فرمائی:

من وجد سعة فلم یضح فلا یقربن مصلانا۔ | کوم سړی چه مال لري او قرباني اونه کړي، هغه دې زمونږ عیدګاه ته نزدې نه راځي۔

د دې روایت ټول راویان ثقه دي۔ په محدثینو کښې صرف په دې خبره باندې اختلاف شوې دې چه دا مرفوع روایت دی او که موقوف۔ په ترمذی کښې د ابن عمر روایت دی:

اقام رسول الله صلی الله علیه وسلم بالمدینة عشر سنین یضحي۔ | نبي صلی الله علیه وسلم لس کاله په مدینه کښې وو او هر کال به ئې قربانی کوله۔

په بخاری کښې د حضرت انسؓ روایت دی چه نبي صلی الله علیه وسلم د لوئې اختر په ورځ اوفرمائیل:

بَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳۷﴾ اِنَّ اللّٰهَ يُدٰفِعُ عَنِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ

اے نبیؐ، زیری ورکړه نیکي کونکو خلقوته۔ ۷۵

یقیناً الله مدافعت کوي د هغه خلقو د طرفنه کوم چه ایمان راوړے دے ۷۶۔ یقیناً الله

---

من کان ذبح قبل الصلوٰة فلیعد — چا چه د اختر مونځ نه مخکښے ذبحه اُوکړه ۔

ومن ذبح بعد الصلوٰة فقد تم — هغه له پکار دي چه دوباره قرباني اُوکړي او چا چه د مونځ

نسکه واصاب سنة المسلمین ۔ — نه روستو قرباني اُوکړه د هغه قرباني پوره شوه او هغهٔ د

مسلمانانو طریقه بیا مونده ۔

او دا معلومه ده چه په مکه کښے د غر په ورځ هیڅ داسے یو مونځ نه وي چه د هغے نه مخکښے قرباني کول د مسلمانانو د طریقے نه خلاف وي او د هغے نه روستو کول د هغے مطابق وي ۔ لهٰذا دا حکم لا محاله په مدینه کښے شوے دے نه چه په مکه کښے د حج په موقع شوے ده ۔

په مسلم کښے د جابر بن عبدالله رضی روایت دے چه نبي صلی الله علیه وسلم په مدینه کښے د لوي اختر مونځ ورکړو او څو خلقو دا خیال اُوکړو چه نبيؐ ګني قرباني کړي ده ، نو هغوئ هم جلے جلے قرباني اُوکړه ۔ نبيؐ چه د دے نه خبر شو نو حکم ئے اُوکړو چه کوم خلقو زما نه مخکښے قرباني کړے ده هغوي دے دوباره اُوکړي ۔

پس په دے خبره کښے هیڅ شک نشته چه د لوي اختر په ورځ عام مسلمانان کومه قرباني په ټوله دنیا کښے کوي هغه دا د نبيؐ جاري کړے شوې سنت دی ۔ البته اختلاف صرف په دے خبره کښے دے چه آیا دا واجب ده او که صرف سنت ده ۔ ابراهیم نخعی ، امام ابو حنیفهؒ امام مالک او امام محمدؒ او د یو روایت مطابق امام ابو یوسف هم وائي چه دا واجب ده ۔ لیکن امام شافعي او امام احمد بن حنبل وائي چه دا صرف د مسلمانانو سنت ده ، او سفیان ثوري هم د دے خبرې قائل دے چه که چرے څوک ئے اُو نه کړي نو باک نشته ۔ بیا هم د اُمت په ټولو عالمانو کښے هیڅوک د دے خبرې قائل نه دے چه که چرے ټول مسلمانان په اتفاق سره قرباني پریږدي نو ګني بیا هم پکښے څه باک نشته ۔ دا نوے سوچ صرف زمونږ د زمانے د ځینو خلقو دے چه د هغوي چیل نفس د هغوي قرآن هم دے او د هغوي سنت هم دے ۔

۷۶ د دے مقام نه تقریباً خبرې تر اوریږي ۔ په روان کلام باندے د غاړ پوهه کولو د پاره دا خبره په ذهن کښے تازه کول پکار دي چه دا تقریر هغه وخت شوے دے کله چه د هجرت نه روستو په اول ځل د حج موسم راغلو ۔ په هغه وخت کښے یو طرفته خو په مهاجرینو او د مدینے په انصارو باندے دا خبره ډیره سخته ګرانه وه چه هغوي د حج د نعمت نه محروم کړے شوي دی او په هغوي باندے د حرم لاره په زوربند کړے شوي ده ۔ او بل طرفته د مسلمانانو په زړونو باندے نه صرف د هغے ظلم داغ تازه دو کوم چه په مکه کښے په هغوي باندے شوي وو ، بلکه هغوي په دے خبره باندے هم ډیر سخت خفه وو چه کله هغوي چیل کورونه پریښودل او د مکے نه ووتل نو اوس په مدینه کښے هم هغوي څوک په آرام نه پریږدي ۔ په دے موقع چه کوم تقریر اُوشو د هغے په اولنئ کښے د کعبے په جوړولو او د حج په نظام او د قربانۍ په طریقه باندے تفصیلي بحث اُوشو او دا اُوښودلے شو چه په اصل کښے د دے ټولو څیزونو مقصد څه وو او د جاهلیت

لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُوْرٍ ﴿۳۸﴾ اُذِنَ لِلَّذِيْنَ يُقٰتَلُوْنَ بِاَنَّهُمْ ظُلِمُوْا ۚ وَاِنَّ اللّٰهَ عَلٰى نَصْرِهِمْ لَقَدِيْرُ ﴿۳۹﴾ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ

هیڅ یو نعمت ناشکره خیانت کونکی نه خوښوی ۷۶ اجازت ورکړے شو هغه خلقو له چه د چا خلاف جنګ کیږی ځکه چه هغوی مظلومان دی، ۷۷ او یقیناً چه الله د هغوی په مدد کولو قادر دے ۷۸ - دا هغه کسان دی چه خپلو کورونو نه ناحقه

تر اوس ځه موده شوی دی - د غه شان په مسلمانانو کښې دا جذبه راپیدا شوه چه د انتقام په نیت نه بلکه د اصلاح په نیت راپاسی او دا حالت بدل کړی. دا رنګه په مدینه کښې د قربانۍ طریقه جاری کړے شوه او مسلمانانو له دا موقع هم ورکړے شوه چه د حج په زمانه کښې په خپل خپل کور کښې قربانی اوکړی او هغه سعادت حاصل کړی د کوم نه چه دُشمنانو هغوی محرومه کولو کوشش کړے دے، او د حج نه جدا دیو مستقل سنت په حیثیت سره ئے قربانی جاری کړه د پاره د دے چه کوم خلق حج له لا نه شی نو چه هغوی هم د الله د نعمت شکر او د هغه د لوئی حق ادا کړی - د دے نه روستو اوس د تقریر په دویم حصه کښې مسلمانانو له اجازت ورکړے کیږی چه هغوی د هغه ظلم خلاف توره راواخلی کوم چه په هغوی باندې مکې کښې شوے دے او اوس هم پرې کیدو.

۷۶ "مدافعت" د "دفع" نه مصدر چه اصلی معنی ئے د یو څیز لرې کول - لیکن کله چه د دفع کولو په ځائے مدافعت اُووئیلے شو نو دوه مطلبونه پکښې نورشامل شی - یو دا چه دشمن حمله کوی او مدافعت کونکے د هغه مقابله کوی - دویم دا چه دا مقابله یو ځل نه وی بلکه هر کله چه هغه حمله کوی نو د ے هغه دفع کوی - چه دا دوه مطلبونه د سرې په نظر کښې وی او وګوری نو د مؤمنانو د طرفه د الله تعالیٰ د مدافعت کولو مطلب دا معلومیږی چه د کفر او د ایمان په جنګ کښې مؤمنان بالکل یوازے نه وی بلکه الله پخپله د هغوی سره یو فریق وی - هغه د مومنانو ملګرتیا کوی د مؤمنانو خلاف د دُشمنانو منصوبے ناکام کوی او د دُشمنانو ضرر د هغوی نه دفع کوی - پس دا آیت په حقیقت کښې د اهلِ حق د پاره یو ډیر لوئے زیرے دے، د دے نه زیات بل هیڅ څیز د مؤمنانو د زړهٔ د مضبوطیا د پاره نه شی کیدے

۷۷ دا سبب د دے خبرې چه د کفر او د ایمان په جنګ کښې الله تعالیٰ ولے د اهلِ حق سره ملګرتیا کوی - دا ځکه چه د حق خلاف جنګ کونکی د لته خیانت کره دے، او نعمت ناشکره دے - هغوی په هر هغه امانت کښې خیانت کوی کوم چه الله هغوی ته حواله کړے دے، او هغوی د هر هغه نعمت ناشکری او بے قدری کوی کوم چه ورله الله ورکړے دے - په دے وجه الله تعالیٰ هغوی نه خوښوی او د هغوی خلاف د حق پرستو خلقو امداد کوی.

۷۸ لکه څنګه چه په دیباچه کښې دا بیان شوے دے چه دا د "قتال فی سبیل الله" په باره کښې اولنے آیت نازل شوے دے - په دے آیت کښې صرف اجازت ورکړے شوے وُو. روستو په سورة بقره کښې هغه آیتونه نازل شو په کومو کښې چه د جنګ کولو حکم شوے دے، یعنی وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ، (آیت ۱۹۰) او وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ، (آیت ۱۹۱) او وَقَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ (آیت ۱۹۳) او كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ (آیت، ۲۱۶) او قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (آیت ۲۴۴)-
د اجازت او د حکم په منځ کښې صرف د یو څو میاشتو فرق دے - زمونږ د تحقیق مطابق اجازت په ذی الحجه

بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّآ أَن يَقُولُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعْضَهُم

اُو ویستلے شو، گناه ئې صرف ؍اوه چه هغوی ؍ویل "زمونږ رب الله دے".[۸۱] که چرے الله خلق د یو بل په ذریعه

---

سلسه هجری کښے نازل شو او حکم د جنګ بدر نه لږ مخکښے په رجب یا په شعبان سنه ۲ هجری کښے نازل شو.

۷۹ یعنی اګرچه دا یو موټے خلق دے لیکن الله تعالیٰ ئې د عربو په ټولو مشرکانو باندې غالب کولے شی. دا خبره په نظر کښے ساتل پکار دی چه په کوم وخت کښے د توره اُوچتولو اجازت ملاوېږی وو نو د مسلمانانو ټول طاقت د مدینے په یوه قصبه کښے وُو او د مهاجرینو او د انصارو ټول تعداد زرو کسانو ته هم نه رسیدو. او په دا حالت کښے قریشو ته د مقابلے کولو اعلان کیدو چه قریش یوا نه وُو بلکه د هغوی سره د عربو نورو مشرکو قبائلو ملاتړ هم وُو او روستو ورسره یهودان هم ملګری شول. په دے موقع باندې دا حکم چه "یقیناً الله د مومنانو په امداد کولو باندې قادر دے" ډیر صحیح وُو. په دے سره د هغه مسلمانانو حوصله هم اُوچته کړے شوه کوم چه د ټول عرب سره مقابلے کولو ته تیار وُو لے کیدل، او کافرانو له هم خبردارے ورکړے شو چه ستاسو مقابله په اصل کښے د دغه یو موټی مسلمانانو سره نه ده بلکه د خدائے سره ده. که د هغه د مقابلے کولو طاقت درکښے وی نو را وړاندې شئ.

۸۰ د دے آیت نه صفا معلومیږی چه د سورت حج د احصه خامخا د هجرت نه روستو نازل شوی ده.

۸۱ په کوم ظلم سره چه دا خلق ایستلے شوی دی د هغے د اندازه لګولو د پاره لاندینی یو څو واقعاتو اوګورئ:

حضرت صُهیب رومی چه کله هجرت کولو نو د قریشو کافرانو ورته اُووے چه ته د لته خالی لاس راغلے وے او اوس ښه مالدار شوے. ته که تلل غواړے نو خالی لاس تلے شی، خپل مال د ځان سره نه شی اُوړلے. حالانکه هغه چه څه ګټلی وُو نو د خپلو لاسو نو په محنت ګټلی وُو. چا خیرات نه وُو ورکړے. آخر دا چه هغه غریب خپل ټول او سنډوله او پاسیدو او خپل هر څه ئې ظالمانو ته حواله کړل، چه مدینے ته اُورسیدو نو د ټ د کپړو نه سیوا ورسره هیڅ نه وُو.

حضرت اُم سلمه او د هغے خاوند ابو سلمه د ټې د ماشوم سره په هجرت روان شو. بنی مُغیره (چه د اُم سلمه خاندان وُو) ورته لاره بنده کړه او ابو سلمه ته ئے اُووے چه ته چرته هر چرته ګرځے، خو زمونږ د زنانه د ځان سره نه شی بوتلے. هغه په مجبوری سره ښځه پریښودله او لاړو. بیا بنی عبدالاسد (د ابو سلمه خاندان) هغه ماشوم راوړاندې شو او ئے ویل چه بچے زمونږ د قبیلے دے، دا مونږ ته حواله کړه. د غه شان بچے هم د مور او پلار نه په زوره وا خستلے شو. تقریباً د یو کال پورے اُم سلمه د خپل بچی او د خاوند په غم کښے ترقیدله. آخر په ډیره مشکله ورته خپل بچے ملاو شو، هغه ئے په غیږ کښے را غستو او په اوښ سوره شوه او د مکے نه روانه شوه او په هغه خطرناکه لاره تلله چه په هغه به وسله بند سے قافلے تللے نو هم به یریدلے.

عیاش بن ربیعه، د ابو جهل د مور شریک ورور وُو. د حضرت عُمر سره ئے هجرت وکړو او مدینے ته اُورسیدو. روستو ورپسے ابو جهل د خپل ورور سره لاړو او دا خبره ئې جوړه کړه چه مور دے قسم خوړلے دے چه ترڅو عیاش لیدلے نه وی نو نه به د غر مو نه شوری ته ننوځم او نه به په سر کښے ګومنځ اُووهم. ته بس دو مره راشه چه

بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَ[redacted] وَّمَسٰجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا
اسْمُ اللّٰهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنْصُرَنَّ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ ۗ إِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ

نۀ دفعه کولے نو د راهبانو خانقاهونه او (د عیسایانو) گرجے او (د یهودیانو) عبادت خانے او (د مسلمانانو) جوماتونه، چه پکښے د الله نوم ډیر ډیر اخستلے کیږی، ټول به وران کړے شوی وے. الله به ضرور د هغه چا مدد کوی څوک چه د هغه مدد کوی. الله ډیر طاقتور او

هغه د اُوډیځ او بیا واپس راغله. نو هغه ورسره د مورد میځے له کبله راروان شو. په لار کښه دوار د رونړو هغه قیدکړو او هغه ته ئے په رسو تړلے را وستو او د اچغے ئے وهلے چه "ای هکو والو خپل نالائقه ځوانان دا هسے سیده کوئ لکه څنګه چه مونږ سیده کړے دے." ډیره موده دا غریب په قید کښه وو او آخر دا چه یو بهادر مسلمان مرانه اُوکړه او هغه ئے د هکے نه اُوویستو.

دغه شان ظلمونه تقریبًا په هر هغه چا شوی وُو چا چه د مکے نه مدینے ته هجرت کړے وُو. دے ظالمانو کور په ښو دلو په وخت کښے هم دا غریبان په خیریت سره پریښے نه ښودل.

۸۲ه په اصل کښے الفاظ صَوَامِعُ او بِيَعٌ او صَلَوٰتٌ استعمال شوی دی. صومعه هغه ځائے ته وائی په کوم ځائے کښے چه راهبان او تارکُ الدنیا فقیران اُوسیږی. بیعه لفظ په عربئ ژبه کښے د عیسایانو د عبادت خانے دپاره استعمالیږی. صَلَوٰت د یهودیانو د مونځ کولو ځائے ته وائی. یهودیانو به دے ته صلوتا ویلو چه د آرامی ژبے لفظ دے. کیدے شی چه د انګریزئ لفظ Salute یا Salutation د دے نه وتلے وی او بیا لاطینئ ژبے ته او بیا انګریزئ ژبے ته رسیدلے وی.

۸۳ه یعنی دا د الله لوئ فضل دے چه هغه کوم یو قوم سره د همیشه اقتدار معاهده نۀ ده کړی، بلکه هغه وخت په وخت په دنیا کښے یوه ډله د بلے ډلے په ذریعه دفع کوی. او که نه چرے یوے ډلے ته د اقتدار کولو اجازت ورکړے شوے وے نو یوازے به قلا گانے او ما نړئ، سیاست او تجارت وغیره نۀ وُو تباه شوی بلکه عبادت خانے به هم روغے نۀ وے پاتے شوے. په سورۃ بقره کښے دا خبره په دے طریقه شوی ده "وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ" که چرے الله تعالیٰ دا خلق د یو بل په ذریعه نۀ دفع کولے نو په زمکه کښے به فساد راپورته شوے وُو. لیکن الله تعالیٰ په دنیا والو باندے ډیر فضل کونکے دے." (آیت ۲۵۱).

۸۴ه دا خبره د قرآن مجید په ډیرو ځایونو کښے بیان شوی ده چه څوک کسان مخلوق توحید طرف ته رابلی او حق دین قائموی او د شر په ځائے د خیر د خورولو کوشش کوی نو هغوی په اصل کښے د الله مددگار دی، ځکه چه دا کار د الله تعالیٰ دے او دوئ ورسره ملګرتیا کوی. د زیاتے تشریح د پاره اُوګورۍ تفهیم القرآن اول جلد، آلِ عمران، حاشیه ۵۰.

عَزِيزٌ ﴿٤٠﴾ اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا
الزَّكٰوةَ وَاَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ ۗ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ
الْاُمُوْرِ ﴿٤١﴾ وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ
وَّعَادٌ وَّثَمُوْدُ ﴿٤٢﴾ وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ وَقَوْمُ لُوْطٍ ﴿٤٣﴾ وَّاَصْحٰبُ
مَدْيَنَ ۚ وَكُذِّبَ مُوْسٰى فَاَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِيْنَ

زبردست دے۔ دا هغه خلق دی چه که مونږ ه ورله په زمکه کښے اقتدار ورکړو نو هغوی به مونځ قائموی زکوٰة به ورکوی، د نیکئ حکم به کوی او د بدئ نه به منع کول کوی.[85] او د ټولو معاملاتو انجام د الله په لاس کښے دے.[86]

اے نبیؐ، که چرے دوئ تا دروغژن گڼړی[87] نو د دوئ نه مخکښے د نوحؑ قوم او عادیانو وثمودیانو او د ابراهیمؑ قوم او د لوطؑ قوم او مدین والو هم (خپل خپل رسولان) دروغژن گڼړلی دی او موسیٰؑ هم دروغژن گڼړے شوے دے. د دے ټولو حق منکرو خلقو له ما اول مهلت ورکړو،

---

[85] یعنی کوم خلق چه د الله مددگار دی او د الله د امداد مستحق دی نو د هغوی دا صفتونه دی چه که چرے په دُنیا کښے هغوئ له حکومت ورکړے شی نو د هغوئ کاریه د گناه د خوړ دلو او د تکبر کولو په ځائے مونځ قائمول وی، د هغوئ دولت به د عیاشئ او د نفس پرستئ په ځائے په زکوٰة ورکولو کښے خرچ کیږی، د هغوئ حکومت به د نیکئ ختمولو په ځائے د نیکئ د خوروولو خدمت کوی او د هغوی طاقت به د بدئ د خوروولو په ځائے د بدئ د ختمولو د پاره استعمالیږی. په دے یوه فقره کښے د اسلامی حکومت د کار کنانو اصلی خاصیتونه ښودلے شوی دی. که څوک ځان پوهه کول غواړی نو د دے یوے فقرے نه پوهیدے شی چه اسلامی حکومت په حقیقت کښے څه ته وائی.

[86] یعنی دا فیصله کول د الله په لاس کښے دی چه د زمکے انتظام په څه وخت کښے چا ته وسپاری. مغرور خلق په دے دوکه کښے پراته دی چه گنی هغوی مخپله د زمکے او د خلقو د قسمتونو فیصله کونکی دی. لیکن کوم طاقت چه د یو معمولی تخم نه طاقتور ونه جوړوی او د یوے طاقتورے ونے نه د سوزولو خشاک جوړوی، هغه ته دا قدرت حاصل دے چه د لوئ شان او د غټے دبدبے والا خلق دا سے راغورزوی چه هغوی به د دُنیا د پاره د عبرت نمونه وی، او دا سے کمزوری خلق راپورته کړی چه بیا په دُنیا کښے د هغوئ د عظمت ډنکے وهلے کیږی.

[87] یعنی د مکے کافران.

ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿۴۴﴾ فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ
اَهْلَكْنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَبِئْرٍ
مُّعَطَّلَةٍ وَّقَصْرٍ مَّشِيْدٍ ﴿۴۵﴾ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَتَكُوْنَ
لَهُمْ قُلُوْبٌ يَّعْقِلُوْنَ بِهَآ اَوْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ۚ فَاِنَّهَا لَا
تَعْمَى الْاَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِيْ فِي الصُّدُوْرِ ﴿۴۶﴾

بیا مې را اُونیول ۸۸ اُوس اُوګوره چه زما عذاب څنګه وو. ۸۹ څومره ډیر کلی دی چه هغه مونږه تباه کړی دی او دا هغه په خپلو چتونو باندې پرمخې پراته دی، څومره ډیر کوهیان ۹۰ شاړ شوی دی او څومره ډیرې ماڼۍ ورانې شوی دی. آیا دا خلق په زمکه کښې ګرځیدلی نه دی چه زړونه ئې پوهه والا جوړ شوی وے او غوږونه ئې اوریدو والا جوړ شوی وے؟ حقیقت دا دے چه سترګے ړندے نه وی لیکن هغه زړونه ړانده وی کوم چه په سینو کښې دی ۹۱

۸۸ یعنی په هغوی کښې یو قوم هم داسې نه وُو چه هغوی نبی ته دروغژن اُوئیلے او هغوی فوراً را اُونیولے شو، بلکه هر قوم له د سوچ فکر کولو د پاره کافی وخت ورکړے شوے وُو، او ډیر وخت ورته انصاف ورسره شوے وُو، او د پوره انصاف کولو نه پس بیا هغوی را اُونیولے شو. دغه شان د مکې کافران دې دا نه ګنړی چه په هغوی دا عذاب نه راځی نو ګنی د دے وجه دا ده چه د پیغمبر خبری تش د خُلے دباؤ دے. په حقیقت کښې دا د غور فکر کولو هغه مُهلت دے چه الله تعالیٰ د خپلے قاعدے مطابق دوی له ورکړے دے، که د دے مهلت نه دوی فائده وانخستله نو د دوی انجام به هم هغوی کوم چه مخکینو خلقو وُو.

۸۹ په اصل کښې لفظ نکیر استعمال شوے دے چه پوره مطلب ئې په عذاب یا په بل لفظ سره نه ادا کیږی. د دے لفظ دوه معنې دی. یوه دا چه سړے کچا په غلط کار باندې د ناخوښئ اظهار اُوکړی. دویمه دا چه سړے هغه له داسې سزا ورکړی چه حالت ورله بدل کړی. د هغهٔ شکل وران کړی. چه څوک ئې اُووینی نو چه دے نه پیژنی چه دا هغه سړے دے. د دے دواړو مطلبونو په لحاظ سره د دے فقرے مطلب دا دے چه "اُوس ګوره چه د دوی په بدعملئ باندې کله ماله غصه راغله نو بیا ما د هغوی حالت څنګه بدل کړو."

۹۰ په عربو کښې کوهے او کلے تقریباً په یوه معنیٰ سره استعمالیږی، چه د یوه قبیلے د کلی نوم اخلی نو وائی چه "ماء بنی فلان" یعنی د فلانی قبیلے کوهے. د یو عربی په مخکښې چه دا اُوویلے شی چه کوهیان شاړ پراته دی نو هغوی ته دا مطلب اخلی چه کلی وران پراته دی.

۹۱ خیال لرئ چه قرآن د سائینس په ژبه کښې خبرې نه کوی بلکه د ادب په ژبه کښې خبرې کوی. دلته خوا مخواه په دے خبره پریشانه نه ده پکار چه د سینے والا زړهٔ لا کله سوچ کوی. په ادبی ژبه کښې احساسات، جذبات، خیالات، بلکه تقریباً د دماغ ټول کار د سینے او زړهٔ ته منسوب کیږی. ان تر دے پورے چه د یو څیز د "یاد پاتې کیدو" په حقله هم

وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ وَعْدَهُ ۚ وَإِنَّ يَوْمًا عِنْدَ
رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ ﴿٤٧﴾ وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ
ظَالِمَةٌ ثُمَّ أَخَذْتُهَا وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿٤٨﴾ قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا أَنَا ع ۱۲
لَكُمْ نَذِيرٌ مُبِينٌ ﴿٤٩﴾ فَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ

دا خلق دَ عذاب دَ پاره تلوار کوی۔[۹۲] الله به هیڅ کله دَ خپل وعدے خلاف نهٔ کوی، لیکن ستا دَ رب په نزد یوه ورځ ستاسو دَ شمارے مطابق دَ زرو کالو برابر دی۔[۹۳] څومره ویر کلی دی چه هغه ظالمان وُو، ما اول هغوی له مهلت ورکړو، بیا مې را اُونیول۔ او ټول خو به واپس ما ته هم خواله راځی۔
اے محمدؐ! اُووایه چه "اے خلقو، زهٔ خو ستاسو دَ پاره صرف هغه سړے یم چه مصرا وخت دَ راتلونکی صفا صفا خبردار ونکے وی۔[۹۴] بیا چه څوک ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی نو هغوی دَ پاره بخښنه دَ

مونږه ده نه وایو چه "هغه خو زما په سینه کښے محفوظ دے"

۹۲۔ یعنی بار بار دا وائی چه که ته رښتینے نبی یې نو په مونږه باندے هغه عذاب ولے نهٔ راځی کوم چه رښتینی نبیٔ د رمغړن کولو په وجه راتلل پکار دی، او چه دَ هغهٔ دَ مکیانو هم تا دیر ځله مونږ ته ډرا کړې دی۔

۹۳۔ یعنی په انسانی تاریخ کښے دَ خدائے فیصلے ستاسو دَ ګړو او دَ جنتریانو مطابق نهٔ کیږی چه ته چا نیکی یا بدی اُوکړه او سباله دَ هغے بنه یا بد اثر ښکاره شو۔ یو قوم ته که چرے دا اُووئیلے شی چه ستاسو فلانی عمل انجام به تباهی وی او هغوی ورته په جواب کښے دا اُووائی چه نو مونږ ده دے عمل خو لس یا شل یا پنځوس کاله شوی دی، دَ اُوسه پورے خو په مونږ هیڅ اُونهٔ شو، نو هغوی به ډیر حقت به وقوفان وی۔ دَ تاریخی نتیجو دَ پاره ورځے او میاشتے او کلونه خو لا پریږده چه په سوګونو کلونه هم څه ډیر غټ څیز نهٔ دے۔

۹۴۔ یعنی زهٔ هغه نهٔ یم چه ستاسو دَ قسمتونو فیصلے کوم، بلکه زهٔ صرف خبردار ونکے یم۔ زما کار بس صرف دا دے چه دَ عذاب راتلو نه مخکښے تاسو خبردار کړم۔ ور اندې فیصله کول دَ الله کار دے۔ هغه به فیصله کوی چه چا له څومره مهلت ورکول پکار دی او په چا باندې کله او څنګه عذاب راوستل پکار دی۔

وَّ رِزْقٌ كَرِيْمٌ ۝٥٠ وَالَّذِيْنَ سَعَوْا فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ
الْجَحِيْمِ ۝٥١ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ اِلَّآ اِذَا
تَمَنّٰٓى اَلْقَى الشَّيْطٰنُ فِيْٓ اُمْنِيَّتِهٖ ۚ فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِي
الشَّيْطٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝٥٢

او دَعزّت روزي ده[95]. او څوک چه زمونږ د آيتونو د بنكته كولو كوشش كوي هغوئ د دوزخ ياران دي.
او اے محمد، ستا نه وړاندې مونږ نه يو رسول داسے ليږلے دے[96] او نه يو نبي[97] (چه د هغه سره دا معامله نه وي شوي چه) كله هغه تمنا اوكړه[98]، نو شيطان د هغه په تمنا كښې خلل واچوو[99]. د غه شان شيطان چه كوم خلل اچوي الله هغه ختموي او خپل آيتونه مضبوطوي[100]، الله عليم او حكيم دے[101]. (هغه دا ځكه ورله اجازت ورکړی ...)

[95] د "مغفرت" نه مراد دا دے چه خطا گانے او كمزورياني معاف كول. او د "رزق كريم" دوه مطلبونه دي. يو دا چه ښه رزق وركړے شي. دويم دا چه په عزت سره كينولے شي او روزي وركړے شي.

[96] د رسول او د نبي په مينځ كښې څه فرق دے، د دے تشريح د سورة مريم په حاشيه ۳۰ كښې شوي ده.

[97] لفظ تمنّٰى په عربي ژبه كښې د دوو معنو د پاره استعماليږي. يوه معنیٰ ده د څه شي خواهش او آرزو كول. دويمه معنیٰ ده تلاوت، يعني څه شي لوستل.

[98] كه د لفظ تمنّا اوله معنیٰ اوكړے شي نو مطلب به ئے دا وي چه شيطان د هغه په آرزو كښې خلل د اچولو او بندېزئه پكښے راوستو. كه دويمه معنیٰ ئے اوكړے شي نو مطلب به ئے دا وي چه هر كله هغه د الله كلام خلقو ته اورووو نو شيطان د هغه كلام په باره كښې قسما قسم شبهے او اعتراضونه پيدا كړل، عجيبه عجيبه معنے ئے ورله جوړے كړے، او د هر غلط غلط مطلبونه ئے ورته اوښودل.

[99] د اولے معنیٰ په لحاظ سره د دے مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د شيطان د خلل اچونو با وجود د نبي تمنا پوره كوي (او د نبي تمنا د دے نه سوا بل څه كيدے شي چه د هغه كوشش دِ قائيده مند شي او د هغه كار دِ مخ طرفته لاړ شي)، او خپل آيتونه (يعني هغه وعدے كوم چه هغه نبي سره كړي وي) مضبوط ثابتوي. د دويمے معنیٰ په لحاظ سره ئے مطلب دا دے چه د شيطان غلطے شبهے او اعتراضونه الله ختموي او يو آيت په باره كښې چه شيطان كوم گنگونه د خلقو په ذهنونو كښې اچوي هغه روستو په دير واضح آيت سره صفا كوي.

[100] يعني هغه ته علم دے چه شيطان په كوم ځائے كښې خلل اچولے دے او د هغه څه اثرات شوي دي. او هغه په خپل حكمت سره هر شيطاني فتنه ختموي.

لِّيَجۡعَلَ مَا يُلۡقِى الشَّيۡطٰنُ فِتۡنَةً لِّلَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ وَّ الۡقَاسِيَةِ قُلُوۡبُهُمۡ‌ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِيۡنَ لَفِىۡ شِقَاقٍۢ بَعِيۡدٍ ۝۵۳ وَّلِيَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ اَنَّهُ الۡحَـقُّ مِنۡ رَّبِّكَ فَيُؤۡمِنُوۡا بِهٖ فَتُخۡبِتَ لَهٗ قُلُوۡبُهُمۡ‌ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ۝۵۴

چه شيطان کومه خرابي اَچولی وی پهٔ هغې نهٔ دَ هغه خلقو دَپاره فتنه جوړه کړي دَ کومو خلقو په زړونو کښې چه (دَ منافقت) مرض دے او زړونه ئې عيبناک دی ــــ حقيقت دا دے چه دا ظالمان خلق په ضد کښې ډېر لرې تلی دی ــــــ او چه دَ پوهې خاوندان اوپيژنی چه دا حق دے ستا دَ رب دَ طرفه او په هغې ايمان راوړی او زړونه ئې هغه ته ټيټ شي، يقيناً چه الله تعالیٰ مؤمنانو ته هميشه نيغه لار ښائی[۱۰۱]۔

[۱۰۱] يعنی دَ شيطان دَدے فتنو په ذريعه الله تعالیٰ دَ خلقو آزميښت کوی او کره او کوټه بيل بيل نه جُدا کوی۔ دَ کومو خلقو ذهنونه چه خراب وی هغوئ دَدے شيزونو نه غلطې نتيجې اخلی او دا دَ هغوئ دَپاره دَ ګمراهئ ذريعه جوړيږی۔ او دَ کومو خلقو ذهنونه چه صفا وی نو دَ هغوی يقين دَدے خبرو په ذريعه په نبی او په کتاب الله باندې نور هم کلکيږی او په دے پوهه شي چه دا ټول دَ شيطان شرارتونه دی او په دې سره دَ هغوی زړونو له اطمينان راشی چه بے شکه دا دعوت دَ خير او دَ راستئ دعوت دے، کنې نو شيطان به پرې دومره نهٔ سوزيدو۔

کومه خبره چه راروانه ده چه هغه دَ سرې په نظر کښې وی نو بيا دَدے آيتونو په مطلب صفا پوهيږی۔ په هغه وخت کښې چه دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَعوت په کومه مرحله کښې وُو هغې ته چه په سرې او کتل نو په ظاهره به دو که کيدو چه نبیٔ کې په خپل مقصد کښې ناکام شوے دے۔ کتونکی خو به بس دا ليدل، چه يو سړے وُو او دَ هغه دا تمنا او آرزو وه چه دَ هغه قوم دې په هغه ايمان راوړی، ليکن هغه اُوس دَ ديارلس کالو دَ کوشش کولو نه روستو دَ خپلو لږ و ډيرو کارانو سره په وطن پرېښودلو مجبور شوے دے۔ په دې حالت کښې چه به کله خلقو دَ هغهٔ دے خبرو ته کتل چه زهٔ دَ الله نبی يم او دَ الله امداد زما سره دے، او چه دَ قرآن دے اعلاناتو ته به ئې کتل چه کوم قوم نبی دروغژن اوګڼړی نو په هغوی باندې عذاب راځی، نو دَ هغوی به دَ نبیٔ او دَ قرآن په صداقت باندې شک راغے، او مخالفينو به دا خبری کولے چه دَ خدائے هغه امداد کوم ځائے لاړو، او دَ کوم عذاب نه ئې چه موږ ته ويرولو هغه وَس وَله نهٔ راځی۔ دَدے خبرو جواب په مخکينی آيتونو کښې ورکړے شوے وُو او دا آيتونه هم دَدے په جواب کښې دی۔ په مخکينو آيتونو کښې جواب کافرانو ته وُو او په دے آيتونو کښې جواب هغه خلقو ته دے څوک چه دَ کافرانو دَ پروپيګنډے نه متأثره کيدل۔ دَ ټول جواب خلاصه دا ده چه؛

"یو قوم چه خپل پیغمبر دروغژن کنړی نو دا په انسانی تاریخ کښې څه نوی واقعه نه ده، هکښې هم ډیرې واقعات راغلی دی . بیا د دغه دروغو کنړلو چه کوم انجام شو هغه هم ستاسو د وړاندې دے، د تباه شوو قومونو آثارِ قدیمه موجود دی، که د هغې نه سبق اخستل غواړئ نو بښه سبق تر اخستلے شئ . پاتے شوه دا خبره چه د دروغو کنړلو سره هغه عذاب ولے را نغی کوم چه د قرآن په اکثرو آیتونو کښې ذکر شوے وُو، نو آخر دا خبره کله شوی ده چه د هر دروغو نه روستو به فوراً عذاب راځی . او نبی کله داویلی وُو چه عذاب را وستل د هغه خپل کار دے . د عذاب فیصله خو د الله په لاس کښې ده او هغه تلوار کوونکے نه دے . هکښې هم هغه د عذاب راوستلو نه مخکښې قومونو له مهلت ورکړے دے او وس هم ورکوی . د مهلت دا زمانه که په سوو نو کالو اوږده هم شی خو دا د دے خبری دلیل نه دے چه د پیغمبر په دروغ گنړونکو خلقو باندې کښې د عذاب د راتللو وعدے هسے تش د خلے دباو وُو .

بیا دا هم څه نوی خبره نه ده چه د پیغمبر په تمنا او په آرزو پوره کید وکښې څه بندیز راشی یا د هغه د دعوت خلاف د دروغو الزامونه اولیږی . دا هر څه د ټولو پیغمبرانو سره شوی خو الله تعالٰی دا شیطانی فتنې ختموی . او د حق دعوت د دے ټولو بندیزونو باوجود خوریږی ، او د محکم آیتونو په ذریعه شک شُبهے لرے کیږی . شیطان او د هغه مُریدان په دے تدبیرونو سره د الله آیتونه مغلوبه کول غواړی ، خو الله تعالٰی هم دا تدبیرونه د کره او کوټے انسانانو معلومولو ذریعه جوړوی . په دے ذریعے سره که انسان د حق دعوت ته راځی او کوټه خلق ځان له جُدا شی .

دا د هغه سیده او صفا مطلب کوم چه د وړاندې روستو عبارت په رڼا کښې د دے آیتونه حاصلیږی . خو افسوس دے چه یو روایت د دے آیتونو په تفسیر کښې دومره کړ بړ راپیدا کړل چه نه صرف د دے معنی بدله شوه بلکه د ټول دین بُنیاد په خطره کښې پریوتو . دلته د مے ذکر مونږه ځکه کوُو چه د قرآن شاگردکله د روایتونو نه امداد اخلی نو چه د صحیح او د غلطو روایتونو په فرق پوه شی او چه دا ورته معلومه شی چه په روایت پرستئ کښې نا مناسبه زیاتے څه نتیجه پیدا کوی ، او چه کوم روایتونه د قرآن غلط تفسیر کوی نو په هغې باندې د تنقید کولو صحیح طریقه څه ده .

قیصه دا بیا نیږی چه د نبی صلی الله علیه وسلم په زړه کښې دا تمنا پیدا شوه چه ارمان ئې په قرآن کښې یو سورة دا سے نازل شی چه د هغې په وجه د اسلام خلاف د کافرانو نفرت لرے شی او شملې رانږدې شی . یا کم از کم د کافرانو د دین خلاف دې دومره سخت تنقید نه وی چه هغوی له پرغصه ورځی . دا تمنا لا د نبی په زړه کښې وه چه یوه ورځ د قریشو په یو لوئ مجلس کښې هغه ناست وُو او سورة نجم پرې نازل شو . کله چه نبی سورة لوستل شروع کړل او "اَفَرَاَیۡتُمُ اللّٰتَ وَالۡعُزّٰی ۝ وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الۡاُخۡرٰی" ته ورسید نو ناساپه ئې دا الفاظ په ژبه راغلل "تلك الغرانقة العلی ۝ وان شفاعتهن لترتجی (دا د لوړے مرتبے بزرگے ښځې دی ، د دوی د سفارش اُمید ضرور کیدے شی) " د دے نه روستو ئې د سورة نجم آیتونه لوستل ، او تر دے پورے چه کله سورة ختم شو نو هغه سجده اوکړه او ورسره مشرکان ا

مسلمانان ټول په سجده پریوتل. د قریشو کافرو ووے چه اوس زمونږ ه د محمدؐ سره څه اختلاف دے. مونږه خو دا وئیل چه خالق او رازق یو الله دے. البته زمونږ دا معبودان د هغه په دربار کښې زمونږه سفارشيان دی. ماښام جبریل راغے او ورته ئے اُووے چه دا تا څه اُوکړل؟ دا دوه فقرے خو ما نه وے را وړے. نبیؐ ډیر سخت په غم کښې پریوتو او الله تعالیٰ هغه آیت نازل کړو کوم چه د سورۃ بنی اسرائیل په اتم رکوع کښې دے چه "وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهُ ..... ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا". دے څیز نبی صلی الله علیه وسلم په غم کښې اخته کړے وُو اَن تردے پورے چه د سورۃ حج دا آیت نازل شو او په دے کښې نبیؐ له تسلی ورکړے شوه چه ستانه وړاندې هم د پیغمبرانو سره دا سے شوی دی. هلته دا واقعه د حبشے مهاجرینو ته په دا سے رنګ ورو رسیده چه د قرآن په اورید و سره د نبیؐ سره قریشو هم سجده اُوکړه او د هغوی په منځ کښې هم صلح شوې ده. نو په دے سره د ډیر مهاجرین مکے ته واپس راغلل. خو چه دلته راورسیدل نو ورته معلومه شوه چه د صلحے خبر غلط وُو. د اسلام او د کفر دشمنی په خپل ځائے قایمه ده.

دا قیصه ابن جریر او ډیرو مفسرینو په خپلو تفسیرونو کښې نقل کړې ده. ابن سعد په طبقات کښې، الواحدی په اسباب النزول کښې، موسیٰ بن عقبه په مغازی کښې، ابن اسحاق په سیرت کښې، او ابن ابی حاتم، ابن المنذر، بزار، ابن مردویه او طبرانی د احادیثو په مجموعو کښې نقل کړې ده. په کومو سندونو سره چه دا قیصه رانقل کړے شوې ده هغه په محمد بن قیس، محمد بن کعب قرظیؒ، عروه بن زبیر، ابوصالح، ابوالعالیه، سعد بن جبیر، ضحاک، ابوبکر بن عبد الرحمٰن بن حارث، قتاده، سُدّی، ابن شهاب زهری او په ابن عباس باندې ختمیږی. (د ابن عباس نه علاوه په دے کښې یو هم صحابی نشته). د قیصے په تفصیلاتو کښې د ورو ورو اختلافاتو نه علاوه دوه غټ غټ اختلافات دی. یو دا چه د بتانو په تعریف کښې کوم کلمے نبیؐ صلی الله علیه وسلم ته منسوب کړے شوې دی هغه تقریباً په هر روایت کښې د بل روایت نه مختلفې دی. مونږه د خپله وسه پورے کوشش اُوکړو چې مختلف عبارتونه مو په جدا جدا الفاظو کښې بیا موندل. دویم غټ اختلاف دا دے چه په یو روایت کښې دی چه دا الفاظ د وحی په دوران کښې شیطان د نبیؐ په زړه کښې ورواچول او هغه وئیل چه ګنی دا هم جبریل راوړی دی. په یو روایت کښې دی چه دا الفاظ د هغه د تمنا مطابق په هیره د هغه د ژبے نه اُووتل. په یو روایت کښې دی چه په هغه وخت کښې په نبیؐ پرکالی راغلی وه او په دغه حالت کښې دا الفاظ د هغه د خُلے نه اُووتل. څوک وائی چه نبیؐ دا الفاظ په قصد وئیلی وُو خو د استفهام انکاری په طور ئے وئیلی وُو. څوک وائی چه شیطان د نبیؐ د آواز سره خپل آواز شامل کړو او دا الفاظ ئے اُووئیل او د خلقو دا خیال راغے چه دا نبیؐ وئیلی دی. او څوک وائی چه د دے الفاظو وئیونکے د مشرکانو نه څوک سړے وُو. ابن کثیر، بیهقی، قاضی عیاض، ابن خزیمه، قاضی ابوبکر ابن العربی، امام رازی، قرطبی، بدر الدین عینی، شوکانی او آلوسی وغیره وائی چه دا قیصه بالکل غلط ده. ابن کثیر وائی چه دا روایت چه په څومره سندونو سره نقل شوے دے هغه ټول مرسل او منقطع دی، دا روایت ما ته د صحیح متصل سند نه ملاو نه شو. بیهقی وائی چه "د نقل په لحاظ سره دا قیصه ثابته نه ده". د ابن خزیمه نه د دے په حقله تپوس

اُوشوا وهغه اُوویل چه "دا د زندیقانو جوړه کړے شوی قیصه ده"۔ قاضی عیاض وائي چه "د دے کمزوری د دے نه معلومه ده چه د صحاح سته په مؤلفینو کښے یو هم دا روایت نه دے نقل کړے او نه دا د صحیح متصل او بے عیبه سند سره د ثقه راویانو نه نقل شوے دے"۔ امام رازی، قاضی ابوبکر او آلوسی په دے تفصیلی بحث کړے دے او دیر په کلکه ئے رد کړے دے۔ لیکن بل طرفته حافظ ابن حجر چه لوئ محدث دے او ابوبکر جصاص چه مشهور فقیه دے، او زمخشرئ چه عقلیت پسند مفسر دے او ابن جریر چه د تفسیر او د تاریخ او د فقهے امام دے، هغوی دا روایت صحیح منی او د دے آیت تفسیر ئے ګڼړی۔ د ابن حجر دلیل دا دے چه:

د سعید بن جُبَیر د سند نه علاوه باقی نور ټول سند ونه یا خو ضعیف دی یا منقطع، لیکن د سند ونو زیاتوالے په دے خبره دلیل دے چه د دے څه اصل ضرور شته۔ د دے نه علاوه دا په یوه طریقه متصلاً د صحیح سند سره هم نقل شوے دے چه هغه بزار راایستلے دے (مراد دے یوسف بن حماد عن اُمیه بن خالد عن شعبه عن ابی بشر عن سعید بن جُبیر عن ابن عباس) او په دوؤ طریقو سره دا اګرچه مُرسل دے لیکن راویان د صحیحینو د شرط مطابق دی۔ دا دواړه روایتونه طبری نقل کړی دی۔ یو په سند د یونس بن یزید عن ابن شهاب، دویم په سند د معتمر بن سلیمان او حماد بن سلمه عن داؤد عن ابی هند عن ابی العالیه۔

کوم خلق چه د دے روایت په حق کښے دی هغوی خو دا صحیح منلے دے. لیکن مخالفینو هم په دے باندے د تنقید کولو حق نه دے ادا کړے۔ یو ډلے دا روایت ځکه رد کړے دے چه د هغوی په نزد د دے سند قوی نه دے۔ یعنی که چرے د دے سند قوی وے نو دوی به دا قیصه منلی وه۔ دویمے ډلے په دے وجه رد کړے دے چه په دے سره خو ټول دین شکمن کیږی او د دین د هرے خبرے په حقله دا شک راپیدا کیږی چه معلومه نه ده چه نور به په کوم کوم ځائے کښے شیطانی یا نفسانی دخل شوے وی۔ حالانکه په دے قسم دلیل سره خو د هغه خلقو اطمینان راتلے شی څوک چه په ایمان باندے کلک قایم وی۔ لیکن د کومو خلقو چه د اول نه شک وی یا اُوس غور فکر کوی او دا فیصله کوی چه ایمان راوړی او که نه، نو د هغوی په زړونو کښے دا جذبه نه شی راپیدا کیدلے چه په کومو کومو څیزونو سره دین شکمن کیږی نو چه هغه رد کړی۔ هغوی خو به دا ئي چه هر کله د یو مشهور صحابي او د ډیرو تابعینو او د تبع تابعینو په روایت سره او د نورو ډیرو معتبرو راویانو په روایت سره یوه واقعه ثابتیږی نو هغه د صرف په دے وجه ولے رد کړے شی چه په هغے سره ستا دین شکمن کیږی؟ د دے په ځائے ستا دین ولے شکمن اُونه ګڼړے شی هر کله چه دا واقعه ئے شکمن ثابتوی؟

اُوس دے کتل پکار دی چه د تنقید هغه صحیح طریقه څه ده چه که چرے په هغے سره د دے قیصے باج واخستلے شی نو دا ناقابل قبوله ګرځی خواه که سند ئے هر څو مره قوی وی۔

اولنے څیز پخپله په دے قیصه کښے د ننه دا هغه خبری دی چه هغه دا قیصه غلطه ثابتوی۔ په قیصه کښے ویلے شوی دی چه دا د هغه وخت واقعه ده کله چه حبشے ته هجرت شوے وو او مهاجرین چه د دے واقعے نه خبر شو نو یوه ډله د حبشے نه مکے ته واپس راغله۔ اُوس د تاریخونو فرق لږ شان اُوګوره:

—— دَ معتبرو تاریخي روایتونو مطابق حبشې ته هجرت په رجب ۵ نبوي کښې شوے وُو، او دَ حبشې دَ مهاجرو یو ډلے چه دَ صلحې دا غلط خبر واوریدو نو درے میاشتې روستو (یعنې تقریباً دَ دغه کال په شوال میاشت کښې) مکے ته واپس راغلل۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دا واقعه دَ ۵ نبوي ده۔

—— دَ سورة بني اسرائیل دَ ۷۳ آیت په حقله چه وئیلے کیږي چه هغه دَ نبي صلی الله علیه وسلم په دے کار باندې دَ ملامتیا په طور نازل شوے وُو، نو هغه ټول سورة دَ معراج دَ واقعې نه روستو نازل شوے دے، او دَ معراج زمانه دَ معتبرو روایتونو مطابق ۱۱ نبوي یا ۱۲ نبوي ده۔ دَ دے دا مطلب شو چه کله په دے کار باندې پنځه شپږ کاله تیر شو نو پس دَ هغې پراِلله تعالی دَ غصے اظهار اُوکړو۔

—— او دَ سورة حج دا آیت په ۱ هجري کښې نازل شوے دے۔ یعنې دَ غصے په اظهار باندې هم چه کله نور ده دوه کاله تیر شو نو پس دَ هغې اعلان اُوشو چه دا خبره خو دَ شیطان دَ طرفنه شوې وه، او س دا الله منسوخ کړې ده۔

آیا یو عقلمند سړے دا باور کولے شي چه شیطاني کار دِ ن اُوشي، ملامتیا دِ پرِ شپږ کاله روستو اُوشي او دَ هغې دَ منسوخ کولو اعلان دِ نهه کاله روستو اُوشي؟

بیا په دے قیصه کښې وئیلے شوي دي چه دا شیطاني خبره په سورة نجم کښې شامله کړے شوې وه او هغه دا سې چه نبي دَ اصل سورة الفاظ لوستل، نا ساپه چه "مَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرٰى" ته ورسید و نو ښځیله یا شیطاني حرکت په وجه دَ ورسره دا فقره شامله کړه او وړاندې بیا دَ سورة نجم اصلي آیتونه لوستل شروع کړل تر دے پورے چه په حقله وائي چه دَ مکے کافران دَ دے په اوریدو ډیر خوشحاله شوا و دے وئیل چه اُوس زمونږ او دَ محمد په مینځ کښې اختلاف ختم شو۔ لیکن دَ سورة نجم په روان عبارت کښې دا فقره شامله کړئ او بیا اُوګورئ:

"بیا تاسو څه لږ ډیر غور هم اُوکړو په دے لات او په عُزّٰی باندې او په دریمے یو بل (بوڅکے) مناة باندې؟ دا دَ اُوچتے مرتبے مقدس دیوتې دي، دَ دوي دَ سفارش اُمید ضرور کیدے شي۔ آیا ستاسو د پاره خو دوي ځامن او دَ دهٔ (یعنې الله) دَ پاره دِ وي لونړه؟ دا خو ډیره بے انصافۍ تقسیم دے۔ په اصل کښې دا هیڅ نه دي خو بس یو څو نومونه دي چه تاسو او ستاسو پلار نیکونو ایښو دلي دي۔ الله دَ دوي دَ پاره څه سند نازل نهٔ کړو۔ خلق محض دَ ګمان او دَ خپلو خیالاتو پیروي کوي، حالانکه دَ هغوي دَ رب دَ طرفنه صحیح رهنمائي راغلې ده۔"

اُوګورئ، په دے عبارت کښې چه دَ کږه فقرے دَ پاسه کرښه ده، هغه فقره څنګه تضاد پیدا کړے دے۔ په یو ساعت کښې وائي چه واقعي ستاسو دا مقدسے ښځې لوړه مرتبه لري دَ دوي دَ سفارش اُمید ضرور کیدے شي۔ بیا سمدستي هغوي له زورنه ورکوي چه بے وقوفو، دا تاسو دَ خدائے دَ پاره لونړه څنګه مقرر کړي دي؟ ډیر بدهٔ تقسیم دے چه ستاسو خو دِ ځامن وي او دَ خدائے دِ لونړه وي۔ دا تول هرڅه تاسو دَ ځانه جوړ کړي دي دَ خدائے دَ طرفنه دَ هیڅ سند نشته۔ دَ لږ ساعت دَ پاره دا خبره په [redacted] آکړه و دے خبرې دَ یو عقلمند سړي دَ خولې کیدے شي [redacted]۔ زه دا مو اُومنله چه شیطان غلبه اُوکړه او دا الفاظ دَ نبي دَ خُلے نه اُوویستل۔ خو دَ تر [redacted] دا آیتونه اوریدل نو آیا هغوي ټول پاګلان وُو چه دَ ستائینې دَ دے خبرې نه روستو ورپسے دَ ژورنې خبرې واوریدے او بیا ئې هم دا خیال وُو چه دا قتي دَ هغوي

دَ بزرګو دیو یا نو ستاینه شوې ده؟ سورة نجم دَ آخره پورې ټول دَمه یو نه نقره خلاف ده۔ دا باور څنګه کیدَ شي چه قریشو به دا سورة دَ آخره پورې اوریدلے وي او بیا به ئې چغه کړې وي چه مونږ او دَ محمد (ﷺ) اختلاف ختم شو داغوندے دے۔ قیصے دننه خپل شهادت چه داګواهي کوي چه دا قیصه سرا سر غلطه ده۔ دَ دے نه روستو دویم دِ خیز ته کتل پکار دي چه په دے قیصه کښې دَ دې دیو آیتونو کوم شان نزول بیانیږي آیا چه هغه دَ قرآن دَ ترتیب سره سمون هم خوري او که نه؟ په قیصه کښې داو ئیلے کیږي چه دا شیطاني خبره ورسره په سورة نجم کښې شامله شوې وه، چه هغه دَ نبوت په پنځم کال نازل شوے وُو۔ دَ سورة بني اسرائیل په یو آیت کښې په دے خبرو ملامتیا اُوکړے شوه، او بیا دَ سورة حج په دے آیت کښې هغه منسوخ کړے شوه۔ اُوس به په دوو صورتونو کښې یو صورت ضرور وي۔ یا خو به دَ ملامتیا او دَ تنسیخ والا آیتونه هم په هغه زمانه کښې نازل شوي وي په کومه زمانه کښې چه دَ آمیزش واقعه شوې وه، او یا به بیا دَ ملامتیا والا آیت دَ سورة بني اسرائیل سره او دَ تنسیخ والا آیت دَ سورة حج سره نازل شوے وي۔ که اولے صورت وي نو دا څومره عجیبه خبره ده چه دا دواړه آیتونه په سورة نجم کښې شامل نه کړے شو بلکه دَ ملامتیا والا آیت ئې دَ شپږو کالو پورې هم هغسے اُوساتو او کله چه سورة بني اسرائیل نازل شو نو بیا ئې په هغې کښې چرته کیښودو۔ بیا دَ تنسیخ والا آیت نور هم دَ دوه دوه نیم کاله پورې هسے پروت وُو او دَ سورة حج دَ نازلیدو پورې هیچرته لګولے شوے نه وُو۔ آیا دَ قرآن ترتیب په دے طریقه شوے دے چه په یوه موقعه کښې نازل شوي آیتونه به جُدا جُدا پراته وُو او ډیر کلونه روستو به یو آیت په یو سورة کښې او بل آیت په بل سورة کښې لګولے کیدو؟ لیکن که چرے دویم صورت وي چه دَ ملامتیا والا آیت دَ واقعے نه شپږ کاله روستو او دَ تنسیخ والا آیت اته نهه کاله روستو نازل شو، نو که څنګه چه موږه هغکښې ذکر کړے دے چه بیا خو دا هسے کوم بے ځایه خبره دی، او دَ دے نه علاوه دا خبره په ذهن کښې راپیدا کیږي چه په سورة بني اسرائیل کښې او په سورة حج کښې دَ دے دَ نازلیدو موقع څه ده۔

دَ دے نه آخوا دَ صحیح تنقید دریمه قاعده زمونږ په تړا ده چه دَ یو آیت کوم تفسیر بیانیږي هغې ته دِ اُوکتلے شي چه آیا دَ قرآن وړاندې روستو عبارت هم هغه قبلوي او که نه۔ دَ سورة بني اسرائیل اتم رکوع اُولولئ او اُوګورئ او دَ دے نه په هغکښې روستو عبارت باندې هم نظر واچوئ۔ په دے روان عبارت کښې آخر دے خبرې څه موقع ده چه شپږ کاله هغکښې یوه واقعه شوې ده او په هغې دِ نبي له زور نه ورکړے شي (دا لاړ پریږده چه په آیت اِنْ کَادُوْا لَيَفْتِنُوْنَكَ کښې نبي له زور نه ورکړے شوی هم ده او که نه ده، او دَ آیت الفاظ" دَ کافرانو په فتنه کښې دَ نبي دَ اخته کیدو" تردید کوي او که تصدیق)۔ دغه شان سورة حج هم ستاسو په وړاندې موجود دے۔ دَ آیت له وړاندې عبارت هم اُولولئ او روستو هم۔ آیا څه مناسب وجه ستاسو په خیال کښې راځي چه په ګردان عبارت کښې دا خبره څنګه راغله چه" اے نبي، نهه کاله هغکښې چه په قرآن کښې دَ زیاتے خبرې دَ شاملولو کوم حرکت شوے وُو، دَ هغې په حقله په زړه کښې یره مه راوله، هغکښې پیغمبرانو هم شیطانانو دغسے دوکه کړي دي، او هرکله چه دَ پیغمبرانو نه داسے کار اُوشي نو الله هغه منسوخ کوي او خپل آیاتونه بیا مضبوطوي"؟

مونږ دَ دے نه هغکښې هم ډیر غټ دلیلې دي، او دلته بیا وایو چه که دَ یو روایت سند هر څومره صحیح دي خو چه متن ئې غلط وي، او دَ قرآن دَ الفاظو سره، دَ وړاندې روستو عبارت سره او دَ ترتیب سره سمون نه

خوري، نو هيڅکله قبليدے نۀ شي. په دے دليلونو سره خو به يو ټکښن او تحقيق کونکے سړے هم مطمئن شي چه دا قيصه بالکل غلطه ده. پاتے شو مومن سړے نو هغه خو هيڅکله دا نۀ شي منلے ځکه چه هغه ښکاره ويني چه دا روايت د قرآن د يو آيت نه نۀ بلکه ډيرو آيتونو نه مخالف دے. د يو مسلمان د پاره دا منل ډير آسان دي چه ځينې د دے روايت راويان شيطان دوکه کړي دي، په نسبت د دے خبرے چه هغه دا اُومني چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل خواهش سره په قرآن کښے څه لفظ شاملولے شو، يا د نبي په زړه کښے دا لا غلي وُو چه د کافرو د راضي کولو د پاره د د توحيد سره شرک هم شامل کړے شي، يا د نبي دا آرزو وه چه چرے نه الله تعالیٰ څه دا سے خبرو اُو کړي چه کافران پرے ناراضه نۀ شي، يا وحي دومره غير محفوظ وه چه د جبريل سره شيطان هم خپل الفاظ شاملولے شو او نبي پرے نۀ پوهيدو چه دا الفاظ د جبريل دي او که د شيطان. په دے کښے هره يوه خبره د قرآن د واضحه واضحه خبرو نه خلاف ده او د هغے عقيدے نه خلاف ده کوم چه مونږ د قرآن او د محمد صلی الله علیه وسلم په باره کښے لرو. په خدائے پورے پناه غوارم د هغه روايت پرستئ نه چه صرف د سند د اتصال په وجه يا د راويانو د ثقه والي په وجه يا د روايتونو د ډيروالي په وجه يو مسلمان دے ته اماده کوي چه هغه د خدائے د کتاب او د هغه د رسول په باره کښے دا سے سختے خبرے اُومني.

دا مناسب معلوميږي چه د لته هغه شکم لرے کړے شي کوم چه د دے قيصے د ډيرو راويانو په وجه د خلقو په زړونو کښے راپيدا کيږي. يو سړے دا ويلے شي چه که چرے د دے قيصے هيڅ اصليت نۀ وُو او دا بالکل دروغ وے نو په نبي او په قرآن باندے دا دومره لوئ بهتان د دومره ډيرو راويانو په ذريعه، چه ځنې پکښے ثقه بزرګان هم دي، آخر څنګه خور شو؟ د دے جواب دا دے چه د کوم اسباب په وجه دا قيصه دومره خوره شوه د هغے پته مونږ ته ځينے د حديثو د ذخيرے نه ملاويږي. په بخاري او مسلم، ابوداؤد او نسائي او په مسند احمد کښے اصل واقعه دا غلي ده چه نبي صلی الله علیه وسلم د سورة نجم تلاوت اُو کړو، کله چه سورة ختم شو نو نبي سجده اُو کړه او ټوله خلق چه هلته حاضر وُو، که هغه مسلمانان وُو او که مشرکان وُو، هغوی هم ټول په سجده پريوتل. قيصه بس هم دومره وه. او دا څه حيرانتيا خبره نۀ وه. اول خو د قرآن د کلام زور او دا نداز بيان دومره اثرناک دے، او بيا د نبي صلی الله علیه وسلم د ځُلے مبارکے نه د هغے په الهامي شان سره اداکيدل دومره اثرلري، چه که چرے د مجلس په ټولو خلقو باندے وجداني حالت راغلے وي او هغوی په هغے په سجده پريوتلي وي نو دا څه ناممکنه خبره نۀ ده. دا خو هغه څيز وُو چه د دے په حقله به قريشو ويل چه دا خو جادوګر دے. البته دا سے معلوميږي چه روستو به د قريشو خلق په دے خپل کار باندے پښيمانه شوي وي او چا به پکښے د دے خپل کار (يعني سجدے کولو) د پاره دا وجه بيان کړي وي چه کوم ز ردوره، مونږ خو د محمد د خُلے نه د خپلو معبودانو په حق کښے د خير څه کلمے اوريدے ځکه مونږ د هغه سره په يو ځائے سجده اُو کړه. بل طرف ته دا قيصه د حبشے مهاجرينو ته په دے شکل اُو رسيدے چه د نبي او د قريشو په منځ کښے صلح شوي ده ځکه چه مشرکان او مومنان د نبي سره په يو ځائے په سجده ليدلے شوي وُو دا خبره دومره خوره شوه چه د مهاجرينو نه تقريباً دري ديرش کسانو مکے ته واپس راغلل. په يوه صدي کښے دننه دننه دے درے واړه خبرو يعني د قريشو سجده، د دے سجدے وجه بيانول او د حبشے د مهاجرينو واپسي د يوے قيصے شکل اختيار کړو او ځنې اعتباريان (ثقه) خلق هم د دے په روايت کښے مبتلا شو. انسان آخر

وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً
اَوْ يَاْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيْمٍ ﴿۵۵﴾ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ ؕ يَحْكُمُ
بَيْنَهُمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۵۶﴾
وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۵۷﴾
وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ قُتِلُوْٓا اَوْ مَاتُوْا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ

انکارکونکی خو به دَدَه (دین) په حقله همیشه په شک کښې پراته وی اَن تر دے پورے چه یا خو پرِیا سا په قیامت راشی، یا پرِدِ به یوه منحوسه ورځے عذاب نازل شی. په دغه ورځ به بادشاهی خاص دَ الله وی، او هغه به دَ دوئ په منځ کښې فیصله کوی. څوک چه ایمان دارا و نیک عمله وی هغوی به دَ نعمتونو نه ډک جنتونو ته ځی، او چا چه کفر کړے وی او زمونږ د آیتونو نه دروغ گنړلی وی دَ هغوی دپاره به رسواکونکے عذاب وی. او کومو خلقو چه دَ الله په لار کښې هجرت وکړو، بیا قتل کړے شو، بیا مړه شو الله به هغوی ته

انسان دے. دَ دیرنیک عقلمند سړی نه هم اکثر غلطی کیږی او دَ هغه غلطی دَ عامو خلقو دَ غلطئ نه زیاته نقصان ورکونکی ثابتیږی. دَ کومو خلقو چه دَ بزرگانو سره زیات عقیدت وی نو هغوئ دَ خپلو بزرگانو دَ صحیح خبرو دَ هغوی غلطے خبرے هم په پټو سترگو منی. او بیا اخلاقه خلق دَ هغوی یو یوه غلطی راجمع کوی او دَ یے خبرے دپاره ئے بیل جوړوی چه دَ دوی په ذریعه موږ ته ثه رارسیدلی دی هغه تول په ور دَ سوزولو لائق دی.

۱۰۲ په اصل کښې لفظ "عَقِيْم" استعمال شوے دے چه لفظی ترجمه ئے ده "شنډ". ورځے ته دَ شنډ سے ویلو دوه معنے کیدے شی. یوه دا چه هغه داسے منحوسه ورځ وی چه هیڅ یو کار پکښې سمون نه خوری، هر کار پکښې غلطیږی. او هر اُمید پکښه په نا اُمیدئ کښې بدلیږی. دوئمه دا چه هغه داسے ورځ وی چه دَ هغے نه روستو شپه لیدل نصیب نه شی. په دواړو صورتونو کښې مراد دا دے چه هغه ورځ چه په هغې کښې دَ یو قوم دَ بربادئ فیصله اُوشی. مثلاً په کومه ورځ چه دَ نوح په قوم باندې طوفان راغے نو هغه دَ هغوی دپاره "شنډه" ورځ وه. دغه شان دَ عاد، دَ ثمود، دَ لوط دَ قوم، دَ مَدین والو او دَ نورو تباه شوو قومونو په حق کښې دَ عذابِ الٰهی دَ نازلیدو ورځ شنډه ورځ وه. ځکه چه په هغه ورځ "بیه چا" صبا اُونه لیدے شو، او هیڅ یو تدبیر دَ هغوی کامیاب نه شو چه خپل بد حالت ئے پرے بنه کړے وے.

رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٥٨﴾ لَيُدْخِلَنَّهُم مُّدْخَلًا
يَرْضَوْنَهُ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴿٥٩﴾ ذَٰلِكَ ۖ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ
مَا عُوقِبَ بِهِ ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنصُرَنَّهُ اللَّهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ
غَفُورٌ ﴿٦٠﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ
النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٦١﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ

ورکوی ـ او بې شکه چه خاص هم الله د ټولو نه ښه رزق ورکونکے دے ـ هغه به هغوی داسے ځائے ته اُورسوی چه په هغې سره به هغوی خوشحاله شی ـ بے شکه الله علیم او حکیم دے[۱۰۳] دا خو دے د هغوی حال، او چا چه بدله واخستله، هم هغسے لکه څنګه چه د هغه سره شوی وو، او بیا په دهٔ باندې زیاتے هم شوے وی، نو الله به د هغه مدد ضرور ورکوی[۱۰۴] ـ الله معاف کونکے او بخښونکے دے[۱۰۵] دا ځکه چه د شپې نه ورځ او د ورځې نه شپه را ایستونکے الله دے[۱۰۶] او هغه اوریدونکے او لیدونکے دے[۱۰۷] ـ دا ځکه

[۱۰۳] "علیم" دے، یعنی هغه ته معلومه ده چه چا په حقیقت کښې د هغهٔ په لار کښې کور پریښودلے دے او هغه د کوم انعام مستحق دے ـ "حلیم" دے یعنی د داسے خلقو د رو ورو ګناهونو په وجه د هغوی لوئ لوئ خدمتونه او قربانیانے نهٔ ضایع کوی ـ هغه به د هغوی سره نرمی کوی او د هغوی ګناهونه به معاف کوی ـ

[۱۰۴] اول د هغو مظلومانو ذکر وو چه د ظلم په مقابله کښې ئے څه جوابی کاروائی نهٔ وه کړې، او دلته د هغې خلقو ذکر دے چه هغوی د ظالمانو په مقابله کښې طاقت استعمال کړې ـ
امام شافعیؒ د دے آیت نه دا دلیل پیش کوی چه قصاص هم په هغه شکل کښې اخستل پکار دی په کوم شکل کښې چه ظلم شوے وی. مثلاً که چا یو سړے په اوبو کښې ډوب کړے وی او وژلے ئے وی نو هغه به هم په اوبو کښې ډوبولے شی او وژلے به شی، او که چا څوک سوزولے وی نو هغه به هم سوزولے کیږی ـ لیکن حنفی مذهب والا د دے خبرې قائل دی چه که قاتل په هر طریقه قتل کړے وی، لیکن د هغه نه به قصاص د یو به خاصے طریقے مطابق اخستلے کیږی ـ

[۱۰۵] د دے آیت دوه مطلبونه کیدے شی او غالباً چه دواړه ئے مراد دی. یو دا چه د ظلم په مقابله کښې کوم قتل اوکړے شی نو هغه د الله په نزد معاف دے، اګر چه قتل او خون ریزی ښهٔ څیز نهٔ دے ـ دوئم دا چه هغه الله چه ته ئے بنده ئے، هغه معاف کرنکے دے، نو ته هم د خپله وَس پورے د معافئ نه کار اخله ـ د مؤمنانو ښه اخلاق هم دا دی چه هغوی صبرناک او زغم والا وی ـ هغوی ته د بدلے اخستلو حق ضرور حاصل دے لیکن هروخت د انتقام په فکر کښې وسیدل د هغوی د پاره مناسب نهٔ دی ـ

[۱۰۶] د دے پیراګراف تعلق د پاسنی ټول پیراګراف سره دے نهٔ چه یوازې د دے آخری فقرے سره ـ یعنی

اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ
الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۶۲﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَتُصْبِحُ
الْاَرْضُ مُخْضَرَّةً ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ ﴿۶۳﴾ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ

چه یوازې الله حق دے او د الله نه بغیر چه دوی چا ته آوازونه کوی ^۱۰۹^ هغوی ټول باطل دی او بې شکه چه الله بالادست او بزرګ دے. آیا ته نه ګورې چه الله د آسمان نه اوبه راورَوی او د هغې په وجه زمکه شنه کیږی؟ ^۱۱۰^ حقیقت دا دے چه هغه لطیف او خبیر دے ^۱۱۱^. د هغه دی څه چه په آسمانونو کښې دی او

په کافرانو او ظالمانو باندې عذاب نازلول، مومنانو صالحانو ته انعام ورکول، د اهلِ حق مظلومانو فریاد اوریدل، او هغه اهلِ حق چه په طاقت سره د ظالمانو مقابله کوی د هغوی امداد کول، د دے ټولو څه وجه ده؟ څکه چه د الله صفتونه دا او دا دی.

^۱۰۷^ یعنی د کائناتو په ټول نظام باندې هغه حاکم دے او ورځ او شپه راوستل د هغه په قدرت کښې دی. د دے ظاهری معنی نه علاوه په دے فقره کښې یوه باریکه اشاره دے طرف ته هم ده چه کوم خدائے د شپې د تیرې نه د ورځې رڼا راوباسی، او په رڼا ورځ باندې د شپې تیاره راولی، هغه خدائے په دے هم قادر دے چه نن د چا د اقتدار نمر روښانه دے چه هغه صباله ډوب کړی، او د کفر کومې تیرې چه نن د حق او صداقت د صبا لاربند وی چه هغه په خپل حکم سره لرې کړی او هغه ورځ راولی چه په هغې کښې ټوله دنیا د علم او د معرفت د رڼا نه روښانه شی.

^۱۰۸^ یعنی هغه لیدونکے او اوریدونکے خدائے دے، روند کونړ نه دے.

^۱۰۹^ یعنی د حقیقی اختیاراتو مالک او حقیقی پالونکے هغه دے، نو څوک چه د هغه بندګی کوی هغه به نقصان کښې نه شی پاتې کیږی او نور ټول معبودان سرا سر بے حقیقته دی، هغوی چه کوم صفتونو او د کومی اختیاراتو مالکان ګرځولے شوی دی، د هغې هډو څه حقیقت نشته، نو څوک چه د خدائے نه مخ واړوی او د دوی په بروسه ژوند تیروی هغوی هیڅکله کامیاب بیدے نه شی.

^۱۱۰^ دلته بیا د ظاهری مطلب نه شاته یوه باریکه اشاره پټه موجوده ده. ظاهری مطلب خو صرف د الله قدرت بنودل دی. لیکن په دے کښې باریکه اشاره دا ده چه لکه څنګه الله تعالیٰ باران اوروی او د باران سره تاسو وینئ چه وچه بنجر زمکه یکدم شنه شی، دغه شان چه نن د وحی د رحمت کوم باران کیږی، هغه به ډیر زر تاسو ته اوښائی چه دا د عرب بنجرا و ریګستان زمکه به د علم او د ښو اخلاقو داسے چمن شی چه هیچا به هیڅکله نه وی لیدلی.

^۱۱۱^ "لطیف" دے، یعنی په داسے طریقه خپل کارکوی چه څوک پرې نه پوهیږی. د هغه کارونه داسے وی چه په شروع کښې څوک دا خیال هم نه شی کولے چه د دے انجام به څه وی. په یکونیمچی په دنیا کښې پیداکیږی، چا ته پته ده چه په دے کښې څوک ابراهیم دے چه هغه به د دنیا د دریو حصو روحانی پیشوا وی، او څوک

مَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦٤﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ
سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ وَيُمْسِكُ
السَّمَاءَ أَن تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ
رَّحِيمٌ ﴿٦٥﴾ وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ۗ إِنَّ الْإِنسَانَ

څه چه په زمکه کښې دی. بے شکه هغه غنی دے او ستائیلے شوے دے۱۱۲ آیا ته گورے نه چه هغه ستاسو د پاره هغه هر څه مسخر کړی دی کوم چه په زمکه کښې دی او هغه کشتئ د یوے قاعدے پابند کړی ده چه د هغه په حکم په سمندر کښې چلیږی، او هغه آسمان داسے ټینګ کړے دے چه د هغه د اجازت نه بغیر په زمکه را پریوتے نه شی؟۱۱۳ حقیقت دا دے چه الله تعالیٰ د خلقو په حق کښې ډیر مهربانه او رحیم دے. دا خو هم هغه دے چه تاسو له ئے ژوند درکړے دے، هغه تاسو له مرګ درکوی او هغه بیا تاسو ژوندی کوی. ربښتیا ده چه انسان

چنګیزخان دے چه ایشیا او یورپ به تباه کوی. خوردبین چه کله جوړ شوے و د نو په هغه وخت کښې چا د خیال کولے شو چه دا به ایټم بم او هایډروجن بم ته خبره رسوی. کولمبس چه کله په سفر وتلے و د نو چا ته معلومه وه چه دا د ریاستهائے متحده امریکه بنیاد کیښودلے کیږی. غرض دا چه د خدائے منصوبے دا سے بایکے وی چه سرے پرتر هغے نه پوهیږی ترڅو چه هغه سرته رسولی نه وی، هیچا ته پته نه وی چه دا کار د څه څیز د پاره کیږی.

"خبیر" دے، یعنی هغه د خپلے دنیا د حالاتو نه او د هغے د ضرورتونو نه خبردار دے او پوهیږی چه د خپلے خدائی کار څنګه اُوکړی.

۱۱۲ هم هغه "غنی" دے، یعنی صرف د هغه ذات داسے دے چه چا ته محتاجه نه دے. او هم هغه "ستائیلے شوے" دے، یعنی حمد او ثنا د هغه د پاره دی، او هغه په خپل ذات کښې پخپله ستائیلے شوے دے خواه که څوک ئے حمد کوی او که نه کوی.

۱۱۳ دلته د آسمان نه مراد ټول عالم بالا دے چه هر څیز ئے په خپل خپل ځائے پابند ټینګ دے.

لَكَفُورٌ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا هُمْ نَاسِكُوهُ فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي
الْأَمْرِ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ ﴿٦٧﴾ وَإِن
جَادَلُوكَ فَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿٦٨﴾ اللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ
الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٦٩﴾ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي

دَحق نه پرمنکر دے[۱۱۴]

دَهر اُمت[۱۱۵] دَپاره مونږه دَعبادت یو طریقه[۱۱۶] مقرر کړی ده چه هغوی دَ هغې پیروی کوی، نو اے محمدٌ، هغوی دِ په دے معامله کښې ستا سره جګړه نه کوی.[۱۱۷] ته خپل رب ته خلق رابله یقیناً ته په نیغه لار یې[۱۱۸] او که چرے هغوی ستا سره جګړه کوی نو ورته اُووایه چه "څه تاسو کوی هغه الله ته ښه معلوم دی، الله به دَ قیامت په ورځ ستاسو په مینځ کښې دَ هغې ټولو خبرو فیصله اُوکړی په کومو کښې چه تاسو اختلاف کوئ." آیا تا ته معلومه نه ده چه دَ آسمان او دَ زمکے

[۱۱۴] یعنی دا هرڅه وینی او بیا هم دَ هغې حقیقت نه انکار کوی کوم چه پیغمبرانو پیش کړے ده.

[۱۱۵] یعنی دَ هر نبی دَ اُمت دَ پاره.

[۱۱۶] دلته دَ مَنسک معنی قربانی نه ده بلکه دلته ترې مراد دَ عبادت ټول نظام دے. دَمے نه وړاندې دَدے لفظ معنی "دَ قربانئ قاعدا" شوی وه ځکه چه هلته ورپسے هغه روښانه فقره "دَپاره دَدے چه خلق په هغه څاروُو باندې دَ الله نوم واخلی کوم چه ورله هغه ورکړی دی" دَدے صرف "قربانی" معنی خاص کوی. لیکن دلته هیڅ داسے وجه نشته چه دَدے نه صرف "قربانی" مراد واخستلے شی. بلکه "عبادت" هم که دَ "بندګئ" په فراخه معنی کښې واخستلے شی نو مدعا به دیره ترده وی. دغه شان به دَ مَنسک (دَ بندګئ طریقه) هم معنی شی کومه معنی چه دَ شریعت او دَ منهاج ده، او دا به دَ هغه خبری دوباره تکرار وی کومه چه په سورة مائده کښې شوی ده چه "لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا"، "مونږ په تاسو کښې دَ هر یو دَ پاره یو شریعت او دَ عمل یوه لار مقرر کړه" (آیت ۴۸).

[۱۱۷] یعنی لکه څنګه چه رومبنو پیغمبرانو خپلو خپلو اُمتو نو دَپاره یو "منسک" راوړے وُو، دغه شان دَدے زمانے دَ اُمت دَپاره تا یو منسک راوړے دے، اُوس هیچا ته دا حق نه دے حاصل چه ستا سره جګړه اُوکړی ځکه چه دَدے زمانے دَپاره دا منسک حق دے. په سورة جاثیه کښې دا خبره په دے طریقه بیان شوی ده: "ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ مِّنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ (آیت ۱۸) "بیا (دَ بنی اسرائیلو دَ پیغمبرانو نه روستو) اے محمدٌ، مونږه ته دَ دین په معامله کښې په یو شریعت (طریقه) باندې قایم کړے، پس ته دَ هغې پیروی کوه او دَ بے علمو خلقو په خواهشاتو پسے مه ځه." (دَ تفصیل دَ پاره اُوګورئ تفهیم القرآن، څلورم جلد، سورة الشوری، حاشیه ۲۰).

السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ فِیْ كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ یَسِیْرٌ ﴿۷۰﴾
وَیَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَمْ یُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا وَّمَا لَیْسَ لَهُمْ
بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِیْنَ مِنْ نَّصِیْرٍ ﴿۷۱﴾ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَیْهِمْ اٰیٰتُنَا
بَیِّنٰتٍ تَعْرِفُ فِیْ وُجُوْهِ الَّذِیْنَ كَفَرُوا الْمُنْكَرَ ؕ یَكَادُوْنَ

هر څیز د الله په علم کښې دے؟ ټول هر څه په یو کتاب کښې درج دی۔ د الله د پاره دا هیڅ هم گرانه نه دهٔ۔ [۱۱۹]
دا خلق الله پریږدی او د هغه څیزونو عبادت کوی چه د هغې د پاره نه خو الله څه سند نازل کړے
دے او نه دوی پخپله د هغوی په حقله څه علم لری۔ [۱۲۰] د دے ظالمانو د پاره هیڅوک مددګار نشته۔ [۱۲۱]
او هر کله چه دوی ته زمونږه صفا صفا آیتونه اوروَلے کیږی نو ته وینې چه
د حق منکرو خلقو مخونه بدل شی، او داسے معلومیږی لکه چه اُوس

[۱۱۸] دا فقره هغه مطلب بنه پوره واضحه کوی کوم چه د ملکیت فقرے په تفسیر کښې اُوس مونږه بیان کړه دے۔

[۱۱۹] د روان عبارت سره د دے پیراگراف تعلق څهٔ دے په دے باندې د ځان پوهه کولو د پاره د دے سورة آیتونه
۵ تا ۸ په نظر کښې ساتل پکار دی۔

[۱۲۰] یعنی نه خو د الله تعالیٰ په یو کتاب کښې دا ویلے شوی دی چه مونږه فلانے فلانے په خپله خدائی کښې
د ځان سره شریک کړے دے نو د هغوی عبادت هم کوئ، او نه هغوی ته په څه علمی ذریعه دا معلومه شوی ده
چه دا خلق واقعی په خدائی کښې حصه داری او په دے وجهه د هغوی عبادت پکار دے۔ اُوس چه دا قسما قسم
معبودان جوړ کړے شوی دی، او د هغوی د صفتونو او د اختیاراتو په حقله مختلف عقیدے جوړے کړے شوی دی
او د هغوی په دربارونو پورے تړلی سو لوله کیږی، دُعا گانے ترغو نیتلے کیږی، قربانی ورته کیږی، نذرونه
ورکړے کیږی، طوا فونه او اعتکا فونه پکښې کیږی، دا ټول جاهلیت نه دے نو آخر څهٔ دی۔

[۱۲۱] یعنی دا بے وقوف خلق دا ګمان کوی چه دا معبودان په دُنیا او په آخرت کښې د هغوی مددګاران دی،
او حال دا دے چه په حقیقت کښې د هغوی هیڅوک هم مددګار نشته۔ نه خو دا معبودان مددګاران
دی، ځکه چه د دوی سره د مدد کولو هیڅ طاقت نشته، او نه الله مددګار دے، ځکه چه د هغه نه خود دوی
بغاوت کړے دے۔ نو دوی په خپله بے وقوفیا سره په خپل ځان ظلم کوی۔

---

يَسْطُوْنَ بِالَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ؕ قُلْ اَفَاُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ
ذٰلِكُمْ ؕ اَلنَّارُ ؕ وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٧٢﴾
يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ
دُوْنِ اللّٰهِ لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا وَّلَوِ اجْتَمَعُوْا لَهٗ ؕ وَاِنْ يَّسْلُبْهُمُ
الذُّبَابُ شَيْـًٔا لَّا يَسْتَنْقِذُوْهُ مِنْهُ ؕ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَ
الْمَطْلُوْبُ ﴿٧٣﴾ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿٧٤﴾

به هغوئ په هغه خلقو حمله کوی څوك چه ورته زمونږه آیتونه آوروی. دوئ ته اُووایه ایا زۀ درته اُوښایم چه څۀ دے؟ (هغه) وُور (دے)، د چه وعده الله د هغه خلقو په حق کښے کړې ده چه هغوی د حق نیلولو نه انکار کوی، او هغه ډیر ناکاره ځائے دے"[۱۲۲]. ع

اے خلقو، یو مثال بیانیږی، په غور سره ئے واورئ. تاسو چه خدائے پریږدئ او کوم معبودانو ته آوازونه کوئ هغوی که ټول راجمع شی او یو مچ پیدا کول غواړی نو هم ئے نۀ شی پیدا کولے. بلکه که مچ ترینه څیز اُوتښتوی نو هغه ترے هم نۀ شی خلاصولے. مدد غوښتونکے هم کمزورے دے او دچا نه چه مدد غوښتلے کیږی هغه هم کمزورے دے[۱۲۳]. دے خلقو د الله قدر اُونۀ پیژند و لکه څنګه چه د هغه د پیژندو حق دے. حقیقت دا دے چه قوت والا او عزت والا خو الله دے.

[۱۲۲] یعنی د کلام الٰهی د آیتونو د اوریدو په وجه چه کومه غصه تاسو له درځی د هغه نه زیات سخت څیز، یاد اچه د دے آیتونو د اورولو والو سره تاسو کوم غټ زیاتے کولے شئ د هغه نه زیات بد ترځیز چه هغه به تاسو ته ملاویږی.

[۱۲۳] یعنی مدد غوښتونکے خو په دے وجه یو بالا تر طاقت ته د امداد د پاره لاسونه غوړوی چه هغه کمزورے دے. لیکن د دے غرض د پاره چه دوی چا ته لاسونه غزوی د هغوی د کمزورئ دا حال دے چه هغوی د یو مچ نه هم ځان نۀ شی خلاصولے. اُوس غور اُوکړئ چه د هغه خلقو د کمزورئ به څۀ حال وی چه ځیله هم کمزوری وی او چه په چا پورے ځان راتیکوی هغوی هم کمزوری وی.

اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ
بَصِيْرٌ ﴿٧٥﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ
الْاُمُوْرُ ﴿٧٦﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّكُمْ وَ
افْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٧٧﴾ ۩ وَجَاهِدُوْا فِي اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ ۭ هُوَ

السجدة عند الشافعي

حقیقت دا ده چه الله (دَخپلو حکمونو دَ رسولو دَ پاره) دَ فرښتو نه هم اُستاذی منتخب کوی او دَ انسانانو نه هم[124] هغه اورېدونکے او لیدونکے دے، څه چه دَ هغوی دَ وړاندې دی هغه هم ورته معلوم دی او څه چه دَ هغوی نه پناه دی دَ هغې نه هم خبر دے[125] او ټول معاملات هغه ته واپس کېږی.[126]

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، رکوع او سجده کوئ، دَ خپل رب بندګی کوئ او نیک کار کوئ، شاید چه تاسو ته کامیابی نصیب شی.[127] دَ الله په لار کښې جهاد کوئ لکه څنګه چه دَ جهاد کولو حق دے[128] هغه

[124] مطلب دا دے چه مشرکانو دَ کومو مخلوقاتو نه ځان له معبودان جوړ کړی دی په هغې کښې دَ یو لوئے خو لوئے مخلوق یا فرښته دی یا پیغمبران دی . او دَ هغوی حیثیت هم دَ دے نه څه زیات نه دے چه هغوی دَ الله دَ حکمونو رسولو ذریعه دی ځکه چه الله تعالیٰ هغوی دَ دے خدمت دَ پاره منتخب کړی دی . صرف په دے فضیلت سره خو نه هغوی نه خدایان جوړ یږی، او نه په خدائی کښې دَ الله سره شریکیږی .

[125] عام طور دا فقره په قرآن مجید کښې دَ شفاعت د مشرکانه عقیدے دَ تردید دَ پاره راځی . نو دلته دَ دے مطلب دا شو چه که چرے تاسو دَ فرښتو او دَ پیغمبرانو او دَ صالحانو خلقو عبادت خواه که په دے وجه کوئ چه هغوی حاجت روا او مشکل کشا ګنړئ او خواه که په دے وجه نه کوئ چه هغوی به الله ته ستاسو سفارش کوی نو دا غلط دے . ځکه چه هر څه لیدونکے او اورېدونکے صرف یو الله دے، دَ هر سړی ښکاره او پټ حالات هغه ته معلوم دی، دَ دُنیا دَ ښکاره او دَ پټو مصلحتونو نه هم خبر دے، فرښتو او پیغمبرانو او نور مخلوق ته هم تیک دا نه دی معلوم چه په خلاف وخت کښې څه کول مناسب دی او څه کول مناسب نه دی، نو الله تعالیٰ خپل نزدے مخلوق ته هم دا حق نه دے ورکړے چه که هغوی دَ هغه د اجازت نه بغیر څه سفارش کول غواړی هغه دِ کوی او دَ هغوی سفارش به قبلیږی .

[126] یعنی ټول معاملات دَ هغه په اختیار کښې دی . دَ کائنات که وړه معامله ده او که لویه معامله ده هغه بل خوا ته نه ځی چه تاسو کنی هلته خپل درخاستونه وړئ . هره معامله الله ته دَ فیصلے دَ پاره پیش کیږی نو که څه غواړئ نو دَ هغه نه غواړئ . دَ دے بے اختیاره مخلوق نه څه غواړئ چه خپل حاجتونه هم چیله نه شی پوره کولے .

[127] یعنی دَ کامیابئ اُمید که کیدے شی نو په دے طریقه اختیارولو سره کیدے شی . لیکن څوک چه دا طریقه اختیار کړی هغه له په خپل عمل باندې غرور کول نه دی پکار چه زه خو دا سے عبادت ګذار او نیکوکار یم نو

ما ته به خامخا کامیابي حاصلیږي، بلکه هغه لیکاردي چه د الله د فضل اُمید لري او د هغه د رحمت طمع دار وي. که هغه کامیابي ورکوي نو بیا د هغې په سبب کامیاب به شي. ځنېله کامیابي حاصلول د چا د وس خبره نه ده
"شاید چه تاسو ته کامیابي نصیب شي"، د دې فقرې دا مطلب نه دې چه ګني په دې طریقه کامیابي حاصلیدل شکمن دي - بلکه دا په اصل کښې د بادشاهانو غوندې خبره ده - بادشاه که خپل نوکر ته دا اُووائي چه فلانے کار کوه شاید چه تا ته فلانے منصب ملاؤ شي، نو نوکر په دې خبرو خوشحالیدلے کوي ځکه چه په دې کښې اشارةً یوه وعده ده او د یو مهربان مالک نه دا توقع نه شي کیدې چه هغه دِ ځنېله د یو کار ښه له کښې چالر اُمید ورکړي او بیا دِ خپل وفادار نوکر نااُمیده کړي -

د امام شافعيؒ، د امام احمدؒ، د عبد الله بن مبارکؒ او د اسحاق بن راهویه په نزد سورة حج دا آیت هم د سجدے آیت دے - لیکن امام ابوحنیفهؒ، امام مالکؒ، حسن بصريؒ، سعید بن المسیبؒ، سعید بن جبیرؒ، ابراهیم نخعيؒ او سفیان ثوريؒ دلته د سجدۀ تلاوت قایل نه دي. دلته مونږه د دواړو ډلو مختصر دلیلونه نقل کوو.

د اولنۍ ډلے اولنے دلیل دا ظاهري آیت دے چه په دے کښې د سجدے حکم دے. دویم دلیل د عُقبهؓ بن عامر هغه روایت دے چه احمد، ابوداؤد، ترمذي، ابن مردویه او بیهقي نقل کړے دے چه "قلت یارسول الله افضلت سورة الحج علی سائر القرآن بسجدتین؟ قال نعم فمن لم یسجد هما فلا یقرأهما." "ما عرض اُوکړو چه اے د الله رسوله، آیا سورة حج په ټول قرآن کښې افضل دے ځکه چه په دے کښې دوه سجدے دي؟ نبي اُوفرمائیل هو، پس څوک چه په دے سجده نه کوي هغه دِ دا نه لولي." دریم دلیل د ابوداؤد او د ابن ماجه هغه روایت دے چه په هغې کښې عمروؓ بن عاص وائي چه نبي صلی الله علیه وسلم هغه ته په سورة حج کښې دوه سجدے ښودلې وے - څلورم دلیل دا دے چه د حضرت عمرؓ، عليؓ، عثمانؓ، ابن عمرؓ، ابن عباسؓ، ابوالدرداءؓ، ابو موسیٰ اشعريؓ او د عمار بن یاسرؓ نه دا خبره نقل کړے شوې ده چه په سورة حج کښې دوه سجدے دي -

د دویمې ډلے دلیل دا دے چه په آیت کښې صرف د سجدے حکم نه دے بلکه د رکوع حکم ورسره هم دے او په قرآن کښې چه کله رکوع او سجده یوځائې اُووئیلې شي نو د هغې نه مراد مونځ وي. دارنګه رکوع او سجده چه یوځائې راشي نو هغه د مانځه د پاره خاص وي - د عُقبه بن عامر د روایت په حقله دوي وائي چه د دے سند ضعیف دے د دے روایت ابن لهیعه د ابوالمصعب بصري نه کوي او دا دواړه ضعیف راویان دي - خاص طور ابوالمصعب خو هغه سړے دے چه د حجاج بن یوسف سره ئې په کعبه باندې په منجنیق کانړي ورولي وُو - د عمرو بن العاص والا روایت هم هغوي بے اعتباره ګڼړي ځکه چه دا سعید العتقي د عبد الله بن مُنین الکلابي نه روایت کوي او دواړه نامعلومه دي، هیڅ پته نه لږي چه هغوي څوک وُو او کوم قسم خلق وُو - د صحابو د قولونو په سلسله کښې هغوي وائي چه ابن عباسؓ سورة حج د دوو سجدو دا مطلب ښودلے دے چه الاولی عزیمة والآخرة تعلیم، یعنی اوله سجده لازمي ده، او دویمه سجده تعلیمي ده -

۱۳۱ د جهاد نه مُراد صرف "قتال" (یعنی جنګ) نه دے بلکه دا لفظ د انتهائي کوشش کولو په معنیٰ کښې استعمالیږي - بیا په جهاد او په مجاهد کښې دا مطلب هم شامل دے چه مخه نیونکي ځواکونه شته چه د هغې په مقابله کښې دا کوشش ضروري دے - او د دے سره چه د "فی الله" کوم قید شته د هغې دا مطلب دے چه مخه

# اجْتَبٰىكُمْ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ ۭ مِلَّةَ اَبِيْكُمْ

تاسو مقبل کار دَ پاره خوښ کړي يئ[۱۲۹] او په دين کښې ئې تاسو باندې څه تنګيا نه ده کړې.[۱۳۰] قايم شئ دَ خپل پلار ابراهيمؑ

بېروني طاقتونه هغه دي چه دَ الله بندګي کولو نه او دَ الله په لار باندې تللو نه څوک نه پرېږدي، او دَ کوشش مقصد دا دے چه سړے دغه طاقت له شکست ورکړي او ځپله هم دَ الله بندګي ټيک ټيک اوکړي او په دُنيا کښې هم دَ الله دَ کلمې دَ اُوچتولو دَ پاره او دَ کفر او دَ الحاد دَ کلمې دَ ښکته کولو دَ پاره انتهائي کوشش اوکړي. دا جنګ (مجاهده) دَ ټولو نه اول دَ خپل نفس اماره نه شروع کيږي چه هر وخت دَ خدائے نه دَ بغاوت کولو دَ پاره زور لګوي او دا کوشش کوي چه سړے دَ ايمان او دَ طاعت دَ لارے نه واړوي. ترڅو پورې چه دَ دے تابع نه کړے شي، نو بهر دَ چيرته جهاد دے امکان نشته. دا وجه ده چه دَ يو جنګ نه واپس راتلونکو غازيانو ته نبي صلی الله عليه وسلم اُوفرمائيل "قدمتم خير مقدم من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاكبر"، "تاسو دَ ورکي جهاد نه لوئي جهاد ته واپس راغلي يئ." پوښتنه اُوشوه چه هغه لوئي جهاد څه دے؟ نبيؐ اُوفرمائيل "مجاهدة العبد هواه" "دَ خپل نفس دَ خواهشاتو خلاف کوشش". دَ دے نه روستو ټوله دُنيا دَ جهاد دَ پاره يو فراخه ميدان دے په کوم کښې چه دَ ټولو باغي طاقتونو خلاف په زړه او په دماغ سره او په بدن او په مال سره کوشش کول هغه جهاد دے چه دَ هغې دلته مطالبه کيږي.

[۱۲۹] يعنې په ټولو انسانانو کښې تاسو دَ هغې خدمت دَ پاره خوښ کړے شوي يئ دَ کوم خدمت چه پورته ذکر شوے دے. دا خبره دَ قرآن مجيد په مختلفو ځايونو کښې په مختلفو طريقو سره بيان شوې ده. مثلاً په سورة بقره کښې فرمائي، "جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا" (آيت ۱۴۳). او په سورة آل عمران کښې فرمائي "كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ" (آيت ۱۱۰). دلته دَ دے خبرے ښکاره کول مناسب معلوميږي چه دا آيت دَ هغې آيتونو نه دے کوم چه دَ صحابه کرامو په فضيلت باندې دلالت کوي او دَ هغه خلقو غلطي ثابتوي څوک چه په صحابو باندې بد رد وائي. ښکاره خبره ده چه دا آيت نيغ په نيغه صحابو ته مخاطب دے. نورو خلقو ته دَ دے خطاب بالتبع رسي.

[۱۳۰] يعنې ستاسو ژوند دَ هغې بے ځايه پابندو نه آزاد کړے شوے دے کوم پابندياني چه دَ تيرو اُمتونو عالمانو او فريسيانو او پاپاګانو لګولې وې. دلته په فکر و خيال باندې هغه پابندياني نشته چه په هغې سره علمي ترقي بنديږي، او نه په عملي ژوند باندې هغه پابندياني شته چه هغه دَ معاشرے ترقي بندوي. يو ساده او آسانه عقيده او قانون تاسو له درکړے شوے دے چه دَ هغې سره تاسو څومره وړاندې تلل غواړئ نو تلے شئ. دلته چه کومه خبره په ثبوتي او ايجابي انداز کښې بيان کړے شوې ده هم دغه خبره په بل ځائے کښې په سلبي انداز کښې شوې ده چه يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهٰىهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰۗىِٕثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ (الاعراف آيت ۱۵۷)، "دا رسول هغوي ته دَ معلومو نيکو حکم ورکوي او دَ هغه بدو نه منع کوي چه دَ هغې نه دَ انسان فطرت انکار کوي، او هغه څيزونه حلالوي کوم چه پاک دي او هغه

إِبْرٰهِيمَ ۚ هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِينَ ۙ مِنْ قَبْلُ وَفِي هٰذَا لِيَكُونَ الرَّسُولُ
شَهِيدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ ۚ فَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا
الزَّكٰوةَ وَاعْتَصِمُوا بِاللّٰهِ هُوَ مَوْلٰىكُمْ ۖ فَنِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿۷۸﴾ ع



په مِلّتِ باندې - الله[۱۳۱] اول هم ستاسو نوم "مسلمان" کېښودلے وُو او په دے (قرآن) کښې هم (ستاسو دا نوم دے)[۱۳۲] - د پاره د دے چه رسول په تاسو باندې ګواه شي او تاسو په خلقو باندې ګواهان شئ.[۱۳۳] پس مونځ قائم کړئ، زکوٰة ورکړئ او د الله سره تعلق قائم کړئ.[۱۳۴] هغه ستاسو مولیٰ دے - ډیر ښه مولیٰ دے هغه او ډیر ښه مددګار دے هغه. ع

ځینو نه حراموی کوم چه ګنده دی او د هغوی نه هغه درون بوج لرے کوی کوم چه په هغوی باندې اچولے شوے وُو او هغه زنځیرونه پرانزی په کوم کښې چه هغوی تړلے شوی وُو."

[۱۳۱] اګرچه اسلام ته ملّتِ نوح، ملّت موسیٰ، ملّت عیسیٰ هم ویلے کیدے شي لکه څنګه چه ورته ملّت ابراهیم ویلے کیږی، لیکن په قرآن مجید کښې چه ورته بار بار ملّت ابراهیم ویلے شوے دے او د ابراهیم په طریقه باندې د عمل کولو دعوت ورکړے شوے دے نو د دے درے وجے دی - یوه دا چه اول مخاطب د عربو خلق وُو او هغوی چه د حضرت ابراهیم سره څومره آشنا وُو د ومره د بل چا سره نه وُو - د هغوی په تاریخ کښې او د هغوی په عقید وکښې چه د کوم سړی اثر او رسوخ زیات وُو هغه ابراهیم وُو - دوېمه وجه دا ده چه حضرت ابراهیم یو داسے سړے وُو چه د هغه په بزرګۍ باندې یهودیان، عیسایان، مسلمانان او د مشرکانو او د شرقِ وسطٰی صابیان ټول متفق وُو - په پیغمبرانو کښې بل څوک داسے نه وُو او نه شته چه په هغه باندې د ټولو اتفاق وی - دریمه وجه دا ده چه حضرت ابراهیم د ټولو ملّتونو نه مخکښې تیر شوے دے - یهودیت، عیسائیت او صابیت خو معلومه خبره ده چه روستنی ملّتونه دی - پاتے شو د عربو مشرکان، نو هغوی هم دا خبره منله چه په هغوی کښې د بُت پرستۍ رواج د عمرو بن لحی نه شروع شوے وُو چه هغه د بنی خزاعه سردار وُو او د مآب (موآب) د علاقے نه هُبل نومے بُت راوړے وُو - د هغه زمانه د مسیح نه پنځه شپږ سوه کاله مخکښې وه . نو دا ملّت هم د حضرت ابراهیم نه په سوونو کاله روستو پیدا شوے وُو - په دے صورتِ حال کښې چه قرآن کله وائی چه د دے ملّتونو په ځائے ملّتِ ابراهیم اختیار کړئ، نو هغه په اصل کښې دا حقیقت ښکاره کوی چه که چرے حضرت ابراهیم په حقه وُو او په هدایت باندې وُو، او په دے ملّتونو کښې د چا پیروکار نه وُو، نو بیا هغه اصلی او حق ملّت دے نه چه دا روستنی ملّتونه، او د محمد صلی الله علیه وسلم دعوت ابراهیمی ملّت ته دے . د زیاتے تشریح د پاره او ګورئ تفهیم القرآن اول جلد، البقره، حاشیه ۱۳۴ - ۱۳۵ - آل عمران، حاشیه ۵۸ - ۷۹ دوېم جلد، النحل، حاشیه ۱۲۰ -

[۱۳۲] د لفظ "ستاسو" خطاب مخصوص طور یوازے هغه مسلمانو ته نه دے کوم چه د دے آیت

دَ تازلید و په وخت کښې موجود وُو، یا ئې دَ دوئ نه روستو ایمان قبول کړو، بلکه دا خطاب هغه ټولو خلقو ته دے چه دَ انسانی تاریخ دَ شروع نه دَ توحید، دَ آخرت، دَ رسالت او دَ آسمانی کتابونو منونکی وُو۔ مطلب دا دے چه دَ دے حق ملّت منونکو ته په اول هم "نوحیان"، "ابراهیمیان"، "موسویان" او "مسیحیان" وغیره نهٔ ویلے کیدل بلکه دَ هغوئ نوم "مسلمان" (دَ الله فرمان منونکی) وُو۔ او نن هم هغوی "محمدیان" نهٔ دی بلکه "مسلمانان" دی۔ په دے خبره باندِ دَ نهٔ پوهیدو په وجه خلقو ته دا خبره ګرانه شوه چه دَ محمد صلی الله علیه وسلم دَ پیروکارانو نوم دَ قرآن نه مخکښې په کوم کتاب کښې "مسلمان" کیښودے شوے وُو۔

۱۳۳ دَ تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن اول جلد۔ البقره، حاشیه ۱۴۴۔ دَ دے نه زیاته تشریح مونږ په خپله کتابچه "شهادتِ حق" کښې کړې ده۔

۱۳۴ یعنی دَ الله لمن مضبوطه اُونیسئ۔ هدایت دَ هغه نه حاصل کړئ، ژوند دَ هغه په تابعت تیر کړئ، حکم دَ هغه منئ، یره دَ هغه نه کوئ، اُمید ونه دَ هغهٔ نه لرئ، امداد دَ هغهٔ نه غوارئ او توکل او بروسه په هغهٔ کوئ۔

# المؤمنون

**نوم** دَ اولنۍ آيت قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ نه اخستلے شوے دے۔

**دَ نازليدو زمانه** دَ انداز بيان نه او دَ مضمونونو نه دا معلوميږي چه دَ دے سورة دَ نازليدو زمانه دَ مکے منځنے دَور دے۔ دَ حالاتو نه صفا معلوميږي چه اګرچه دَ نبي صلى الله عليه وسلم او دَ کافرانو په مينځ کښے سخت کشمکش شروع دے، ليکن لا دَ کافرانو دَ طرفنه ظلم زياتے سخت شوے نه دے. دَ آيت ۷۵-۷۶ نه صفا دا شهادت ملاويږي چه دا دَ مکے دَ هغه سخت قحط په زمانه کښے نازل شوے دے چه هغه معتبرو روايتونو مطابق په دے منځنۍ دَور کښے وو. دَ عُروه بن زبير دَ يو روايت نه معلوميږي چه په هغه وخت کښے حضرت عمرؓ ايمان راوړے وو. هغهٔ دَ عبدالرحمٰن بن عبد القاري په حواله سره دَ حضرت عمرؓ دا قول نقل کوي چه دا سورة دَ هغه په مخکښے نازل شوے دے. هغه پخپله دَ وحي دَ نازليدو حالت په نبي صلى الله عليه وسلم باندے ليدلے وو، او کله چه نبيؐ دَ وحي نه فارغ شو نو وے فرمائيل چه په ما دَ وخت کښے په ما باندے داسے لس آيتونه نازل شوي دي چه که څوک دے مطابق پوره شو نو يقيناً چه هغه به جنت ته ځي، بيا هغهٔ دَ دے سورة اولنۍ آيتونه واورول (احمد، ترمذي، نسائي، حاکم)۔

**موضوع او بحثونه** دَ رسول پيروۍ ته دعوت ورکول دَ دے سورة مرکزي مضمون دے او ټول تقرير دَ دے مرکز نه ګير چاپيره تاويږي۔

دَ کلام شروع په دے طريقه کيږي چه کومو خلقو دَ دے پيغمبر خبره منلې ده نو په هغوی کښے دا او دا صفتونه پيدا کيږي، او يقيناً چه دا هغه خلق دَ دُنيا او دَ آخرت دَ کاميابۍ مستحق دي۔

دَ دے نه روستو دَ انسان پيدائيش ته، دَ زمکے او دَ آسمان پيدائش ته، دَ بوټو او ونو پيدائش ته او دَ کائناتو نورو څيزونو ته توجه راګرځولے شوې ده، او مقصد ئے دا خبره په ذهن کښے کينول دي چه دَ توحيد او دَ آخرت په حقله دا پيغمبر تاسو ته څه وائي دَ هغه په حق والي باندے ستاسو خپل وجود او دَ کائناتو دا ټول نظام ګواه دے۔

بيا دَ پيغمبرانو او دَ هغوی دَ اُمتونو قيصے شروع کړے شوي دي، چه په ظاهره خو قيصے ښکاري، ليکن په دے طريقه يو څو خبرے اوريدونکو ته ښودلے شوي دي:-

اول دا چه نن تاسو دَ محمد صلى الله عليه وسلم په دعوت باندے کوم شکونه او اعتراضونه کوئ نو دا څه نوي نه دي. مخکښے هم چه کوم پيغمبران دنيا ته راغلي وو، او چه تاسو ئے پخپله دَ خدائے تعالیٰ استازي منئ، په هغوی هم دَ خپلے زمانے جاهلانو هم دا اعتراضونه کړي وو۔ اوس اُوګورئ چه دَ تاريخ سبق څه وائي۔ آيا اعتراض کونکي په حقه وو او که پيغمبران؟

دويم دا چه دَ توحيد او دَ آخرت په حقله کومه تعليم محمد صلى الله عليه وسلم درکوي هم دا تعليم دَ هرے زمانے پيغمبرانو ورکړے دے۔ دَ هغے نه مختلف څه نوے څيز نه پيش کيږي چه کوم په دُنيا کښے چا نۀ دے اوريدلے۔

دريم دا چه کومو قومونو دَ پيغمبرانو خبره وانه وريدله او دَ هغوی مخالفت ئے شروع کړو نو هغوی

په آخر کښې تباه شوی دی.

ګلورم دا چه په هر زمانه کښې د خدائے تعالیٰ د طرفه یو دین راغلے دے او ټول پېغمبران د یو اُمت خلق وُو۔ د دغه یو دین نه علاوه چه کوم مختلف مذهبونه تاسو په دنیا کښې وینئ دا ټول خلقو ځانله جوړ کړی دی، په دے کښې یو هم د الله د طرفه نه دے.

د دے قیصو نه دریم خلقو ته وئیلے شوی دی چه د دنیا خوشحالی، مال او دولت، بال بچ، شان او دبدبه، طاقت او اقتدار هغه څیزونه نه دی چه کوم د یو سړی یا د یوه ډلے د صحیح والی یقینی علامه وی او د دے خبرے دلیل وی چه کوم خدائے په هغه باندې مهربانه دے او د هغه عمل د خدائے خوښ دے. د غه شان د بیا غریبوالے او بد حالی هم د دے خبرې ثبوت نه دے چه کوم خدائے د هغه سره او د هغه د عمل نه ناراضه دے. اصل څیز چه هغه د خدائے د رضا یا د ناراضګئ سبب دے هغه د سړی ایمان، د خدائے نه ویره او صداقت دے. دا خبرې ځکه اوشولے چه د نبی صلی الله علیه وسلم د دعوت په مقابله کښې کوم خلق د لار خنډ ګرځیدلی وُو هغوی ټول د مکے غټان او لوئی لوئی سرداران وُو. هغوی ځپله هم په دے غرور کښې مبتلا وُو، او کوم خلق چه د هغوی د اثر لاندې وُو هغوی هم په دے دوکه کښې پراته وُو چه په کومو خلقو نعمتونه راوریږی نو په هغوی باندې د خدائے تعالیٰ او دیوتاګانو کرم دے. باقی شو دا چه کوم خلق کوم چه د غمونو سره دی، د دوی حالت ځپله دا وائی چه خدائے د دوی سره نه دے، او د دیوتاګانو هیڅ بزرګانو په سزا کښې کړیږی.

د دے نه روستو د کوشش شوے دے چه مکے والا په څه طریقه د نبی صلی الله علیه وسلم په نبوت باندې مطمئن شی. بیا ورته وئیلے شوی دی چه دا کوم قحط چه په تاسو نازل شوے دے، نو دا خو یو خبردارے دے. ښه خبره دا ده چه په دے سره ځان سیده کړئ او نیغ لارے ته راشئ. ګنی نو د دے نه روستو به دا سے سخت سزا راشی چه چغې به اُوچتوئ.

بیا هغوی ته په هغه نښو ته راګرځیدلے شوی ده کومے چه په کائناتو کښې دی او ځپله د دوی په ځپل وجود کښې دی. مطلب دا دے چه سترګے اُوغړوئ او اُوګورئ، چه پېغمبران تاسو له کوم توحید او د مرګ نه روستو د کوم ژوند خبردارے درکوی، آیا هغې طرفته دا هغه نښے اشاره نه دی چه د دغے خبرې ګواهی درکوی؟ آیا ستاسو عقل او ستاسو فطرت د هغې په صداقت ګواهی نه کوی؟

بیا نبی صلی الله علیه وسلم ته هدایت شوے دے چه که ستا په مقابله کښې دا خلق هر څومره د بد ګلامی اختیار کړی خو ته به ښه طریقه سره جواب ورکوه. چسے نه چه شیطان دے په غصه کړی او د بدئ جواب په بدئ سره ورکړے.

د کلام په آخر کښې د حق مخالفین د آخرت د تپوس نه یرولے شوی دی او دا خبردارے ورکړے شوے دے چه تاسو د دعوت حق او د حق د پیرو کارانو سره څه کوئ د هغې به درسره سخت حساب کیږی.

## سُوْرَةُ الْمُؤْمِنُوْنَ مَكِّيَّةٌ

اٰيَاتُهَا ۱۱۸ رُكُوْعَاتُهَا ۶

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝۱ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ

يقيناً چه کامیابي موندلې ده هغه ايمان راوړونکو خلقو چه :[1]

په[2] خپل مونځ کښې خشوع[3] کوي،

[1] دَ ايمان راوړونکو نه مُراد هغه خلق دي چه هغوي دَ محمد صلی الله عليه وسلم دعوت قبول کړو، هغه ئې خپل راهنما اُومنو، او دَ ژوند تيرولو هغه طريقه ئې خوښه کړه کومه چه هغه پيش کړې ده.

دَ فلاح معنیٰ ده کامیابي او خوشحالي. دا لفظ دَ خسران ضد دے چه معنیٰ ئې ده ناکامي او نقصان. دَ اَفْلَحَ الرَّجُلُ معنیٰ ده فلانے سړے کامياب شو، خپل مُراد ته اُورسيدو، خوشحاله شو، دَ هغه کوششونو نتيجه اُورکړه، دَ هغهٔ حالت ښهٔ شو.

قَدْ اَفْلَحَ "يقيناً کامیابي اُوموندله". په دے الفاظو سره دَ کلام دَ شروع کولو په مطلب سړے دَ هغه وخت پوره پوهيدے نهٔ شي ترڅو چه هغه ماحول دَ سرې په نظر کښې نهٔ وي په کوم ماحول کښې چه دا تقرير کيدو، په هغه وخت کښې يو طرف ته دَ اسلامي دعوت مخالفين دَ مکے سرداران وُو، چه تجارتگرا او دولتمند خلق وُو، او دَ دُنيا خوشحالياني ورته حاصل وے. او بل طرف ته دَ اسلامي دعوت پيروکاران وُو چه اکثر خلق پکښې دَ اول نه غريبان وُو، او کوم خلقو چه دَ مالدارو کورنو سره تعلق لرلو يا په خپل کاروبار کښې کامياب وُو، هغوي هم دَ خپل قوم دَ مخالفت په وجه بد حاله شوي وُو. په دے حالت کښې چه کله دَ تقرير شروع دَ دے فقرے نه اُوشوه "چه يقيناً کامیابي موندلې ده ايمان راوړونکو خلقو" نو دَ دے نه پخپله دا مطلب راوُځي چه ستاسو دَ کامیابۍ او دَ ناکامۍ معيار غلط دے، ستاسو اندازے غلطے دي، ستاسو نظر ليرے نهٔ رسي، تاسو چه کومه عارضي خوشحالي ته فلاح وايئ دغه فلاح نهٔ ده خسران دے، او دَ محمد صلی الله عليه وسلم منونکي چه تاسو ناکام گنړئ هغوي په اصل کښې کامياب دي. هغوي چه دا حق دعوت منلے دے نو دَ خسارے سودا ئې نهٔ ده کړې بلکه هغه شيز ئې موندلې ده چه په دُنيا وو په آخرت دواړو کښې به ورته هميشه خوشحالياني نصيب شي. او تاسو چه دا دعوت رد کړے دے نو تاسو په اصل کښې دَ خسارے سودا کړې ده چه په دُنيا کښې به ئې هم خراب انجام اُووينئ او دَ آخرت په ژوند کښې به ئې هم اُووينئ.

دا دَ دے سورة مرکزي مضمون دے او دَ اول نه دَ آخر پورے ټول تقرير دَ پاره شوے دے چه دا مُدعا ذهن نشين کړے شي.

[2] دَ دے آيت نه دَ نهم آيت پورے چه دَ ايمان راوړونکو کوم صفتونه بيان کړے شوي دي دا که څه ليلو نه دي دے دعوے چه "هغوي په ايمان راوړلو سره په حقيقت کښې کامیابي موندلې ده" يعنې وائي چه دا هغه خلق دي چه دَ آخرولے کامياب نهٔ وي چه په هغوي کښې دا او دا صفتونه وي. دَ دا سے صفتونو والا اخلاق به څنګه ناکام شي.

کامیابي چه د دوی ته نهٔ نصيب کيږي نو بل چا ته به نصيب کيږي

[3] دَ خشوع اصلي معنیٰ ده دَ چا وړاندے ټيټيدل، او دَ عاجزۍ اظهار کول. دَ دے حالت تعلق دَ زړهٔ

سره هم دے او دَ ظاهري بدن سره هم مے۔ کَ زړهٔ خشوع دا ده چه څوک دَ چا دَ هیبت او دَ عظمت او دَ بزرګۍ دَ وجه نه په رُعب کښے راشي۔ او دَ بدن خشوع دا ده چه کَ هغه مخلوق نو سر ئے ښکته شي، او مونځ ئے ست شي، سترګے ئے ښکته شي، آواز ئے نرم شي او دَ هیبت هغه ټولے نښے ترے ښکاره شي کومے چه دَ یوے زبردستے او طاقتورے هستۍ په مخ کښے راځي۔ په مونځ کښے دَ خشوع نه مراد دَ زړهٔ او دَ بدن دا حالت دے او دغه دَ مونځ اصلي روح دے۔ په حدیث کښے راځي چه یو ځل نبي صلی الله علیه وسلم یو سړے اُولیدو چه مونځ ئے کولو او دَ ږیرے دَ ویښتو سره ئے لوبے کولے۔ نو نبيؐ اوفرمایل "لو خشع قلبه خشعت جوارحه"، "که چرے دَ دهٔ په زړهٔ کښے خشوع وے نو دَ دهٔ په بدن به هم خشوع ښکاریدله"

اګرچه دَ خشوع تعلق په حقیقت کښے دَ زړهٔ سره مے او دَ زړهٔ خشوع ځینله په اندامونو باندے ظاهریږي کم څنګه چه په پاسنی حدیث کښے دی۔ لیکن په شریعت کښے دَ مونځ دَ پاره څه آداب داسے هم مقرر کړے شوي دي چه یو طرفته دَ زړهٔ په خشوع کښے امداد کوي او بل طرفته په ظاهري حیثیت سره مونځ په یو خاص معیار باندے قائم لري۔ په دے آدابو کښے یو خبره دا ده چه سړے دِ ښی او ګس طرف ته دِ تاویږي نه او نهٔ دِ بره ګوري (دَ زیاتو نه زیات بس صرف دَ سترګو په کونجونو اخوا دیخوا کتلے شي۔ دَ حنفیانو او دَ شافعیانو په نزد دَ سجدے دَ ځائے نه اوړیدل نهٔ دي پکار. لیکن مالکیه دَ مے خبرې قائل دي چه نظر مخامخ ساتل پکار دي)۔ په مونځ کښے خوزیدل او اخوا دیخوا کیدل هم منع دي۔ جامے باربار راغونډول، یا سنبالول یا ورسره لوبے کول هم منع دي۔ دا هم منع دي چه سجدے ته دَ تللو په وخت کښے سړے دَ سجدے ځائے یا دَ ناستے ځائے صفا کوي۔ په غرور سره ودریدل، په ډیر اوچت آواز سره قرآت لوستل یا دَ سندرو په طرز قرآت لوستل هم دَ مونځ دَ آدابو نه خلاف دي۔ په مونځ کښے ستوماني ایستل او اوږدي کول هم بے ادبي ده - زر زر په ټونګو مونځ کول هم ښه نهٔ دي۔ حکم دا دے چه دَ مونځ هر کار دِ ښهٔ په آرام او اطمینان سره ادا کړے شي او یو فعل مثلاً رکوع یا سجده یا قیام یا تعده چه ترڅو مکمل شوے نهٔ وي نو تر هغے دِ بل فعل نهٔ شروع کوي۔ په مونځ کښے که یو څیز سړي له تکلیف ورکوي نو هغه په یو لاس سره لرے کولے شي، لیکن بار بار لاسونه خوزول یا دواړه لاسونه استعمالول منع دي۔

دَ دے ظاهري آدابو سره دا خبره هم ډیره اهمه ده چه سړے دِ په مونځ کښے قصداً غیر متعلق خبرے نهٔ سوچ کوي. که بے اراده څه خیالات په ذهن کښے راشي نو دا دَ انسان یوه فطري کمزوري ده۔ لیکن سړي له پوره کوشش کول پکار دي چه دَ مانځهٔ په وخت کښے دِ دَ هغه خیالات خدای له طرفته وي او څه چه په خُله وائي هغه دِ دَ زړهٔ نه هم پیش کوي۔ په دے دوران کښے که بے اختیاره څه نور خیالات راشي نو ما غه گذارله پکار دي چه څه وخت پرے پوهه شي نو په هغه وخت دِ خپله توجه مانځهٔ طرفته راګرځوي۔

وَالَّذِیْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ③ وَالَّذِیْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ④

دَ لغویاتو نه لرې وسي[4]
دَ زکوٰة په طریقه باندې عمل کوونکي وي.[5]

[4] "لغو" هر هغه خبرې او هر هغه کار ته وائي چه هغه فضول، بې مطلب او بې فائیده وي. دَ کومو خبرو یا کارونو چه هیڅ فائده نه وي، چه دَ فائیدې هیڅ نتیجه تري نه راځي، چه هیڅ حقیقي ضرورت یې نه وي، چه هیڅ ښه مقصد تري نه حاصلیږي، نو هغه ټول "لغویات" دي.

دَ "مُعْرِضُوْنَ" ترجمه مونږ "لرې وسي" کړې ده. لیکن په دې سره خبره نه واضحه کیږي. دَ آیت پوره مطلب دا دے چه هغوی دَ لغویاتو طرفته توجه نه کوي، هغې طرفته هډو نه ګوري، په هغه کښې هیڅ دلچسپي نه اخلي، په کوم ځائې کښې چه دا سې خبرې یا کارکیږي هلته هډو نه ځي، په هغې کښې دَ شرکت کولو نه ځان ساتي، او که چرته ناسا په شه دا سې موقع پیښه شي نو ا خوا دیخوا کوي او په ښه طریقه تري ځان او باسي، او آخر چه کیر شي نو بیا ځان بالکل بې تعلقه ساتي. هم دا خبره په بل ځائې کښې په دې طریقه شوې ده چه "وَاِذَا مَرُّوْا بِاللَّغْوِ مَرُّوْا كِرَامًا" (الفرقان- آیت ۷۲) یعنې هر کله چه هغوی په یو داسې ځائې ورتیریږي چه هلته لغو خبرې یا کارونه کیږي نو په شرافت سره تیریږي.

داکوم صفت چه په دې مختصره فقره کښې بیان شوے دے، دا په اصل کښې دَ مومن ډیر اهم صفت دے. مومن هغه سړے وي چه دَ هغه سره هر وخت دَ خپلې ذمه وارئ فکر وي. هغه پوهیږي چه دا دنیا په اصل کښې دَ امتحان ځائې دے او کوم شیز ته چه ژوند، عمر او وخت ویلے کیږي دا په حقیقت کښې یو خاص موده ده چه انسان له دَ امتحان دَ پاره ورکړے شوې ده. دَ دې پوهې په وجه هغه بالکل دَ هغه طالب علم پشان په توجه سره کار کوي چه هغه دَ امتحان په کمره کښې ناست وي او خپله پرچه حل کوي. لکه څنګه چه دَ هغه طالب علم سره دا فکر وي چه دَ امتحان دا یو څو ګنټې دَ هغه دَ راتلونکي ژوند دَ پاره اهم دي، او دَ همدې فکر په وجه هغه دا کوشش کوي چه په دغه وخت کښې خپله پرچه په صحیح طریقې سره حل کړي او یو سیکنډ تري هم فضول ضائع نه شي، ټیک هم دغه شان مؤمن دَ دُنیا دا ژوند په هغه کارونو کښې صرف کوي کوم چه دَ انجام په لحاظ سره فائده مند وي. آن تر دې پورې چه مؤمن لوبه هم هغه قسم کوي چه هغه هسې وخت ضائع کول نه وي بلکه سړے دَ یو بهتر مقصد دَ پاره تیار وي. دَ هغه په نزد وخت دَ "تیرولو" شیز نه وي بلکه دَ "استعمالولو" شیز وي.

دَ دې نه علاوه، مؤمن یو سلیمُ الطبع، پاک مزاجه او خوش اخلاقه انسان وي. دَ فضولیاتو سره دَ هغه طبیعت نه لږي. هغه دَ فائیدې خبرې کولے شي، لیکن فضول ګپ نه نه شي لګولے. هغه ټیک لطیفې او ټوقې کولے شي، لیکن ګنده او پوچ خُله نه شي خوزولے، ګنده ټوقې او مسخرې نه شي برداشت کولے. تفریحي ګپ نه خپل مشغله نه شي جوړولے. دَ هغه دَ پاره په هغه خلقو کښې کسیدل یو مستقل عذاب دے چه هلته هر وخت کنځل، غیبتونه او په یو بل تور پورې کول، دَ دروغو شکایت، ګنده سندرې او ګندې خبرې وي. هغه ته چه الله تعالیٰ دَ کوم جنت اُمید ورکړے دے دَ هغې په نعمتونو کښې یو غټ نعمت دا هم

وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حٰفِظُونَ ﴿۵﴾ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ

دَ خپلو شرم ځایونو حفاظت کوی،[۶] سِوا دَ خپلو ښځونه او دَ هغه زنانو نه چه دَ هغوی

بیانوی چه "لَا تَسْمَعُ فِيْهَا لَاغِيَةً" "هلته به ته هیڅ لغو خبره نه اَوروے"

۵ په "زکوٰة ورکولو" کښه او دَ "زکوٰة په طریقه باندی عمل کولو" کښه دَ معنی په لحاظ سره ډیر لوئ فرق دے، دَ دواړو یوه معنی کول صحیح نه دی. آخر څه خبره خوشته چه دَ هغې په وجه د لته دَ مؤمنانو په صفتونو کښه دَ يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ په ځائے لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ویلے شوے دے. په عربی ژبه کښه په لفظ زکوٰة کښه دوه مطلبونه شامل دی. یو "پاکوالے" او بل "ودې ترقی" دَ یو څیز په ترقی کښه چه کوم څیزونه مانع وی هغه لرے کول، او دَ هغه څیز اصلی خاصیت له وده ورکول، دا دوه مطلبونه چه یو ځائے شی نو دَ زکوٰة پوره مطلب ظاهروی. بیا چه کله دَ دے لفظ نه اسلامی اصطلاح جوړیږی نو دَ دے دوه معنی کانے وی. یو هغه مال چه دَ تزکیے دَ مطلب دَپاره اُوویستلے شی. دویم پخپله دَ تزکیے فعل. که چرے يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ اُوویلے شی نو دَ دے به دا معنی وی چه هغوی دَ تزکیے په غرض دَ خپل مال یوه حصه ورکوی یا ادا کوی. په دے کښه خبره صرف دَ مال ورکولو پورے ده. لیکن که چرے لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ اُوویلے شی نو دَ دے به دا مطلب وی چه هغوی دَ تزکیے فعل کوی، او په دے سره به خبره صرف دَ مالی زکوٰة ورکولو پورے نه وی بلکه دَ نفس تزکیه، دَ اخلاقو تزکیه، دَ ژوند تزکیه، دَ مال تزکیه، غرض دا چه دَ هر ډول تزکیه پکښے شاملیږی او دَ دے مطلب به صرف دا نه وی چه هغوی به صرف دَ خپل ژوند تزکیه کوی بلکه دَ خپل گیر چاپیره ژوند تزکیه به هم کوی. یعنی په نورو الفاظو کښه به دَ دے آیت ترجمه دا شے وی چه "هغوی دا سے خلق دی چه دَ تزکیے کار کوی" یعنی خپل ځانونه هم پاکوی او دَ نورو خلقو دَ پاکولو خدمت هم کوی، په خپل ځان کښه هم انسانیت له وده ورکوی او دَ بهر په ژوند کښه هم دَ انسانیت دَ ترقی دَپاره منډے ترړے وهی. دا خبره دَ قرآن مجید په نورو ځایونو کښه هم بیان شوی ده، مثلاً په سورة اعلیٰ کښه فرمائی قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ۝ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ۝ "کامیاب شو هغه سړے چا چه پاکوالے اختیار کړو او دَ خپل رب نوم ئے واخستو او مونځ ئے اُوکړو" او په سورة شمس کښه فرمائی قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰىهَا ۝ وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰىهَا "کامیاب شو هغه سړے چا چه دَ نفس تزکیه اُوکړه، او ناکام شو هغه سړے چا چه هغه دباؤ کړو" لیکن دا آیت دَ دے دواړو آیتونو په نسبت زیات منهوم لری، ځکه چه هغه صرف دَ خپل نفس په تزکیے زور ورکوی او دا پخپله دَ تزکیے کار اهمیت بیانوی چه دَ خپل ځان تزکیه او دَ نورو خلقو دَ ژوند تزکیه پکښے هم شامله ده.

۶ دَ دے دوه مطلبونه دی. یو دا چه هغوی دَ خپل بدن قابلِ شرم ځایونه پټوی، یعنی دَ ننگ نه ځان ساتی او خپل ستر نورو چا ته نه ښکاره کوی. دویم دا چه هغوی خپل پاکوالے محفوظ ساتی، یعنی په جنسی معاملاتو کښه آزادی نه کوی او دَ شهوت په استعمال کښه به مهاره نه وی. (دَ تشریح دَپاره اُوگوره تفهیم القرآن، دریم جلد، النور حاشیه ۳۰، ۳۲).

أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ﴿٦﴾ فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ ﴿٧﴾

په قبضه کښې وي ځکه چې په هغوی باندې (په محفوظ نه ساتلو کښې) هغوی ملامته نه دي، البته څوک
چې د هغې نه علاوه نور څه اوغواړي نو هغوی زیاتی کوونکي دي ۶

۶ دا پکښې په مینځ کښې جمله معترضه ده. دا هغه غلط فهمي لرې کوي کومه چې "د شرمګاهونو د حفاظت
د لفظ نه پیدا کیږي. په دنیا کښې څنګه هم خلقو اګڼل او نن هم ډیر خلق په دې غلط فهمۍ کښې مبتلا دي چې
شهوتي قوت کښې په خپله خراب څیز دے او د دې تقاضې پوره کول، اګر که په جائزه طریقه وي، خو بهرحال د نیکو خلقو
او د الله والو د پاره مناسب نه دي. دا غلط فهمي به نوره هم مضبوطه شوې وه که چرې صرف دومره خبره شوې وه
چې کامیاب مؤمنان خپل شرمګاهونه محفوظ ساتي. ځکه چې د دې نه دا مطلب اخستلې کیدے شو چې هغوی د
راهبانو په شان خلق وي د وادۀ د خبرو سره څه کار نه لري. نو په دې وجه د حقیقت واضحولو د پاره په منځ
کښې یوه جمله معترضه اوویلے شوه چې په جائز مقام کښې خپل خواهش پوره کول څه د ملامتیا خبره نه ده،
البته دا ګناه ده چې سړے د خپل شهوت پوره کولو د پاره د دغې جائز ځائے نه علاوه څه بل ځائے تلاش کړي.

د دې جملې معترضې نه یو څو حکمونه راوځي چې هغه مونږ دلته مختصر بیانوو۔

(۱) "د شرمګاهونو د حفاظت" حکم عام دے، د دې عام حکم نه دوه قسمه زنانه بیلې کړې شوې. یو "ازواج"
بل "مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ"۔ "ازواج" د عربۍ ژبې د عام استعمال مطابق هم او هم په دې د قرآن د بیاناتو مطابق
هم صرف د هغه زنانو د پاره استعمالیږي چې د هغوی سره باقاعده نکاح شوې وي چې په اردو کښې ورته
"بیوي" (او په پښتو ژبه کښې ورته "ښځه") وائي. پاتې شو لفظ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ، نو د عربۍ ژبې او د قرآن
د استعمال مطابق دا وینځو ته وائي یعنې هغه زنانې چې هغه د سړي په ملک کښې وي. دغه شان د دې آیت نه دا
صفا معلومیږي چې د نکاح شوي ښځې په شان د وینځې سره هم منفي تعلق جائز دے، او د دې د جواز بنیاد نکاح
نه ده بلکه ملک دے. که چرې د دې د پاره هم نکاح شرط وے نو بیا د دې د ازواج نه جدا بیانولو هیڅ ضرورت
نه وو ځکه چې د نکاح په صورت کښې دا هم په ازواج کښې راتلله. د نن زمانې هغه مفسرین چې د وینځې سره
د کوروالي د جائزګڼلو نه انکار کوي، هغوی د دلیل په طور د سورۃ نساء دا آیت "وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ
مِنكُمْ طَوْلًا أَن يَنكِحَ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ (آیت ۲۵) پیش کوي او د دې خبرې د ثابتولو کوشش
کوي چې د وینځې سره کوروالے کول صرف د نکاح په ذریعه کیدے شي، ځکه چې هلته دا حکم شوے دے
چې که چرې تا سو د مالي حالت د کمزورۍ په وجه د آزادې خاندانۍ زنانه سره وادۀ نه شئ کولے نو د
وینځې سره نکاح اوکړئ. لیکن د دې خلقو دا عجیبه کار دے چې د یو آیت کومه حصه د دوی د مطلب مطابق
وي نو هغه راخلي، او د آیت کومه حصه چې د دوی د مطلب خلاف وي نو هغه قصداً پریږدي. په دې
آیت کښې چې د وینځو سره د نکاح کولو هدایت په کومو الفاظو سره شوے دے هغه الفاظ دا دي: فَانكِحُوهُنَّ
بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ، "پس د هغه (وینځو) سره نکاح اوکړئ د هغوی د
سرپرستانو په اجازت سره او هغوی ته په معروف طریقه د هغوی مهرونه ورکړئ". د دې الفاظو نه

صفا معلومېږي چه دلته بحث د ښځې د مالک نه دے بلکه بحث د یو داسے سړي دے چه هغه د خرچ د وجے نه د آزاده ښځې سره نکاح نه شي کولے او په دے وجه د بل سړي د مملوکه وینځې سره نکاح کول غواړي. ا کنه نو چرے معامله د خپلے وینځې سره د نکاح کولو نه ده نو د هغوی هغه "اهل" (سرپرستان) څوک کېدے شي چه اجازت اغستل ترې ضروري دي؟ لیکن د قرآن سره چه څوک لوبے کوي هغوی صرف فَانْكِحُوْهُنَّ لفظ را اخلي او وړاندے پسے بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ الفاظ پرېږدي. د دے نه علاوه هغوی د یو آیت نه داسے مطلب را اخلي چه هغه د قرآن مجید د نورو داسے آیتونو سره چه هغه د دغه موضوع سره تعلق لري بالکل سمون نه خوري. یو سړے چه په خپلو خیالاتو پسے نه ځي بلکه د قرآن پیروي کول غواړي نو هغه دے د سورۃ نساء آیت ۳-۲۵، د سورۃ احزاب آیت ۵۰-۵۲، او د سورۃ معارج آیت ۳۰ د سورۃ مومنون د دے آیت سره یو ځائے او لولي. هغه ته به ښکاره معلومه شي چه په دے مسئله کښے د قرآن قانون څه دے؟ (په دے مسئله باندے د زیات تفصیل د پاره اُوګورئ تفهیم القرآن اول جلد، النساء حاشیه ۴۴، تفهیمات دویم جلد صفحه ۲۹۰ تا ۳۴۲. رسائل و مسائل اول جلد، صفحه ۳۲۴ تا ۳۳۳).

(۲) په "اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ" کښے لفظ عَلٰی دا خبره ښکاره کوي چه په دے جمله معترضه کښے کوم قانون بیانېږي د هغے تعلق صرف د سړو سره دے. باقي نور ټول آیتونه د "قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ" نه د "خٰلِدُوْنَ" پورے، د نارینو او زنانو دواړو د پاره دي، اګر چه پکښے ضمیرونه مذکر دي، ځکه چه په عربۍ ژبه کښے کله د نارینو او د زنانو په شریکه ذکر کېږي نو ضمیر مذکر استعمالېږي. لیکن دلته د "لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ" د حکم نه جدا د لفظ عَلٰی په استعمال سره دا خبره واضحه کړے شوې ده چه دا حکم یوازے د نارینو د پاره دے د زنانو د پاره نه دے. که چرے "په هغوی باندے "په ځائے" د هغوی نه" په محفوظ نه ساتلو کښے هغوی ملامته نه دي، ویلے شوي وے نو بیا دا حکم هم د نارینو او زنانو دواړو د پاره کېدے شو. دا هغه باریکه نکته ده چه په دے باندے د نه پوهېدو په وجه یوے زنانه د حضرت عمرؓ په زمانه کښے د خپل غلام سره تمتع کړې وه. د صحابه کرامو په مجلس شورٰی کښے چه کله دا مسئله پیش کړے شوه نو ټولو په اتفاق سره اُووئیل "تاولت کتاب الله تعالٰی غیر تاویله" یعنی "هغه ښځے د کتاب الله غلط مطلب اغستے دے". ولے د چا دا شک راتلې شي چه که چرے دا حکم د نارینو د پاره خاص وي نو بیا د زنانو د پاره د هغوی خاوندان څنګه حلال شو؟ دا شک ځکه غلط دے چه هر کله د ښځو په معامله کښے خاوندان د "حفظ فروج" د حکم نه جدا کړے شو نو د خپلو خاوندانو په معامله کښے نه په خپله د دے حکم نه جدا شولے. د هغوی د پاره د جدا حکم حاجت پاتے نه شو. او د استثنا حکم صرف د سړي او د هغه د وینځے د پاره خاص شو او په ښځو باندے خپل غلام حرام شو. د ښځے د پاره د دے څیز د حرامېدو حکمت دا دے چه غلام خو د هغے خواهش پوره کولے شي لیکن د هغے او د کور قوام (حاکم) نه شي جوړېدے چه کوم له په وجه کور نے ژوند درې وړې کېږي.

(۳) "البته څوک چه د دے نه علاوه نور څه اُوغواړي نو هغوی زیاتي کوونکي دي" دے فقرے د پاسنو د دوو جائیزو صورتونو نه علاوه د خواهش پوره کولو نور ټول صورتونه حرام کړل، خواه که هغه زنا ده، که د قوم لوط عمل (یعنی په نارینه خواهش پوره کول)، که د څاروو سره بدعملي کول دي او که نور څه دي. صرف یو صورت دے یعنی د لا

په ذریعه خپل شهوت پوره کول (اِستمنا بالید) چه د دے په حقله د فقهاؤ په منځ کښې اختلاف دے. امام احمد بن حنبل دے ته جائز وائی. امام مالک او امام شافعی دے ته قطعی حرام وائی. او د حنفیانو په نیز اګرچه دا عمل حرام دے لیکن هغوی وائی چه که چرے د شهوت تیزی غلبے په وجه کله ناکله د سړی نه دا کار اوشی نو امید دے چه معاف کړے شی.

(۲) ځنو مفسرینو د متعے حراموالے ددے آیت نه ثابت کړے دے. د هغوی دلیل دا دے چه ممنوعه ښځه نه خو د نکاح ښځه په حکم کښې داخله ده او نه د وینځے په حکم کښے. ښکاره خبره ده چه وینځه خو هغه نه ده. او نکاحی ښځه ځکه نه ده چه د نکاحی ښځے د پاره شوهر و قانونی حکمونه دی په هغه کښې یو حکم هم په هغه صادق نه راځی. نه هغه د سړی وارثه ده او نه سړے د هغه وارث دے. نه د هغه د پاره عدت شته، نه طلاق، نه نفقه، نه ایلاء او ظهار او لعان وغیره. بلکه د څلورو ښځو حد نه هم هغه مستثنیٰ ده. نو هر کله چه هغه "نه نکاحی ښځه ده" او نه وینځه نو بیا خامخا هغه "د دے نه علاوه" په نوښتو کښې شامله ده، چه د هغه طلب کونکی ته قرآن "د حد نه اوړیدونکی" وائی. دا دلیل ډیر قوی دے، لیکن په دے کښې د کمزورئ یو اړخ دا دے چه د هغه په وجه دا دلیل مشکل دے چه د متعے حراموالے د دے آیت نه ثابتیږی. هغه اړخ دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلم د متعے د حراموالی آخری او قطعی حکم د مکے د فتحے په کال کړے وو، او د دے نه مخکښې د اجازت ثبوت په صحیح حدیثونو کښې موجود دے. که چرے دا اومنلے شی چه د متعے د حراموالی حکم د قرآن په دے آیت کښې شوے وو چه په اتفاق سره مکی دے او د هجرت نه ډیر کلونه مخکښې نازل شوے وو، نو دا څنګه کیدے شی چه نبی صلی الله علیه وسلم به د مکے فتحے پورے جائز ساتلے وی. لهٰذا دا خبره زیاته صحیح ده چه د متعے حراموالے د قرآن مجید په څرګنده حکم سره نه دے بلکه د نبی صلی الله علیه وسلم په سنتو سره دے. که په سنتو کښې د دے څرګند حراموالے نه وے نو صرف د دے آیت په بنیاد د دے د حراموالی فیصله کول مشکل وو. د متعے ذکر راغلو نو مناسب معلومیږی چه د دوه خبرو وضاحت لوړا وکړے شی. اول دا چه د متعے حراموالے په خپله د نبی صلی الله علیه وسلم نه ثابت دے. لهٰذا دا خبره چه دا حضرت عمر رض حرام کړی ده، صحیح نه ده. حضرت عمر رض دا حکم نوے ایجاد کړے نه وو بلکه صرف خور کړو او جاری کړے وو. چونکه دا حکم نبی په آخرو زمانه کښې کړے وو او عامو خلقو ته نه وو رسیدلے، نو په دے وجه حضرت عمر رض د دے عام اشاعت اوکړو او د قانون په ذریعه ئے جاری کړو. دویم دا چه شیعه حضراتو کوم مسلک اختیار کړے دے چه متعے ته مطلق مباح وائی نو د دے په کتاب و سنت کښې هډو څه ځائے نشته. په اول کښې چه کوم صحابه او تابعین او فقهاء د متعے د جواز قائل وو نو هغوی صرف د مجبورئ او د سختے ضرورت په حالت کښې دا جائز کړی وه. په هغوی کښې یو هم د دے خبرے قائل نه وو چه دا د نکاح په شان مطلق مباح ده او په عام حالاتو کښې ترے سره فائده اخستلے شی. ابن عباس چه نوم ئے د متعے د جواز په قائلینو کښې د ټولو نه زیات پیش کیږی، هغه د خپل مسلک وضاحت په دے الفاظو سره کوی چه "ماهی الا کالمیتة لا تحل الا للمضطر" (د دے مثال د مردارے دے چه د مجبور سړی نه علاوه د بل چا د پاره حلال نه دے) او کله ئے چه اولیدل چه خلق د دے نه ناجائزه فائده اخلی او په آزادئ سره متعه کوی او دا د ضرورت د حد پورے محدوده نه ګرځی، که دا خبره سرچه ږی چه ابن عباس او د هغه هم خیال نور صحابه د دے مسلک نه واپس شوی وو او که نه، خو ...

وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُونَ ﴿۸﴾ وَالَّذِينَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴿۹﴾

دَ خپلو امانتونو او دَ خپلو وعدو لحاظ ساتي،[۸]
او دَ خپلو مونځونو حفاظت کوي [۹]

دَ هغوی مسلک اختیاروي نو زیاتنه زیات بس دَ مجبورۍ په حالت کښې ورته جائز وئیلے شي. دے ته مطلق مباح وئیل، بلاضرورته جائز گڼل، آن تردې پورے چه که دَ نکاح نیټے یې وي هم خود ممنوع او دے. فانما افتتل یوه دا سے آزادي ده چه شریف انسان ئې هم نه خوښوي نو څنګه به شریعت محمدي ته منسوب کړے شي او څنګه به دَ اهلِ بیتؑ په اماماو دَ دے تهمت اولګولے شي. زما خیال دے چه په خپله په شیعه حضراتو کښې هم یو شریف سړے دا نشي خوښولے چه څوک دِ دَ هغه لور یا خور ته دَ نکاح په ځائے دَ متعے پیغام او لیږي - دَ دے مطلب دا شو چه دَ متعے دَ جواز دَ پاره په خلقو کښې یو داسے آدفا طبقه پیدا کړے شي چه هغوی دا کار جاري اوساتي. یادا چه متعه صرف دَ غریبو خلقو دَ لونړو او خویندو دَ پاره وي او دَ هغوی ته خائنانه غسل یې دَ خوځا طبقه دَ سر و حق وي. آیا دَ خدائے او دَ رسول دَ شریعت نه دَ دا سے بے انصافۍ توقع کیدے شي؟ او آیا دَ خدائے او دَ رسول نه دا امید کیدے شي چه هغوی به یو دا سے کار مباح کړي چه هغه به هر شریف سړے دَ ځان دَ پاره بے عزتي هم ګڼړي او بے حیائي هم؟

[۸] په لفظ "امانات" کښې هغه ټول امانتونه شامل دي کوم چه الله تعالیٰ یا قوم، یا خلقو یو سړي ته حواله کړي وي. او هغه ټولے وعدے کښې شامل دي کوم چه دَ انسان او دَ خدائے په منځ کښې، یا دَ انسان او دَ انسان په منځ کښې یا دَ قوم او دَ قوم په منځ کښې شوې وي. دَ مومن صفت دا دے چه هغه به په امانت کښې هیڅکله خیانت نه کوي او نه به دَ خپلے وعدے نه تښتي. نبي صلی الله علیه وسلم به اکثر په خپلو خطبو کښې فرمایل "لا ایمان لمن لا امانة له ولا دین لمن لا عهد له". "په چا کښې چه دَ امانت صفت نه وي په هغه کښې ایمان نه وي او څوک چه دَ وعدے پابندي نه کوي دَ هغه دین نشته" (بیهقي في شعب الایمان). - دَ بخاري او دَ مسلم متفق علیه روایت دے چه نبي ؑ او فرمایل "څلور خصلتونه دي چه په چا کښې څلور واړه وي هغه خالص منافق دے او چه په چا کښې یو وي نو په هغه کښې دَ منافقت یو خصلت دے تر څو چه ئې هغه پریښودے نه وي. کله چه ورته امانت حواله کړے شي نو خیانت کوي. چه خبره کوي نو دروغ وائي. چه وعده اوکړي نو ماتوي ئې او کله چه جګړه کوي نو (دَ اخلاقو او دَ دیانت) دَ ټولو حدودو نه ور تیر شي."

[۹] بره دَ خشوع په ذکر کښې "مونځ" فرمایلے شوے وو او دلته دَ جمعے صیغے سره "مونځونه" فرمایلے شوي دي. په دواړو کښې فرق دا دے چه هلته جنس مونځ مراد وو او دلته یو یو وخت مونځ ځان له ځان له مراد دے. "دَ مونځونو دَ حفاظت" مطلب دا دے چه هغوی دَ مونځ دَ وختونو، دَ مونځ دَ آدابو، دَ مونځ دَ ارکانو غرض دا چه دَ مونځ دَ هر شی پوره حفاظت کوي. بدن او جامے پاکے ساتي، اودس په ټیک طریقه کوي او دَ خبرے خیال ساتي چه چرته به اودسه نه شي. په صحیح وخت دَ مونځ کولو فکر کوي، بے وخته مونځ نه کوي. دَ مونځ ټول ارکان پوره په اطمینان او آرام سره کوي. مونځ بوج نه ګڼړي چه زر زر ئې اوکړي او

أُولَٰٓئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ﴿١٠﴾ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿١١﴾

دا خلق هغه وارثان دي چه په میراث کښې به فردوس ۱۰ اخلي او په هغې کښې به همیشه اوسي ۱۱ -

او اوګنبتي. او څه چه په مونځ کښې وائي نو هغه په دا سې طریقه وائي لکه چه یو بنده خپل خدائے ته عرض کوي، په دا سې طریقه نه لکه چه یو یادشوې سبق په شه طریقه په هوا کښې ورګوکي -

۱۰ فردوس، د جنت د پاره یو معلوم لفظ دے چه تقریبًا په ټولو انساني ژبو کښې مشترک دے - په سنسکرت ژبه کښې ورته پردیشا، په قدیم کلداني ژبه کښې پردیسا، په قدیم ایراني (ژند) ژبه کښې پیري دائزا، په عبراني ژبه کښې پردیس، په ارمني ژبه کښې پردیز، په سُریاني ژبه کښې فردیسو، په یوناني ژبه کښې پارادائسوس، په لاطیني ژبه کښې پاراداسس، او په عربي ژبه کښې فردوس وائي - دا لفظ په دے ټولو ژبو کښې یو دا سې باغ ته وائي چه د هغې نه ګیر چاپیره دیوال تاوُوي، بنه فراخه وي او د انسان د استوګنې د ځائے سره جوخت وي او په هغې کښې هر قسم میوه، خاص طور انګور وي - بلکه په ځنو ژبو کښې خو د دے په مطلب کښې دا هم شامل دي چه په هغې کښې خاص پالتو مرغۍ او څناور هم وي - د قرآن نه مخکښې د عربو په جاهلي کلام کښې هم لفظ فردوس استعمال شوے دے. او په قرآن کښې دا لفظ د ډیرو باغونو مجموعے ته وائي، لکه چه په سورة کهف کښې فرمائي "كَانَتْ لَهُمْ جَنّٰتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا" "د هغوی د میلمستوب د پاره د فردوس باغونه دي". د دے نه چه کوم خیال په ذهن کښې راځي هغه دا دے چه فردوس یو غټ ځائے دے چه په هغې کښې ډیر باغونه او چمنونه او ګلشنونه وي -

"مؤمنان به د فردوس وارثان وي" په دے باندې په سورة طٰهٰ، حاشیه ۸۳ کښې، او په سورة انبیاء، حاشیه ۹۹ کښې کافي بحث شوے دے -

۱۱ په دے آیتونو کښې څلور راځے خبرې ښوی دي:

اول دا چه کوم خلق د قرآن او د محمد صلی الله علیه وسلم خبره ومنله او دا صفتونه ئے په ځان کښې پیدا کړل او ځان ئے د دے عمل پابند کړو نو هغوی به په دنیا او په آخرت کښې فلاح بیا موي. بغیر د دے نه چه هغوی د کوم قوم، د کوم نسل او د کوم وطن سره تعلق لري -

دویم دا چه فلاح (کامیابي) یوازے د ایمان د اقرار کولو، یا یوازے د ښه اخلاقو او د ښه عملونو نتیجه نه ده، بلکه په شریکه د دواړو نتیجه ده - هر کله چه سړے د خدائے رالیږلے شوے هدایت اُومني، او بیا د هغے مطابق ښه اخلاق او ښه عمل په ځان کښې پیدا کړي، نو پس د هغې به هغه ته فلاح (کامیابي) نصیب کیږي -

دریم دا چه فلاح یوازے د دُنیا د خوشحالۍ او د وقتي طور د کامیابو نوم نه دے، بلکه دا د خیر یو دا سے حالت نوم دے چه هغه ډیر فراخه دے، په هغې کښې د دُنیا او د آخرت همیشه او مستقله کامیابي او خوشحالي شامله ده - دا خیز د ایمان او د ښیک عمل نه بغیر نه نصیب کیږي - او دا کلیه نه خود د ګمراهانو وقتي خوشحالي او کامیابي ماتولے شي، او نه ئے د صالحانو مؤمنانو عارضي مصیبتونه -

څلورم دا چه د مؤمنانو دا صفتونه د نبي صلی الله علیه وسلم د پیغمبرۍ کار د صداقت د پاره د دلیل په

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ ﴿۱۲﴾ ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً فِيْ
قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ﴿۱۳﴾ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً
فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ

مونږه انسان د خاورې د ست نه جوړ کړو، بیا مونږه په یو محفوظ ځائے کښې د نطفې په څاڅکي کښې بدل کړو، بیا مونږه هغه څاڅکی لړ وینه د ټوټې شکل ورکړو، بیا مونږ وینې د ټوټې نه د غوښې پوټه جوړ کړه، بیا مو په پوټي هډوکي جوړ کړل، بیا مو هډوکو ته غوښه ورواغوستوله[۱۲] بیا مو تر بوبل مخلوق تیار کړو.[۱۳]

طور پیش کړے شوی دی، او هم دا مضمون د وړاندې عبارت سره د دے آیتونو ربط تا بموی. د دیے رکوع د آخره پورے د تول تقریر دلیل په دے طریقه[۱] چه پر شروع کښے تجربي دلیل دے، یعنې دا چه د دے نبی تعلیم چا ستاسو په خلقو کښے دا کردار او دا اخلاق او دا صفتونه پیدا کړل، او س تاسو پخپله سوچ اوکړئ که دا تعلیم حق نه وے نو دا سے نیکې صالحې نتیجې به ترې څنګه راوتلې وے. د دے نه روستو مشاهداتي دلیل دے، یعنې دا چه د انسان په خپل وجود کښے او په خوا وشا کائناتو کښے کوم نښې په نظر راځي هغه ټولے د دے خبرې ګواهي ورکوي چه محمد صلی الله علیه وسلم د توحید او د آخرت په حقله کوم تعلیم ورکوی هغه حق دے. بیا تاریخي دلیلونه دی چه په هغې کښے وئیلے شوی دی چه د نبی او د کافرانو جګړه نن شروع نه ده بلکه دا جګړه هم په دے خبرو د پخوا زمانے راروانه ده او په هره زمانه کښے د دے یو یوه نتیجه راوتې چه د ترے صفا معلومیږي چه په دواړو ډلو کښے په حقه څوک وو او په باطله څوک وو.

[۱۲] د تشریح د پاره اوګوره سوره حج حاشیه ۵، ۶، ۹.

[۱۳] یعنی یو خالي الذهن سړے چه بچے د مور په ګیډه کښے د جوړیدو په حالت کښے اوویني نو دا خیال هم نه شي کولے چه دلته هغه انسان تیاریږي چه کله بهر ته راووځي نو د عقل او د هوښیارتیا کمالونه به را ښکاره کوي او قسما قسم د حیرانتیا کارونه به ترے ظاهریږي. د مور په ګیډه کښے انسان د هډوکو او د غوښې یو ښکلو ډوډي چه د پیدا کیدو پورے پکښے د ژوند د اولنی خصوصیاتو نه سوا بل هیڅ نه وي. نه اوریدل، نه لیدل، نه وینا، نه عقل او نه هوښیارتیا، لیکن دغه ښکلو ډوډی چه بهر ته راشي نو شي بل شان څیز ترې جوړ شي چه د ګیډے د بچي سره یې بیا هیڅ مناسبت نه وي. بیا هغه یو اوریدونکے او لیدونکے او ګویانه وجود وي. بیا هغه په تجربه او په مشاهده سره علم حاصلوي. بیا په هغه کښے یو داسے څیز (خودي) راپیدا کیدل شروع شي چه تر اول وخته د خپلو خوا وشا په څیزونو باندې د خپل حکم او د خپل زور د چلولو کوشش کوي. بیا چه هغه څو مره روړ د لویږي، نو حالت ئے دورو بهتر کیږي. د ورکوالي په نسبت په ځوانۍ کښے بل شان شي. چه د ځوانۍ نه پوخ عمر ته اورسي نو حالت ئے بدل شي. او بو ډاوالي ته چه اورسي نو د نوي نسل خلقو ته دا اندازه لګول هم ګران شي چه دا د ورکوالے څنګه وو او ځوانۍ ئے څنګه وه. دومره لویه تبدیلي د دنیا په نور مخلوق کښے نه راځي. یو سړے چه یو طرفته د پوخ عمر د انسان طاقتونو او قابلیتونو او کارونو ته اوګوري

فِي الْأَرْضِ ۖ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ ﴿١٨﴾ فَأَنْشَأْنَا لَكُمْ بِهِ

دَ دې لپاره ۱۹ او مونږ په هغې سره ستاسو دپاره د باغونو غابولې ستاسو ۲۰ په ذريعه مونږ ستاسو دپاره ...

کاروه". (المؤمن آیت ۵۷)۔

۱۹ له دویم ترجمه دا هم کیدې شي "او د مخلوقاتو د طرف نه مونږ غافله نه وو، یا نه یو". په متن کښې چه کومه ترجمه شوې ده دهغې په لحاظ سره د آیت مطلب دا دے چه دا هر څه کوم مونږ جوړ کړي دي، دا بس هم دغسې د یو ناتجربکار د لاس نه په اټکل نه دي جوړ شوي، بلکه د یو صحیح منصوبې مطابق په ډیر علم سره جوړ شوي دي، په دے کښې یو اهم قانون کار کوي، د اَدنیٰ څیز نه واخله د اعلیٰ څیز پورې په ټول نظام کائنات کښې یو مکمل ترون دے، او په دے لویه کارخانه کښې هر طرف ته یو مقصد په نظر راځي چه د جوړونکي په حکمت باندې دلالت کوي۔ د دویمې ترجمې په لحاظ سره به مطلب دا وي چه په دے کائناتو کښې مونږ څومره مخلوقات پیدا کړي دي د هغوئ د حاجت نه مونږ هیڅکله غافله نه یو او نه د هغوئ د حالت نه ناخبره یو۔ یو څیز له مونږ دا اختیار نه دے ورکړے چه هغه زمونږ د منصوبې خلاف جوړ شي یا د هغې خلاف کار اوکړي۔ د هر څیز فطري ضرورت مونږ پوره کړے دے۔ او د یو یو ذرے او د یو یو پاڼې حالت مونږ ته معلوم دے۔

۲۰ له د دے نه مراد اګرچه موسمي بارانونه هم کیدې شي، لیکن د آیت په الفاظو باندې د غور کولو نه یو بل مطلب هم په ذهن کښې راځي او هغه دا دے چه په اول شروع کښې الله تعالیٰ په یو وخت کښې په دومره مقدار کښې اوبه په زمکه راوورولې وے چه د هغې په علم کښې د قیامته پورې د دے دُنیا د ضرورت دپاره کافي وې۔ هغه اوبه د زمکې په ټوټو ځایونو کښې ودریدلے چه سمندرونه او دریابونه ترې جوړ شو او د زمکې لاندې اوبه Sub-soil water ترې جوړې شوې۔ اوس دا هغه اوبه دي چه د ګرمۍ او د یخنۍ په ذریعه او د هواګانو په ذریعه بنګته او پاس چپېرې راچپېرېږي، بارانونه، د واورې کڅ غرونه، دریابونه، چینې او کوهانې د زمکې په مختلفو حصو کښې خورېږي، او هم د دغه اوبو په ذریعه مختلف څیزونه پیدا کیږي او بیا په هوا کښې بدلیږي او هغه شان اصلي ذخیره ته واپس ځي راځي۔ د شروع نه د ننه پورې د اوبو په دے ذخیره کښې نه یوه قطره کمه راغله او نه پکښې د یوے قطرے د زیاتولو ضرورت راغی۔ د دے نه هم زیاته د حیرانتیا خبره دا ده چه د اوبو حقیقت لکه څنګه چه نن د هر یو مدرسے طالب علم ته معلوم دے چه هغه د دوو ګیسونو یعنی هائیډروجن او آکسیجن د یو ځائے کیدو نه جوړې شوې دي او یو ځل دومره ډیرے جوړے شوے چه سمندرونه ترې ډک شوو او اوس پکښې د یوے قطرے زیاتے هم نه کیږي۔ هغه څوک دے چه په یو وخت کښې دومره ډیر هائیډروجن او آکسیجن یو ځائے کړو او د دومره ډیرے اوبه ئے جوړے کړے؟ او هغه څوک دے چه اوس دا دواړه ګیسونه نه یو ځائے کوي چه اوبه ترې جوړې شي حالانکه دواړه ګیسونه اوس هم په دُنیا کښې موجود دي؟ او هر کله چه د اوبو نه بخارات جوړ شي او په هوا کښې الوزي نو هغه څوک دے چه آکسیجن او هائیډروجن په دغه وخت کښې د جُدا کیدو نه منع کوي؟ آیا د دهریانو سره د دے څه جواب شته؟ او څوک چه د اوبو او هوا او د ګرمۍ او د یخنۍ جُدا جُدا خدایان مني نو آیا هغوئ د دے څه جواب لري؟

جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ ۘ لَكُمْ فِيْهَا فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝۱۹
وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِّلْاٰكِلِيْنَ ۝۲۰
وَاِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۚ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ

دَ کجورو اودَ انگورو باغونه پیدا کړل. ستاسو دَ پاره په دې باغونو کښې ډیرے خوندناکے میوے دی[۱۹] او ددغے باغونو نه تاسو روزی حاصلوئ[۲۰] او هغه وَنه هم مونږه پیدا کړله چه هغه دَ طورِ سینا نه راخیژی[۲۱] چه دَ ځان سره تیل راږغونوی او دَ خوړونکو دَ پاره اِنګولے هم.

او حقیقت دا دے چه ستاسو دَ پاره په څارو کښې هم یو سبق دے. دَ هغوی په خیټو کښې چه څه دی[۲۲] دَ هغے نه یو شیز مونږه په تاسو باندې څکوو او ستاسو دَ پاره په هغوی کښې نورے ډیرے

۱۸ـه یعنی دَ دے دَ غائبولو څو طریقے ممکن دی، او په دے کښې چه مونږه په کومه طریقه تاسو ژوندی ساتو دَ دے ټولو ذریعو نه محرومه کولے شو. دغه شان دا آیت دَ سورة مُلك دَ آیت نه ډیر فراخه معنی لری. په سورة مُلك کښې فرمائی چه "قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَّاْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ۝" ورته اُووایه، چه تاسو چرته سوچ کړے دے که ستاسو اوبه په زمکه کښې لاندې ښکته شی نو څوك به درله بیا روانے چینے راولی؟"

۱۹ـه یعنی دَ کجورو او دَ انګورو نه علاوه په کښې نورے هم قسما قسم میوے دی.

۲۰ـه یعنی دَ دے باغونو د پیداوار نه تاسو خپله روزی پیدا کوئ، چه دَ میوے، غلے، لرګی او په نورو مختلفو صورتونو کښې، ئے ترے حاصلیږی. په مِنْهَا تَاْكُلُوْنَ کښې دَ مِنْهَا ضمیر جنّٰت طرفته ده، دَ میوو طرفته نه دے. او دَ تَاْكُلُوْنَ معنی صرف دا نه ده چه دَ دے باغونو میوے تاسو خورئ، بلکه دَ دے مطلب روزی حاصلول دی. لکه څنګه چه مونږه په خپله ژبه کښې وایُو چه فلانے سړے دَ خپل فلانی کار ډوډئ خوری، دغه شان په عربئ ژبه کښې هم وائی. فلانٌ یاكل من حرفته.

۲۱ـه یعنی دَ زیتون وَنه، چه دَ بحرِ روم په خواؤ شا علاقو کښې دَ ټولو نه زیات اهم ښیز دے. دَ دے وَنه دَ یونیم زر او دَ دوؤ زرو کالو پورے وی، ان تردے پورے چه دَ فلسطین دَ ځینو وَنو په حقله دا اندازه لګولے شوی ده چه هغه دَ حضرت عیسیٰؑ دَ زمانے دی او اوس هم شته. او طورِ سینا ته دَ دے دَ منسوب کولو وجه غالبًا دا ده چه دَ کومے علاقے مشهور مقام طورِ سینا دے، نو هم دغه علاقه دَ دے وَنے اصلی وطن دے.

۲۲ـه یعنی پئ، چه دَ دے په حقله په سورة النحل کښې فرمائیلے شوی دی چه دَ ویئے او دَ سُوتو په مینځ کښې دا یو داسے شیز دے چه دَ څارو دَ خوراك نه پیدا کیږی (آیت ۶۶).



كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٢١﴾ وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ
أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ
غَيْرُهُ ۖ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ مَا هَٰذَا إِلَّا
بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَائِكَةً

فائدے هم دي. هغه تاسو خورئ او په هغوئ باندې او په کشتو باندې هم سورلی درکړے کیږي.[۲۳]
مونږه نوح د هغه قوم ته اولیږلو.[۲۴] هغه اُووے "اے زما د قوم خلقو، د الله بندګي کوئ، د هغه نه بغیر ستاسو د پاره بل هیڅ معبود نشته، آیا تاسو نه یریږئ؟"[۲۵] د هغه د قوم کوم سردارانو چه منلو نه انکار اوکړو هغوي اُووئیل چه "دا سړے نور هیڅ نه دے خو یو بشر دے ستاسو غوندې.[۲۶] د ده غرض دا دے چه په تاسو باندې برتري حاصله کړي.[۲۷] الله که رالیږل غوښتل نو فرښتے به ئې رالیږلے وے.[۲۷الف]

[۲۳] د څاروُو او د کشتو د یو ځائے ذکر کولو وجه دا ده چه عربیانو به د بار وړلو د پاره او د سورلئ د پاره زیات تر اُوښ استعمالولو، او اُوښانو ته د "وچه جهاز" د پیره پخوا نه ویلے کیږي. د جاهلیت د زمانے شاعر ذوالرُّمَّه وائي:

ع سفینة برٍّ تحت خدی زمامها

[۲۴] د تقابل د پاره اُوګوره الاعراف، آیتونه ۵۹ تا ۶۴- یونس آیتونه ۷۱ تا ۷۳- هود آیتونه ۲۵ تا ۴۸- بني اسرائیل، آیت ۳- الانبیاء، آیتونه ۷۶-۷۷-

[۲۵] یعنی آیا تاسو چه خپل اصلی او حقیقي خدائے پرېښودے دے او د نورو بندګي کوئ نو یریږئ نه؟ تاسو چه خپل مالک او د ټول جهان مالک پرېښودلے دے او د هغه په بادشاهئ کښے د بل چا بندګي کوئ او د بل چا خدائي منئ، نو آیا تاسو ته د دے خبرې ډر نه یریږئ چه د دے به څه انجام وي؟-

[۲۶] دا خیال د ټولو ګمراهانو خلقو یو مشترک خیال دے چه بشر نبي نه شي جوړیدے او نبي بشر نه شي کیدے. په دے وجه قرآن بار بار د دے جاهلانه خیال ذکر کوي او تردید ئې کوي او دا خبره ډیره زور سره بیانوي چه ټول پیغمبران انسانان وُو او د انسانانو د پاره انسان نبي پکار دے. (د تفصیلاتو د پاره اُوګوره الاعراف آیتونه ۶۳-۶۹- یونس، آیت ۲- هود ۲۷-۳۱- یوسف ۱۰۹- الرعد ۳۸- ابراهیم ۱۰-۱۱- النحل ۴۳- بني اسرائیل، ۹۴، ۹۵- الکهف ۱۱۰- الانبیاء ۳، ۳۴- المؤمنون ۳۳، ۳۴، ۴۷- الفرقان ۷-۲۰- الشعراء ۱۵۴-۱۸۶- یٰس ۱۵- حٰمٓ السجدة ۶ سره د حاشیو).

[۲۷] دا هم د حق د مخالفینو یو پخوانے الزام دے چه کله یو سړے د اصلاح د پاره راپاسي نو فوراً په هغه باندې دا الزام اولګوي چه نور هیڅ نه دي، بس د اقتدار وږے دے. دا الزام فرعون په حضرت موسیٰ او هارون باندې لګولے وو چه تاسو ځکه راغلي یئ چه تاسو ته په ملک کښے لوئي حاصله شي، تکوت

لکما الکبریاء فی الارض (یونس آیت ۷۸)۔ هم دا الزام په حضرت عیسیٰ باندِ اُولګیدے شو چه دا سړے د یهودیانو بادشاه جوړیدل غواړی۔ او دا شُبه د نبی صلی الله علیه وسلم په حقله د قریشو د سردارانو وه، هغوی ځو ځو ځله په نبیؐ باندِ دا کوشش اُوکړو چه که اقتدار غواړے نو مخالفت (اپوزیشن) پریږده او په اقتدار کښے شامل شه، مونږه دِ بادشاه جوړ کړو۔ اصل خبره دا ده چه کوم خلق ټول عمر د دُنیا د شان و شوکت او د فائدو د پاره منډې ترړې وهی نو د هغوی د پاره دا خیال کول ډیر مشکل بلکه نا ممکن وی چه په دے دُنیا کښے به لا هم څوک داسے وی چه هغه به په نیک نیت سره د انسانانو د فائدے او د فلاح د پاره خپل ځان ستړے کوی او خپل هیڅ غرض به ئے پکښے نه وی۔ هغوی چونکه پخپله د خپل اثر او اقتدار قائمولو د پاره د دروغو نعرے او د دروغو عقیدے شپه او ورځ استعمالوی، نو په دے وجه دا دوکے درکے د هغوی په نظر کښے بالکل پوفطری خیز بنکاری، او هغوی دا ګمان کوی چه د اصلاح خبری هسے دوکه وی په دے کښے صداقت او خلوص هیڅکله نه وی، د اصلاح نوم چه څوک اخلی نو هغه به ضرور د هغوی پشان دوکه باز وی۔ او لطیفه خو دا ده چه د مصلحینو خلاف "د اقتدار د لوږے" دا الزام همیشه هغه خلق لګوی چه هغوی پخپله په اقتدار کښے وی۔ لکه چه دا اقتدار خو د هغوی خپل پیدائشی حق دے، د دے د حاصلولو او په دے باندِ د قبضے کولو په باره کښے په هغوی هیڅ الزام نه راځی، البته د ملامتیا قابل هغه خلق دی چه د هغوی د پاره دا "خوراک" پیدائشی حق نه وُو او اوس پکښے د دوئ تمه د دے خبرے لوږه "بنکاره شوه (د زیاتے تشریح د پاره اُوګوره حاشیه ۳۶)۔

د لته په دے خبره هم ځان بنه پوهه کول پکار دی چه کوم سړے د رائج الوقت نظام د خرابو د لرے کولو د پاره پاسی او د هغے په مقابله کښے یو اصلاحی نظام یا نظریه پیش کړی نو د هغه د پاره خامخا ضروری ده چه د اصلاح په لار کښے کوم طاقتونه د هغه مخه نیسی هغه د هغے د لرے کولو کوشش اُوکړی او هغه طاقتونه د اقتدار ته راولی کوم چه اصلاحی نظام یا نظریه عملاً جاری کولے شی۔ دا نګکه د داسے سړی دعوت چه کله کامیاب شی نو قدرتی خبره ده چه هغه به بیا د خلقو مشر او پیشوا وی او په نوی اصلاحی نظام کښے به د اقتدار واګے یا خو پخپله د هغه په لاسونو کښے وی، یا به د هغه د پیروکارانو په لاسونو کښے وی۔ آخِر په پیغمبرانو کښے او په مصلحینو کښے څوک دے چه د هغه د کوششونو مقصد دا نه وُو چه خپل دعوت دِ عملاً جاری کړی، او څوک دے چه کله د هغه دعوت کامیاب شو او بیا هغه د هغے پیشوا جوړ نه شو؟ نو آیا دا خبره واقعی په چا باندِ د دے الزام لګولو د پاره کافی ده چه هغه په اصل کښے د اقتدار د لوږے وُو او د هغه هم دغه مشری غرض وه کوم چه ورته حاصله شوه؟ بنکاره خبره ده چه د حق د دشمنانو نه علاوه به بل هیڅوک د دے خبری دا جواب ورنه کړی چه هَو، هم دغه مشری او اقتدار ئے غرض وُو۔ حقیقت دا دے چه مطلق اقتدار غوښتل او د خیر د مقصد د پاره اقتدار غوښتل، په دے کښے د لمکے او د آسمان فرق دے، پروے کښے دومره لوئے فرق دے لکه څومره چه د ډاکو په چاړه کښے او د ډاکټر په چاړه کښے دے۔ که څوک ډاکو او ډاکټر دواړو ته په دے توجه یو شان ګڼی چه خو دواړه بدن څیری او د دواړو لاسونو له مال ورځی، نو دا په خپلو ذهن غوټو کښے فرق دے کښی نو د دواړو په نیت کښے، د دواړو په کار کښے او د دواړو په مجموعی کردار کښے

مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ۝۲۴ اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌۢ بِهٖ جِنَّةٌ
فَتَرَبَّصُوْا بِهٖ حَتّٰى حِيْنٍ ۝۲۵ قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ ۝۲۶ فَاَوْحَيْنَآ
اِلَيْهِ اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا فَاِذَا جَآءَ اَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ

داخبره خو موږ د خپل پلار نیکه په وختونو کښې هیڅ وا نه وریدلې ده (چه بشر دې پیغمبر جوړیږي)۔ هیڅ نه دې، بس په دې سړي لېونتوب راغلې دې تر څه وخته پورې ورته انتظار اوکړئ (شاید چه خلاص شي)"۔ نوح اُووئیل، "اے ربه، دې خلقو چه ما ته دروغژن وئیلي دي نو په دې باندې زما مدد اوکړه"[۲۸] موږ ورته وحي اُوکړه چه "زموږ په نګرانۍ کښې او زموږ د وحي مطابق کښتۍ تیاره کړه. بیا چه کله زموږ حکم راشي او تنور راُو خوټیږي[۲۹] نو

دومره فرق دي چه یو عقلمند سړے د هغوي د دې اکتمه پېژندګلو کښې هیڅ غلطي نه شي کولے۔

[۲۷] الف: دا د دے خبرې ښکاره ثبوت دے چه د نوح قوم د الله تعالیٰ نه منکرنه وو او نه د دې خبرې نه منکر وو چه رب العالمين هم هغه دے او ټولې فرښتې د هغه فرمان منونکي دي۔ د دے قوم اصل ګمراهي شرک وه نه چه د خدائ نه انکار۔ هغوي به د خدائ په صفتونو او اختیاراتو و حقونو کښې بل څوک د هغه سره شریکول۔

[۲۸] یعنې زما د طرفه د هغوي نه د دغه دروغو وئیلو بدله واخله۔ لکه چه په بل ځائې کښې فرمائي: فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ "پس نوح خپل رب ته آواز اُوکړو چه زه د باؤ کړے شوے یم، اوس ته د دوي نه بدله واخله" (القمر آيت ۱۰)۔ او په سورة نوح کښې فرمائي: وَقَالَ نُوْحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْاَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا ۝ اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوْا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوْٓا اِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا۔ "او نوح اووئیل، اے زما ربه! په دے زمکه باندې د کافرانو نه یو هم مه پرېږده، که ته هغوي پرېښودل نو دوي به ستا بندګان ګمراه کوي او د هغوي د نسل نه به بدکار د حق منکره خلق راپیدا کیږي" (آیت ۲۶)۔

[۲۹] ځینو خلقو د تنور نه مراد زمکه اغستلې ده، ځینو تر د زمکې اوچته حصه مراد اغستلې ده، ځینې وائي چه د فَارَ التَّنُّوْرُ مطلب سبا ختل دي، او د ځینو په رائې کښې دا د "حمي الوطيس" په شان یوه استعاره ده "د شور او غوغا د ګرمید لو" په معنیٰ کښې۔ لیکن هیڅ مناسب وجه په نظر نه راځي چه سړے بغیر د څه قرینې نه د قرآن د الفاظو مجازي معنیٰ کوي هرکله چه د ظاهري مطلب اغستلو څه قباحت (بد والے) نه وي، د دې الفاظو په وینا سره چه کوم مطلب اول د سړي په ذهن کښې راځي هغه دا دے چه یو خاص تنور د ځکینه نه مقرر کړے شوے وو چه د هغې د لاندې نه اُوبه راخوټیږي او طوفان به شروع کیږي۔ د دويمې معنیٰ کولو ضرورت په هغه وخت کښې پېښیږي کله چه سړے د دے خبرې منلو ته تیار نه وي چه دومره لوئ طوفان به د یو تنور د لاندې نه د اوبو په راخوټیدو سره شروع شوے وي۔ لیکن د خدائے معاملې څه عجیبه شان دي۔ هغه چه په یو قوم آفت راولي نو د داسے طرفنه ئې راولي چه هغه هیڅ د سړي په وهم وګمان کښې نه راځي

فَاسْلُكْ فِيهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ
الْقَوْلُ مِنْهُمْ ۖ وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا ۖ إِنَّهُمْ مُغْرَقُونَ ﴿٢٧﴾ فَإِذَا
اسْتَوَيْتَ أَنْتَ وَمَنْ مَعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي
نَجَّانَا مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٢٨﴾ وَقُلْ رَبِّ أَنْزِلْنِي مُنْزَلًا مُبَارَكًا وَ
أَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِينَ ﴿٢٩﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ وَإِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِينَ ﴿٣٠﴾

---

دَ هر قسم څاروُونه یوه یوه جوړه په دې کښې دَ ځان سره سواره کړه او خپل اهل وعیال هم دَ ځان سره کړه سِوا دَ هغو چه دَ هغوی خلاف مخکښې فیصله شوې ده، او دَ ظالمانو په معامله کښې ما ته هیڅ مه وایه، دوی اُوس ډوبیدونکی دی. بیا چه کله ته دَ خپلو ملګرو سره په کشتۍ کښې سور شې نو اُووایه چه شکر دے دَ هغه الله چه دَ ظالم قوم نه ئې مونږ له نجات راکړو[30] او ووایه، اے پروردګاره، ما په برکتي ځائې کښې کوز کړه او ته بهترین ځائې ورکونکے یې[31]"

په دې قیصه کښې ډیرې نښې دی[32]، او آزمیښت خو مونږه ځامخا کوو[33]

---

۳۰ دا دَ یو قوم دَ بداخلاقۍ او دَ شرارت ثبوت دے چه دَ هغوی په تباهئ باندې دَ شکر ادا کولو حکم ورکړے شی.

۳۱ "کوزولو" نه مراد صرف کوزول نه دی، بلکه دَ عربئ ژبے مطابق په دے کښې دَ "میلمستوب" مطلب هم شامل دے. ګویا دَ دے دعا مطلب دا دے چه اے خدایه اُوس مونږه ستا میلمانه یُو او ته مونږ له میلمستیا راکونکے ئے.

۳۲ یعنی عبرتناک سبق دے چه مونږ ته دا ښائی چه دَ توحید طرف ته دعوت ورکونکی پیغمبران په حقه وُو او په شرک باندې ټینګ اُوسیدونکی کافران په باطله وُو، او دا چه نن هم هغسے حالت په مکه کښې دے لکه څنګه چه دَ حضرت نوحؑ او دَ هغه دَ قوم په منځ کښې وُو او دَ دے انجام به هم دَ هغې نه څه مختلف نه وی، او دا چه دَ خدا په فیصله کښې که هر څومره وخت اُولږی خو فیصله آخر کیږی، او هغه دَ حق پرستو په حق کښې وی او دَ باطل پرستو خلاف وی.

۳۳ دَ دے ترجمه دا هم کیدے شی چه "آزمیښت خو به مونږه ځامخا کولو" یا دا چه "آزمیښت خو مونږه ضرور کوو". په دواړو صورتونو کښې اصل مطلب دا دے چه دا حقیقت ښکاره شی چه الله تعالیٰ په دُنیا کښې یو قوم هم دغسے بے آزمیښته نه پریږدی، بلکه آزمیښت پرې کوی او ګوری چه دغه قوم خپل اختیار په څه طریقه استعمالوی. دَ نوحؑ دَ قوم سره چه څه اُوشو، ټیک دَ دے قانون مطابق اُوشو، او نورو قومونو هم دَ الله څه داسے نیاز ولی نه دی چه بس دَ دنیا لنګر کښې دِ بے تپوسه ګرزی. آزمیښت به په هر یو ځامخا راځی.

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٣١﴾ فَاَرْسَلْنَا فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ اَنِ
اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿٣٢﴾ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ
قَوْمِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَاَتْرَفْنٰهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا مَا

دَ دوئ نه روستو مونږه دَ يو بل دَور قوم را اُوچت کړو[۳۴]۔ بيا مو دَ هغوئ دَ قوم يو رسول په هغوئ کښې اوليږو۔ (او هغوئ له يې دعوت ورکړو) چه دَ الله بندګي کوئ، ستاسو دَ پاره دَ هغه نه سوا بل معبود نشته، آيا تاسو يرېږئ نه؟ دَ هغه دَ قوم کومو سردارانو چه دَ منلو نه انکار اوکړو او دَ آخرت پېښې دروغ اوګڼلې، او چه مونږ ورله دَ دنيا په ژوند کښې دَ خوشحالئ سامان ورکړے وُو[۳۵]، هغوئ اووئ دا سړے

[۳۴] څيني خلق وائي چه دَ دے نه مُراد دَ ثمود قوم دے، ځکه چه وړاندې دا ذکر راځي چه دا قوم دَ صيحه په عذاب تباه کړے شو، او دَ قرآن په نورو ځايونو کښې ويلے شوي دي چه ثمود هغه قوم دے چه په هغوئ باندې دا عذاب راغلے وُو، (هود، ۶۷۔ الحجر، ۸۳۔ القمر، ۳۱)۔ څيني نور خلق وائي چه دَ دے نه مُراد په اصل کښې دَ عاد قوم دے ځکه چه دَ قرآن دَ بيان مطابق دَ نوح دَ قوم نه روستو هم دا قوم را اُوچت کړے شوے وُو، وَاذْكُرُوْٓا اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ (اعراف۔ آيت ۶۹)۔ دا دويمه خبره صحيح معلوميږي، ځکه چه "دَ نوح دَ قوم نه روستو"، دا الفاظ دے طرف ته اشاره کوي۔ پاتے شو لفظ صَيْحَة (چغه، شور او غوغا)، نو صرف دَ دے تکي مناسبت، دے قوم ته دَ ثمود ويلو دَ پاره کافي نه دے، ځکه چه دا لفظ لکه څنګ چه دَ هغه تيز آواز دَ پاره استعماليږي کوم چه دَ عام هلاکت سبب ګرزي، دغه شان دَ هغه شور او غوغا دَ پاره هم استعماليږي کوم چه دَ عام هلاکت په وخت کښې وي خواه که دَ هلاکت سبب هر څه وي۔

[۳۵] دا خاصيتونه دَ غور کولو لائق دي۔ دَ پيغمبر مخالفت ته په هغه خلق راپاسيدل کوم چه به دَ قوم سرداران وُو۔ دَ هغوئ ټولو مشترکه ګمراهي دا وه چه هغوئ دَ آخرت نه منکر وُو، ځکه خو دَ هغوئ سره دا هيڅ فکر نه وُو چه خدائ له به څه جواب ورکوي، او ځکه خو هغوئ دَ دُنيا په ژوند مئين وُو او دَ "مادي ناپوهئ" نه زيات دَ بل څه قائل نه وُو۔ بيا چه په دے ګمراهئ کښې کوم څيز هغوئ بالکل ډوب کړي وُو هغه دَ دُنيا خوشحالي وُه چه هغوئ دَ خپل ځان په حقله دَ حق والي دليل ګڼړلو او دے خبرې منلو ته تيار نه وُو چه دَ کومے عقيدے او دَ کوم ژوند په وجه هغوئ ته دومره فائدے حاصلے شوې دي هغه کښې غلطي هم شي۔ انساني تاريخ بار بار دا حقيقت څرګند کړے دے چه دَ حق په مخالفت کښې هميشه هغه کسان وړاندې وړاندې وي چه دا دَ رسے خاصيتونه وي، او هم دغسے حالات په هغه وخت کښې وُو کله چه نبي صلي الله عليه وسلم په مکه کښې دَ اصلاح کوشش کولو۔

هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يَاْكُلُ مِمَّا تَاْكُلُوْنَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُوْنَ ﴿٣٣﴾
وَلَئِنْ اَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿٣٤﴾ اَيَعِدُكُمْ اَنَّكُمْ اِذَا مِتُّمْ
وَكُنْتُمْ تُرَابًا وَّعِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ ﴿٣٥﴾ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿٣٦﴾
اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿٣٧﴾ اِنْ هُوَ اِلَّا

نور هیڅ نه دے بس یو بشر دے ستاسو غوندې ـ څه چه تاسو خورئ هغه خوري او څه چه تاسو څکئ هغه څکي[۳۶] ـ اوس که چرے تاسو د خپل ځان غوندې د یو بشر اطاعت قبول کړو نو تاسو به نقصان کښې شوئ یئ ـ دے تاسو ته وائي چه کله تاسو مړه شئ او خاورے شئ او د هډوکو پنجره پاتے شئ نو بیا به تاسو (د قبرونو نه) را بیټلے کیږئ؟ لرے ده او بالکل لرے ده دا وعده کومه چه تاسو سره کیږي ـ ژوند بل نشته بس هم دا د دُنیا ژوند دے ـ هم دلته زمونږ مرګ او ژوند دے او مونږ به هرګز نه را پاسولے کیږو ـ دا سړے

[۳۶] ځینې خلق په دے غلط شوي دي چه ګنی دا خبری به هغوئ په خپلو کښې یو بل ته کولے ـ نه دا به نه وه بلکه دا خبری به هغوئ عامو خلقو ته کولے ـ د قوم د سردارانو سره چه کله دا خطره پیدا شوه چه عوام به د پیغمبر د پاکو پاکو خبرو اثر قبول کړي او بیا به زمونږه سرداری په چاپیریږي نو هغوئ عامو خلقو ته دا قسم تقریرونه کول شروع کړل ـ دا د هغه معاملے یو بل اړخ دے کوم چه پروړاندے د نوح د قوم د سردارانو په ذکر کښې بیان شوے وو ـ هغوئ به وئیل چه د خدائے د طرفه پیغمبری سیغمبری هیڅ نشته ، دا دے چه کوم خبری کوي دا اقتدار ته شیلے دے ـ رونړو، لږ غور او کړئ چه آخر دا سړے ستاسو نه په څه څیز کښې بدل دے ـ هم دغسے ستاسو په شان د غوښے او د پوستکي سړے دے ـ په ده کښې او په تاسو کښې هیڅ فرق نشته ـ بیا دے ولے لوئ سړے جوړ شي او تاسو د ده فرمان منونکي شوئ؟ ګویا په دے تقریرونو کښې دا خبره بغیر د څه جګړے نه منلی شوی وه چه مونږه ستاسو سرداران یو نو دا خو پکار ده چه یو، که مونږه د غوښے او د هډو کو نه جوړ یو او خوراک څکاک کوو نو خیر دے هیڅ خبره نه ده ـ خیره زمونږ د سرداری نه ده ځکه چه دا خو د خپله ځانه قائمه شوی او منلے شوی ده، البته خبره د دے نوي سرداری ده کومه چه اوس قائمیدل غواړي ـ د غه شان د دے خلقو په خبره او د نوح د قوم د سردارانو په خبره کښې څه زیات فرق نه وو ـ د هغوئ په نز قابلِ الزام څیز که وو نو هغه د "اقتدار لوږه" وه کله چه یو نوی سړی ته او یلدی یا پیر د لوږے شک راشي ـ پاتے شوه د هغوئ خپله خیته، نو هغوي وئیل چه اقتدار خو زمونږه فطری خوراک دے په دے که مونږه ستاسو اقتدار اوکړو نو هم څه د اعتراض خبره نه ده ـ

رَجُلٌ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا وَّمَا نَحْنُ لَهٗ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿٣٨﴾ قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ
بِمَا كَذَّبُوْنِ ﴿٣٩﴾ قَالَ عَمَّا قَلِيْلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نٰدِمِيْنَ ﴿٤٠﴾ فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ
بِالْحَقِّ فَجَعَلْنٰهُمْ غُثَآءً ۚ فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤١﴾ ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ
قُرُوْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٤٢﴾ مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ﴿٤٣﴾
ثُمَّ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا ۚ كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوْلُهَا كَذَّبُوْهُ فَاَتْبَعْنَا
بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَّجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٤٤﴾ ثُمَّ
اَرْسَلْنَا مُوْسٰى وَاَخَاهُ هٰرُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٤٥﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ

دَ خدائے په نوم خالص دروغ جوړ وی[۳۶الف] او مونږه هیڅکله دده منونکی نه یو." رسول اُووے، "پروردګاره، دے خلقو چه زهٔ دروغژن اُوګڼلم نو په دے اُوس ته زما مدد اُوکړه." په جواب کښے ورته الله اُوفرمائیل "نږدے ده هغه وخت چه دوئ به په خپلو عملونو پښیمانه شی." آخر دا چه ټیک ټیک دَ حق مطابق یوه لویه غوغا په هغوئ راغله او مونږه دَ سیلابی خزلو پشان هغوی غوزار کړل[۳۷] ـــــ لرے دِ وی ظالم قوم!

بیا مونږه دَ هغوئ نه روستو نور قومونه راُوچت کړل. یو قوم نهٔ دَ خپل وخت نه مخکښے ختم شوا و نهٔ خپل وخت نه روستو پاتے شو. بیا مونږه خپل رسولان پرلپسے را واستول. کوم قوم ته چه دَ هغوئ رسول راغے نو هغه هغوی دروغژن اُوګڼړو، او مونږه قومونه پرلپسے هلاکول اَن تر ګو وړے چه دَ هغوئ نه موږ قیصئ جوړے کړے ـــــ لعنت دِ وی په هغه خلقو چه ایمان نهٔ راوړی![۳۸]

بیا مونږه موسیٰؑ او دَ هغه رور هارون دَ خپلو نښو او دَ ښکاره سند[۳۹] سره فرعون او دَ هغهٔ

[۳۶الف] دَ دے الفاظو نه صفا معلومیږی چه دا خلق دَ الله تعالیٰ دَ هستئ نه منکر نهٔ وُو. دَ دوئ هم اصلی ګمراهی شرک وه. دَ قرآن په نورو ځایونو کښے هم دَ دے قوم دا جرم بیان کړے شوے دے. اُوګوره الاعراف آیت ۷۰. هُود آیتونه ۵۳-۵۴ حٰم السجدۃ آیت ۱۴. الاحقاف، آیتونه ۲۱-۲۲.

[۳۷] په اصل کښے لفظ غُثَآء استعمال شوے دے چه معنیٰ ئے ده هغه خزلے چه دَ سیلاب سره بهیږی او بیا په غاړو پورے نښتی وی.

[۳۸] یعنی دَ پیغمبرانو خبره نهٔ منی.

[۳۹] دَ "نښو" نه روستو "دَ ښکاره سند" نه مراد یا خو دا دے چه دا کومے نښے دَ هغوی سره وے نو دا دَ دے خبری ښکاره سند وُو چه هغوی دَ الله دَ طرفه رالیږلے شوی پیغمبران وُو. یا بیا دَ "نښو" نه مراد دَ عصا نه علاوه نورے ټولے هغه معجزے دی کومے چه په مصر کښے ښودلے شوی وے، او دَ ښکاره سند

وَمَلَإِيْهِ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا عَالِينَ ﴿٤٦﴾ فَقَالُوا أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ
مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَابِدُونَ ﴿٤٧﴾ فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا مِنَ الْمُهْلَكِينَ ﴿٤٨﴾
وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٤٩﴾ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ
وَأُمَّهُ آيَةً وَآوَيْنَاهُمَا إِلَىٰ رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِينٍ ﴿٥٠﴾

دَ سلطنت واکدارانو ته اولیږل. خو هغوی تکبر اُوکړو او ځان ئے ډیر غټ اُوګڼلو.[۴۰] وے وئیل آیا مونږه دَ خپل ځان غوندې په دوو سړو باندې ایمان راوړو؟[۴۰ الف] او سړي هم هغه چه دَ هغوی قوم زمونږه غلامان دی؟[۴۱] نو هغوی هغه دواړه دروغژن اُوګڼل او په هلاکیدُونکو خلقو کښے شامل شول[۴۲] او موسیٰ له مونږ کتاب ورکړو دَ پاره دَ دے چه خلق تری رهنمائی حاصله کړی.

او مونږه ابن مریم او دَ هغهٔ مور یوه نښه جوړه کړه[۴۳] او هغوی له مو په یو لوړ ځائے کښے پناه ورکړه چه دَ اطمینان ځائے وُو او چینے پکښے جاری وے.[۴۴] ع

نه مُراد هم سا دهٔ، ځکه چه دَ دے په ذریعه کومعجزه ښکاره شوه نو دَ هغے نه روستو داخبره بالکل واضحه شوی وه چه دا دواړه رونړه دَ الله دَ طرفنه مامور دی. (دَ تفصیل دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن څلورم جلد الزخرف حاشیے ۴۳-۴۴).

[۴۰] په اصل کښے الفاظ دی وَكَانُوا قَوْمًا عَالِينَ ، چه دَ دے دوه مطلبونه کیدے شی. یو دا چه هغوی ډیر مغرور او ظالمان خلق وُو. دویم دا چه هغوی ځان ډیر غټ اُوګڼلو او غرور ئے اُوکړو.

[۴۰ الف] دَ تشریح دَ پاره اُوګوره حاشیه ۲۶

[۴۱] اصل الفاظ دی "چه دَ چا قوم زمونږه عبادت کونکی دی". په عربئ ژبه کښے دَ چا "مطیع فرمان" کیدل او دَ هغه "عبادت گذار" جوړیدل، دواړه تقریبًا یو معنیٰ لری. څوک چه دَ چا بندګی کوی او دَ هغه حکم منونکی هغه لکه چه دَ چا عبادت کوی. دَ دے نه دا ډیره غټه معلومات کیږی چه دَ لفظ "عبادت" معنیٰ څه ده او دَ پیغمبرانو دَ دے دعوت څه مطلب دے چه هغوی وائی چه عبادت صرف دَ الله کوئ او دَ هغه نه سوا دَ بل چا عبادت مه کوئ. "عبادت" دَ هغوی په نزد صرف "رسمی عبادت" نهٔ وُو. دَ هغوی دعوت دا نهٔ وُو چه صرف رسمی عبادت دَ الله کوئ، باقی بندګی او عبادت چه دَ چا غواړئ دَ هغوی کوئ. بلکه هغوی دا هم غوښتله چه انسان دَ الله عبادت گذار بندهٔ شی او دا ئے هم غوښتله چه مطیع فرمان یعنی حکم منونکے دِ هم شی، او دَ دے دواړو معنو په لحاظ سره بل دَ بل چا عبادت ته غلط وئیلو (دَ زیاتے تشریح دَ پاره اُوګوره تفهیم القرآن، دریم جلد، الکهف حاشیه ۵۰).

[۴۲] دَ موسیٰ او دَ فرعون دَ قیصے دَ تفصیلاتو دَ پاره اُوګوره البقره، آیتونه ۴۹-۵۰. الاعراف آیتونه ۱۰۳ تا ۱۳۶. یونس ۷۵ تا ۹۲. هود ۹۶ تا ۹۹. بنی اسرائیل ۱۰۱ تا ۱۰۴. طٰهٰ ۹ تا ۸۰.

يٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۭ اِنِّىْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ۝۵۱

اے پیغمبرانو، خوری پاک څیزونه[۴۵] او عمل کوئ نیک،[۴۶] تاسو چه څه کوئ، زۀ په هغې ښه عالم یم۔

[۴۳] داسے اُونۀ فرمائیل چه یوه نښه د مریم ځوئے وُو او یوه نښه پخپله حضرت مریم وه۔ او داسے هم اونۀ فرمائیل چه د مریم ځوئے او د هغۀ مور مور دوه نښے جوړے کړے۔ بلکه داسے فرمائیلی دی چه هغوئ دواړه یوه نښه جوړه کړے شوه۔ د دے مطلب د دے نه سوا بل څه کیدے شی چه د پلار نه بغیر د مریم د ځوئ پیدا کیدل او د سړی د ملاویدو نه بغیر د مریم په خیټه بچے کیدل هم هغه څیز دے چه د دواړو نه یوه نښه جوړه وی۔ کوم خلق چه بغیر پلاره د حضرت عیسیٰؑ پیدائیش نۀ منی نو هغوئ به د دے څه وجه بیانوی چه مور او ځوئے دواړه یوه نښه وُو؟ (د دے نیات تفصیل د پاره اُوګورئ تفهیم القرآن، اول جلد، آل عمران، حاشیے ۴۲، ۵۳، ۵۳۔ النساء، حاشیے ۱۹۰، ۲۱۲، ۲۱۳۔ دویم جلد، مریم، حاشیے ۱۵ تا ۲۲۔ الانبیاء، حاشیے ۸۹، ۹۰)۔ دلته دوه خبری نورے هم د توجه کولو قابلے دی۔ اول دا چه د حضرت عیسیٰ او د هغۀ د مور معامله د جاهلو خلقو یوه بله کمزوری په ګوته کوی۔ بره چه د کومو پیغمبرانو ذکر وُو نو په هغوی باندے خوئے ایمان نۀ کړانو او چه ورته ئے وئیل چه ته بشر ئے، او بشر هم لاچرته نبی جوړیدے شی۔ لیکن د حضرت عیسیٰ او د هغۀ د مور سره چه کله د خلقو د عقیدت مینه زیاته شوه نو بیا داسے زیاته شوه چه هغوی ئے د بشریت د مقام نه اُوچت کړل او د خدائیٔ مرتبے ته ئے ورسول۔ دویم دا چه کوم خلقو په حضرت عیسیٰ باندے ایمان را اوړلو نه انکار اُوکړو با وجود د دے چه هغوی د حضرت عیسیٰؑ معجزانه پیدائیش او د هغه د ځانګو والا تقریر اُولیدلو او په حضرت مریم باندے ئے تور اُولګولو نو هغوئ له بیا سزا هم داسے ورکړے شوه چه د دُنیا د خلقو د پاره د عبرت یوه نمونه جوړه شوه۔

[۴۴] مختلفو خلقو د دے نه مختلف ځایونه مُراد اخستلی دی۔ څوک وائی چه دمشق دے، څوک وائی الرَّمْلَه، څوک وائی بیت المَقْدِسْ او څوک وائی چه مصر دے۔ د مسیحی روایاتو مطابق د حضرت عیسیٰ د پیدائیش نه روستو حضرت مریمؑ د هغه د حفاظت د پاره دوه ځله په وطن پرېښودلو مجبوره شوه۔ اول د هیرودیس بادشاه په زمانه کښے هغې هغه مصر ته یوړو او د هغۀ د مرګ پورے هلته وه۔ بیا د اَرْخِلاؤس په زمانه کښے هغې د ګلیل په ناصره ښار کښے پناه واخستله (متی ۲۔ ۱۳ تا ۲۳)۔ او س دا خبره په یقین سره څوک نشی وئیلے چه د قرآن اشاره کوم طرفته ده۔ په لغت کښے رَبْوَه هغه اُوچتے زمکے ته وائی چه هغه هواره وی او د خوا اُوشا زمکے نه لوړه وی۔ د ذاتِ قرار نه مراد دا دے چه هلته د ضرورت ټول څیزونه ملاویږی او سړے پکښے په آسانه ژوند تیره ولے شی۔ او د مَعِین نه مراد دے بهید ونکے اُوبۀ یا بهید ونکی چینه۔

[۴۵] په تیرو شوو دوو رکوعګانو کښے د ډیرو پیغمبرانو ذکر اُوشو، او او س چه د یٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ په ذریعه کوم خطاب ټولو پیغمبرانو ته اُوشو نو د دے دا مطلب نۀ دے چه ګنی دا ټول پیغمبران په یو ځائے موجود وُو او هغوی ټولو ته دا خبره اُوشوه۔ بلکه د دے مقصد دا دے چه په هره زمانه کښے مختلفو قومونو او مختلفو ملکونو ته کوم پیغمبران راغلی وُو هغوی ټولو ته هم دا هدایت شوے وُو، او ټول د یو حکم مخاطب وُو۔ په

وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱتَّقُونِ ﴿۵۲﴾ فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۖ كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿۵۳﴾ فَذَرْهُمْ فِى

او دا ستاسو اُمت یو اُمت دے او زهٔ ستاسو رب یم، نو خاص زما نه یره کوئ [۴۷]
لیکن روستو بیا خلقو خپل دین په خپلو کښے ټوکړے ټوکړے کړو. د هرے ډلے سره چه څه دی په هغے کښے هغوی خوشحاله دی [۴۸] ـــــــــــ ښه، ده نو، ته پریږده دوئ چه د وب

روستنی آیت کښے چونکه ټولو پیغمبرانو ته یو اُمت، یو جماعت او یوه ډله وئیلے شوی ده نو په دے وجه طرز بیان داسے اختیار کړے شو چه د سړی په سترګو کښے دا نقشه کیښی چه پیغمبران ټول یوه ډله ده. تکه چه هغوی ټول په یو ځلئے کښے جمع دی او ټولو ته یو هدایت ورکړے کیږی. لیکن د دے دَور ځینی ګند ذهنه خلق د دے کلام په باریکوالی پوهه نه شوا و دا نتیجه ئے تر لاا وویستله چه دا خطاب هغه پیغمبرانو ته دے کوم چه به د محمد صلی الله علیه وسلم نه روستو راځی او د دے نه دا ثبوت ملاویږی چه د نبیؐ نه په روستو هم د نبوت سلسله جاری وی. تعجب دے په هغه خلقو چه د ژبے او د ادب د باریکوالی نه دومره ناخبره دی او بیا هم د قرآن تفسیر کوی.

[۴۶] د پاکو څیزونو نه مُراد داسے څیزونه دی چه هغه پخپله پاک هم وی او بیا په حلاله طریقه حاصل شوی هم وی. اسلام د پاکو څیزونو د خوراک هدایت کړے دے او په دے سره ئے د رهبانیت او د دُنیا پرستئ په مینځ کښے د اعتدال لارے ته اشاره کړے ده. مسلمان نه خو د راهب پشان خپل ځان د پاک رزق نه محرومه کوی او نه د دُنیا پرست پشان د حلالو او د حرامو فرق ختموی او هر څیز خیټے ته اچوی.

د نیک عمل نه مخکښے د پاکو څیزونو د خوړلو هدایت شوے دے، او په دے کښے د دے طرفته صفا اشاره ده چه د حرام خوراک سره نیک عمل هیڅ فائدهٔ نه کوی. د نیک عمل د پاره اولنے شرط دا دے چه سړے حلال رزق اُوخوری. په حدیث کښے راځی چه نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه "اے خلقو، الله پخپله پاک دے خکه پاک څیزونه خوښوی" بیا نبیؐ دا آیت تلاوت کړو او د هغے نه روستو ئے اُوفرمائیل "الرجل یطیل السفر اشعث اغبر و مطعمه حرام و مشربه حرام و ملبسه حرام و غذی بالحرام یمد یدیه الی السماء یا رب یا رب فانی یستجاب لذٰلك" "یو سړے اُوږده سفرته په دوړو ککړ چپن او بے برسره راځی او آسمان طرفته لاسونه اُوچتوی او دُعا ګانے غواړی، اے ربه، اے ربه، خو حال دا وی چه د هغه و دوئ حرامه ده، د هغه جامے حرامے دی، او د هغه بدن په حرام خوراک غټ شوے دے، اُوس به د داسے سړی دُعا څنګه قبوله شی" (مسلم. ترمذی، احمد من حدیث ابو هریرہؓ).

[۴۷] "ستاسو اُمت یو اُمت دے" یعنی تاسو د یوے ډلے خلق یئ. "اُمت" هغه خلقو ته وئیلے کیږی چه په یو مشترک اصل باندے راجمع شوی وی. پیغمبران اګر چه په مختلفو زمانو او په مختلفو ځایونو کښے راغلی دی، لیکن د هغوی عقیده یوه وه، د هغوی دین یو وُو او د هغوی دعوت یو وُو نو په دے وجه اُوفرمائیلے شو چه د دے ټولو یو اُمت دے. روستنئ فقره پخپله ښائی چه هغه اصل مشترک څیز څه وُو چه په هغے باندے ټول پیغمبران راجمع شوی وُو. (د زیاتے تشریح د پاره اُوګورئ البقره آیتونه ۱۳۰ تا ۱۳۳ ـ ۲۱۳ ـ

غَمْرَتِهِمْ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿٥٤﴾ اَيَحْسَبُوْنَ اَنَّمَا نُمِدُّهُمْ بِهٖ مِنْ مَّالٍ وَّبَنِيْنَ ﴿٥٥﴾
نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرٰتِ ؕ بَلْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ﴿٥٦﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ

وی په خپل غفلت کښې ډوبخاص وخته پورې. ۴۹

آیا دوئ دا خیال دے چه مونږه په مال او په اولاد سره د دوی کوم امداد کوؤ دا گنی مونږه دوئ ته په خیر ورُ رسولو کښې کوشش کوؤ؟ نه، بلکه په اصل معامله دوی پوهیږی نه۔ خیر طرفته چه څوک منړدهی او

آل عمران، ۱۹، ۲۰، ۳۳، ۳۴، ۶۴، ۷۹ تا ۸۵۔ النساء ۱۵۰ تا ۱۵۲۔ الاعراف ۵۹، ۶۵، ۷۳، ۸۵۔ یوسف ۳۷ تا ۴۰۔ مریم، ۴۹ تا ۵۹۔ الانبیاء ۷۱ تا ۹۳۔

۴۸ دا صرف ډیو حقیقت بیان نه دے بلکه د سورة د شروع نه چه کوم دلیلونه راروان دی دا د هغې سره تړلے شوے یو دلیل هم دے۔ د دلیل خلاصه دا ده چه هر کله د نوح علیه السلام نه راواخله د حضرت عیسیٰ علیه السلام پورے ټول پیغمبرانو د توحید او د آخرت د یو عقیدے تعلیم ورکوی، نو د دے نه ثابتیږی چه د انسانانو اصل دین هم دا اسلام دے، او نور ټول مذهبونه د دے اسلام خراب شوی صورتونه دی، چه څه صدا تونه تر مینځ کړے شوی دی او څه خبری کښې د خانه شاملے کړے شوی دی او مذهبونه تړجوړ کړے شوی دی او س که څوک په غلطئ څوک دی نو هغه هم دا خلق دی چه د دے خرابو شوو مذهبونو عاشقان دی، نه هغه خلق چه دا مذهبونو پریږدی او خلق اصل دین طرفته رابلی۔

۴۹ د اولے فقرے او د دویمے فقرے په مینځ کښې خالی ځائے دے، دا خالی ځائے د اوریدونکی سوچ ته پریښودے شوے دے، ځکه چه د تقریر د حالاتو نه پرسره پخپله پوهیږی۔ حالات دا دی چه د محمد صلی الله علیه وسلم بنده د څو شپږ و کالو راسے خلق اصل دین ته رابلی، په دلیلونو ئے پوهه کوی، د تاریخ مثالونه ورکوی، د هغه د دعوت اثرات خلق په خپلو سترګو وینی، او د هغه خپل ذاتی کردار هم د دے خبری ضمانت ورکوی چه هغه یو قابلِ اعتماد سړے دے۔ لیکن د دے باوجود دا خلق په هغه باطل کښې خوشحاله دی کوم چه هغوی ته د پلار نیکه په میراث کښې پاتے دے، او دا خلق نه چه هغوی هغه حق نه مَنی کوم چه په واضح دلیلونو سره پیش کیږی، بلکه هغوی په دغه داعئ حق پسے تکیه لی دی، او د هغه د دعوت د ناکامولو د پاره هر قسم صنف، طعنے، ملامتیا، ظلم او دروغ استعمالوی۔ په دے صورتِ حال کښې د دینِ حق د یو والی او د نورو مذهبونو د حقیقت بیانولو نه روستو دا وینا کول چه "پریږده دوی چه ډوب وی په خپل غفلت کښې" پخپله په دے خبره دلالت کوی چه "بس ده، که دوی نه منی او پخپلو گمراهو کښې ډوب وسیدل غواړی نو پریږده دوئ"۔ دا "پریږده دوئ" بالکل په لفظی معنو کښې اغستل او بیا تر دا مطلب اخستل چه "اوس هدو تبلیغ مه کوه" دا به د دے خبری ثبوت وی چه د دے هدو د کلام د منشا نه ناخبره دے۔ په دا سے موقعو کښې دا خبره گډه غرض د پاره نه کیږی چه گنی د نصیحت خبری د ته نورے مه کوه بلکه د دے غرض د پاره کیږی چه په غفلت کښې پراته خلق را بیدار شی۔ بیا دا الفاظ چه "ډیو خاص وخته پورے" په دے کښې یو خو خبر دا ریه پروت دے چه هغه دے طرفته اشاره کوی چه د غفلت دا وخت به ډیر زیات نه وی، یو وخت دا سے راتلونکے دے چه دوئ

به نابید ارشي او دوئ ته به پته اُولګي چه پېغمبر کوم څیز ته خلق رابلل هغه څه وُو او دوئ چه په کوم څیز مست وُو هغه څه وُو.

ف۵ دلته د سورة په اولنو آیتونو باندې نظر اچول پکار دي. هم هغه خبره په یو بل انداز کښې یو ځل بیا وئیلې کېږي. د دے خلقو د "فلاح" او د "خیر" او د "خوشحالۍ" په حقله یو خاص مادي خیال وُو. د دوئ په نزد چه چا ته ښه خوراک، ښه جامه او ښه کور ملاؤ شو، او چه چا له مال او اولاد ورکړے شو، او چه چا ته په خلقو کښې ښه شهرت حاصل شو، نو بس هغه فلاح بیا موندو. او څوک چه د دے نه محروم شو نو هغه نا کام او نامراد شو. د دے بنیادي غلطۍ په وجه هغوی د دے نه هم په زیاته غټه دوکه کښې پریوتل، او هغه دا ده چه چا ته دا قسم فلاح نصیب شو نو هغه خامخا په نیغه او په صحیح لار دے، بلکه د خدائے خوښ دے، کنې نو دا خوشحالیانې به ورته څنګ حاصلې شوې وے. او د دے نه برعکس څوک چه د دے فلاح نه مومي نو ته ښکاره محرومه ښکاري نو هغه یقیناً چه د عقیدے او د عمل په لحاظ سره ګمراه دے او د خدائے (یا د خدایانو) په غضب کښې راګیر دے. دا غلط فهمي، چه په حقیقت کښې د مادہ پرستو خلقو د ګمراهۍ یو غټ سبب دے، په قرآن کښې ځائے په ځائے بیان شوې ده، په مختلفو طریقو سره د دے تردید شوے دے او په قسما قسم ذریعو سره دا ښودلے شوې ده چه اصل حقیقت څه دے (د مثال په طور اوګورئ البقره آیت ۱۲۶، ۲۱۲ - الاعراف ۳۲ - التوبه ۵۵، ۶۹ - ۸۵ - یونس ۱۷ - هود ۳ - ۲۷ تا ۳۱، ۳۸، ۳۹ - الرعد ۲۶ - الکهف ۲۸ - ۳۲ تا ۴۳ - ۱۰۳ تا ۱۰۵ - مریم ۷۷ تا ۸۰ - طٰه ۱۳۱ - ۱۳۲ - الانبیاء ۴۴ سره د حاشیو.

په دې حقله یو څو حقیقتونه دا سے دي چه تر څو پورې سړے په هغې ښه پوهه شوے نه وي نو د هغه ذهن هیڅکله صفا کیدے نه شي.

اول دا چه "د انسان د فلاح" مطلب د یو سړي یا د یوه ډلې یا د یو قوم مادي خوشحالي او وقتي کامیابي نه ده، بلکه د "انسان د فلاح" مطلب د دے نه ډیر فراخه او ډیر اُوچت دے.

دویم دا چه که چرے "فلاح" د دُنیوي فائدو په معنو کښې د حق او د باطل او د خیر او د شر معیار اوګرځولے شي نو د دے نه یوه داسې بنیادي ګمراهي جوړیږي چه سړي ته بیا تر هغې صحیح عقیده او صحیح فکر او صحیح اخلاق نصیب کیدے نه شي تر څو چه د دغه بنیادي ګمراهۍ نه وتلے نه وي.

دریم دا چه دنیا په اصل کښې د بدلے ځائے نه دے بلکه د امتحان ځائے دے. دلته په دنیا کښې که اخلاقي جزا او سزا شته هم نو ډیره محدوده او په ناقص صورت کښې ده، او په هغې کښې ځینې هم امتحان موجود وي. چه د دے حقیقت نه سړے سترګې پټې کړي او دا یقین اُوکړي چه دلته چا ته څه نعمت ملاو یږي هغه "انعام" دے او دا انعام ملاویدل د دے خبرې ثبوت دے چه دے حقدار دے، دے نیک صالح دے او د خدائے خوښ دے، او په چا باندې چه څه مصیبت راځي هغه "سزا" ده، او دا سزا د دے خبرې دلیل دے چه هغه په باطل دے، نیک صالح نه دے، او د خدائے په غضب کښې دے، دا ټول هر څه په حقیقت کښې یوه لویه غلط فهمي، بلکه بے وقوفیا ده چه شاید د دے نه زیات بل څیز به داسې خرابوونکے نه وي چه هغه به زمونږ د حق تصورات او زمونږ د اخلاقو معیار خراب کړي. څوک چه د حقیقت طلبګار وي هغه له پکار دي چه په اول قدم ځان په دے پوه کړي چه دا دنیا په اصل کښې

مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۵۷﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ
يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۸﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَالَّذِيْنَ

دَ هغه ځان ځان مخکښې وررسوي.[۵۰] نو هغه هغه خلق دي چه هغوئ د خپل پروردګار د ډیره نه په ډیره ډوند
تیروي، او د خپل رب په آیتونو ایمان راوړي،[۵۱] او د خپل رب سره بل هیڅوک نه شریکوي،[۵۲] او چه د هغوی حال دا دے

دَ امتحان یو ځائے دے او دلته په مختلفو طریقو سره د خلقو نه، او د قومونو نه او د ټولو انسانانو نه امتحان اخستلے کیږي
دَ دے امتحان په دوران کښې چه کوم مختلف حالتونه خلقو ته وراندې راځي هغه د جزا او د سزا آخري فیصلے نه دي چه
هغه دِ کښې د عقیده او د عملونو د صحیح والي او د غلطوالي معیار اُوګرزولے شي، او د خدائے په نزد د خوش او
دَ ناخوښ علامه اُوګرزولے شي۔

څلورم دا چه په دے کښې هیڅ شک نشته چه د حق او د نیکئ سره فلاح تړلے شوے څیز دے[۵۳] او د باطل او د بدئ
انجام خُسران دے۔ لیکن په دے دنیا کښې چونکه د باطل او د بدئ سره عارضي او ظاهري فلاح ممکن دہ، او دغه شان
دَ حق او د نیکئ سره ظاهري او وقتي خُسران ممکن دے، او زیات تر خلق په دے څیز دوکه کیږي هم، نو د دے ځه
نه د حق او د باطل او د خیر او د شر د پیژندګلو د پاره یو داسے مستقل معیار پکار دے چه په هغه کښې د دوکے
هیڅ خطره نه وي۔ د پیغمبرانو تعلیمات او آسماني کتابونه مونږ ته دغه معیار راکوي، او عام انساني عقل
(Commonsense) د هغه د صحیح والي تصدیق کوي، او د نیکئ او د بدئ په حقله د انسانانو مشترکه
وجداني تصورات په هغے ګواهي کوي۔

پنځم دا چه کله یو سرے یا یو قوم یو طرفته خو د حق نه بے لاره وي او په ظلم او په ګناه کښې اخته وي، او بل طرفته
په هغه باندې د نعمتونو باران راوریږي، نو د عقل او د قرآن مطابق دا د دے خبرې ښکاره نښه ده چه الله تعالیٰ
دے سخت په آزمیښت کښې اچولے دے او په دهٔ باندې د خدائے رحمت نه بلکه د خدائے غضب دے۔ که په غلطئ کولو
ورته سزا ملاویدلے نو د دے مطلب به دا وے چه خدائے اُوس په دهٔ مهربان دے، دهٔ له خبردارے ورکوي او د
ځان صحیح کولو موقع ورکوي۔ لیکن په غلطئ باندې "انعام" ورکول دا معنیٰ لري چه دهٔ له د سختے سزا ورکولو فیصله
شوې ده او د دهٔ کشتئ لا ډکه د او بو په سر روانه ده چه ښه ډکه شي او په آسانه ډوبه شي۔ د دے برعکس چیرې
طرفته خدا پرستي وي، پاکیزه اخلاق وي، په هره معامله کښې صداقت وي، د خدائے د مخلوق سره ښه سلوک
او رحمدلي وي، او بل طرفته د مصیبتونو او د تکلیفونو بارانونه وي، نو دا د خدائے غضب نه دے بلکه دا د
خدائے د رحمت نښه ده۔ زرګر سره زر د دے د پاره تکوي چه ښه صفا شي او په دنیا باندې د هغے ښه والے
ثابت شي۔ که د دنیا په بازار کښې ئے قیمت اُوچت نه شي نو هیڅ پرواه نشته۔ زرګر خپله د دے قیمت ورکوي
بلکه په خپل فضل سره ئے زیات ورکوي۔ د دهٔ مصیبتونه که غضب معلومیږي نو د دهٔ د پاره غضب نه دے
بلکه د دهٔ د دُشمنانو د پاره غضب دے، یا بیا د هغه خلقو د پاره غضب دے چه په هغوی کښې نیکانو خلقو له
تکلیفونه ورکړے کیږي او فاسقانو نافرمانو خلقو له خوشحالیانے۔

[۵۰] دا د اردو ژبے (یعني د ترجمانئ) په لحاظ سره مونږ دَ آیت ۶۱ ترجمه اول کړې ده او د آیت ۵۷ تا ۶۰ ترجمه

يُؤْتُوْنَ مَآ اٰتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ اَنَّهُمْ اِلٰى رَبِّهِمْ رٰجِعُوْنَ ﴿۶۰﴾ اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ

چه ورکوی هغه څه چه ورکوی او زړونه ئے د دے خیال وجے نه ریږدی چه مونږ به خپل رب ته واپس کیږو۔[۵۴]

مورو ستوکړی ده۔ د چا دا خیال راتشی چه د آیت ۶۱ ترجمه پاتی شوی ده۔

۵۱ یعنی هغوئ په دُنیا کښے د خدائے نه بے پَرے او بے فکره نهٔ اوسی چه څه ئے زړهٔ غواړی هغه کوی او دا سوچ هم کوی نه چه پَرته څوک خدائے هم شته چه په ظلم او زیاتی باندے خلق رانیسی، بلکه د هغوئ په زړهٔ کښے هر وخت د خدائے یَره وی او دغه یَره ئے د بدو کارونو نه منع کوی۔

۵۲ د آیتونو نه مُراد دواړه قسمه آیتونه دی هغه هم چه پیغمبران ئے د خدائے د طرف نه پیش کوی او هغه هم چه د انسان په خپل نفس کښے دی او هر طرف ته په خوا وُشا کائناتو کښے خوارهٔ دی۔ د کتاب په آیتونو باندے ایمان راوړل د هغے آیتونو تصدیق کول دی او د نفس او د کائناتو په آیتونو باندے ایمان راوړل په هغه حقیقتونو باندے ایمان راوړل دی چه په کوم هغوی دلالت کوی۔

۵۳ اګر چه په آیتونو باندے د ایمان راوړلو نه خپله دا خبره لازمیږی چه انسان دے د توحید قائل وی لیکن د دے باوجود د شرک د نهٔ کولو ذکر په دے وجه جُدا شوے دے چه اکثر انسان په آیتونو ایمان راوړی هم خو بیا هم په یو شرک کښے مبتلا وی۔ مثلاً ریا، ځکه چه دا هم یو قسم شرک دے۔ یا د پیغمبرانو او د بزرګانو په تعلیم کښے داسے زیاتے کول چه سبب د شرک ته رسوی۔ یا د الله نه علاوه د بل چا نه دُعا او امداد غوښتل یا په خپله مرضا د الله نه بغیر د بل چا بندګی او طاعت کول او د بل چا په قانون پسے تلل۔ پس د الله په آیتونو د ایمان راوړلو نه روستو د شرک د نهٔ کولو ذکر چه کوم جُدا شوے دے د هغے مطلب دا دے چه هغوئ خپله بندګی طاعت او عبادت بالکل د الله د پاره خالص کوی او د هغهٔ سره د بل چا د بندګئ خیال هم په زړهٔ کښے نهٔ راولی۔

۵۴ په عربئ ژبه کښے لفظ (ایتاء) "ورکول" صرف د مال یا د بل څه مادی څیز د ورکولو په معنیٰ کښے نهٔ استعمالیږی بلکه د معنوی څیزونو د ورکولو په معنیٰ کښے هم وئیلے کیږی۔ مثلاً چا چه اطاعت قبول کړو نو د هغه د پاره وائی چه "اتیته من نفسی القبول"، څوک چه د چا د اطاعت نه انکار اوکړی نو د هغه د پاره وائی "اتیته من نفسی الاباۃ"۔ نو د دے ورکولو مطلب یو ازے دا نهٔ دے چه هغوی د خدائے په لار کښے مال ورکوی، بلکه په دے کښے الله ته د خپلے بندګئ او طاعت پیش کولو مطلب هم پروت دے۔

د دے معنیٰ په لحاظ سره د آیت پوره مطلب دا شو چه هغوئ د الله په فرمانبردارئ کښے کومے نیکیا نے کوی، کوم خدمتونه کوی، کومے قربانیانے ورکوی، په هغے هغوی خوشحالیږی نهٔ، د تقوی غرور او د خدائے ته د رسیدو تکبر پکښے نهٔ راځی، بلکه د خپل وس مطابق هر څه کوی خو بیا هم یَریږی چه دا به خدائے ته قبول وی او که نهٔ، چه دا به زمونږ د ګناهونو په مقابله کښے دیروی او که نهٔ، چه دا به زمونږ د بخښنانے د پاره کافی وی او که نهٔ۔ هم د دے مطلب تشریح په هغه حدیث سره کیږی کوم چه احمد، ترمذی، ابن ماجه، حاکم او ابن جریر نقل کړے دے چه حضرت عائشے رض د نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو "اے د الله رسوله! آیا د دے دا مطلب دے چه یو سړے د غلا او زنا کوی او شراب څښی او د الله نه یَریږی؟" د دے تپوس نه دا معلومه شوه چه حضرت عائشے رض

فِي الْخَيْرٰتِ وَهُمْ لَهَا سٰبِقُوْنَ ﴿۶۱﴾ وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا وَ
لَدَيْنَا كِتٰبٌ يَّنْطِقُ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۶۲﴾ بَلْ قُلُوْبُهُمْ فِيْ غَمْرَةٍ

مونږه یو ساه د هغه د وس نه زیات تکلیف نه ورکوو، او زمونږ سره یو کتاب دے چه (د هر یو حال) ټیک ټیک ښائی، او په خلقو باندې به ظلم په هیڅ حال نه کیږی لیکن دا خلق د دے معاملے نه

دا د "یاتُونَ ما اٰتَوا" په معنٰی کښے اغستلو یعنی "کوی هغوی هر څه چه کوی" په جواب کښے ورته نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمایئل کلا یا بنت الصدیق ولکنه الذی یصلی ویصوم ویتصدق وهو یخاف الله عزوجل "نه اے د صدیق لورے د دے نه مراد هغه سړے دے چه مونځ کوی، روژے نیسی، زکوٰة ورکوی او بیا هم د الله عزوجل نه یریږی." د دے جواب نه پته اولګیده چه د آیت صحیح قرأت یاتُونَ نه دے بلکه یُؤْتُونَ دے او دا یُؤْتُونَ یوازے د مال ورکولو په معنٰی کښے نه دے بلکه د حکم منلو په فراخه معنٰی کښے دے۔

د دے آیت نه معلومیږی چه یو مومن د زړه په کوم حالت سره د الله بندګی کوی۔ د دے مکمل تصویر د حضرت عمرؓ هغه حالت دے چه هغه ټول عمر د اسلام په مثاله خدمتونه اوکړل خو چه د دنیا نه رخصتیدو نو د خدائے د حساب کتاب نه یریدوا او ویئیل ئے چه که په آخرت کښے سرې برې پاتے شوم نو غنیمت دے۔ حضرت حسن بصریؒ ډیر ښه وئیلی دی چه مومن د الله حکم منی او بیا هم یریږی، او منافق نافرمانی کوی او بیا هم نه یریږی۔

۵۴ الف د آیت ۶۱ ترجمه د آیت ۵۷ نه مخکښے شوی ده۔ د دے ځائے نه د آیت ۶۲ ترجمه شروع کیږی۔

۵۵ په دے روان عبارت کښے دا فقره ډیره غټ مطلب لری چه ښه په ښه ځان پوهه کول پکار دی۔ په تیرو شوو آیتونو کښے وئیلے شوی دی چه د نیکو کټونکی او نیکه د ویل نه مخکښے ځان رسونکی خلق په اصل کښے څوک دی او د هغوی کوم کوم صفتونه دی۔ د دے نه روستو فوراً ئے دا اوفرمایئل چه مونږه چا ته د هغه د وس نه زیات تکلیف نه ورکوو، نو د دے دا مطلب دے چه دا اخلاق او دا صفتونه په ځان کښے پیدا کول څه فوق البشری څیز نه دے۔ ستاسو غوندې د غوښو پوستکو انسانانو دا صفتونه په ځان کښے پیدا کړی دی۔ نو تاسو دا نتیجه وئیلے چه ستاسو د دوی د دے څیز مطالبه کیږی چه هغه کتنی د انسان د وس نه بهر دے۔ د انسان په وس کښے خو هغه عمل هم دے کوم چه تاسو کوئ او هغه عمل هم دے کوم چه ستاسو د خپل قوم یو څو مومنان کوی۔ او س فیصله صرف په دے خبره ده چه په دے دواړو عملونو کښے څوک کوم عمل د ځان د پاره خوښوی۔ که په دے انتخاب کښے د غلطی اوکړه او د ټن نه د بدو عملونه شروع کړل او د نیکو نه محرومه پاتے شوے، نو صباله د د دے د بد انجام نه د اد دروغو عذر نه شی بچ کولے چه یره نیک عملونه کول زمونږ د وس نه بهر خبره وه۔ که په هغه وخت کښے د دا عذر پیش کړو نو ستا نه به تپوس اوشی چه که چرے دا د انسان د وس نه بهر وے نو ستاسو غوندې انسانان په دے باندې په عمل کولو کښے څنګه کامیاب شو۔

۵۶ د کتاب نه مراد عملنامه ده، چه د هر سړی د پاره جُدا جُدا تیاریږی، چه په هغے کښے د هغه یو یو خبره، یو یو کار، آن تر دے پورے چه د هغه خیالات او ارادے هم لیکلے کیږی۔ د دے په حقله په سورهٔ کهف کښے فرمایئلے شوی دی چه وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا

مِّنۡ هٰذَا وَلَهُمۡ اَعۡمَالٌ مِّنۡ دُوۡنِ ذٰلِكَ هُمۡ لَهَا عٰمِلُوۡنَ ﴿۶۳﴾ حَتّٰۤى
اِذَاۤ اَخَذۡنَا مُتۡرَفِيۡهِمۡ بِالۡعَذَابِ اِذَا هُمۡ يَجۡـئَرُوۡنَ ﴿۶۴﴾ لَا تَجۡـئَرُوا الۡيَوۡمَ
اِنَّكُمۡ مِّنَّا لَا تُنۡصَرُوۡنَ ﴿۶۵﴾ قَدۡ كَانَتۡ اٰيٰتِىۡ تُتۡلٰى عَلَيۡكُمۡ فَكُنۡتُمۡ عَلٰۤى اَعۡقَابِكُمۡ

ناخبره دی۔[۵۸] او د دوئ عملونه هم د هغه طریقې نه (کومه چه بره بیان شوی ده) مختلف دی. دوی به دا چل عملونه کوی [۵۹] تردې پورې چه کله مونږه د هغوی عیاشان خلق په عذاب کښې راګیر کړو نو بیا به هغوی رمبارې شروع کړی [۶۰] ـــــــــ اوس بند کړئ خپل شور او فریاد، زمونږ د طرفه درته اوس هیڅ مدد نه ملاویږی. چه زمونږ آیتونه به درته اورولے کیدل نو تاسو به (د رسول د آواز اوریدو سره) شا

مَالِ هٰذَا الۡكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيۡرَةً وَّلَا كَبِيۡرَةً اِلَّاۤ اَحۡصٰهَا‌ ۚ وَوَجَدُوۡا مَا عَمِلُوۡا حَاضِرًا‌ ؕ وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ اَحَدًا ۝ " او عملنامه به مخې ته کیښودے شی، بیا به ته اووینې چه مجرمان خلق به د هغې د ليکنې نه یریږی او وائی به چه هائے زمونږه بدہ نصیبه، دا څنګه کتاب دے چه زمونږ یو وړوکے یا لوئ عمل داسې نه دے پاتې شوے چه هغه په دې کښې درج نه دے. څه چه هغوی کړی وو هغه ټول به حاضر بیامومی، او ستا رب به چا ظلم کوونکے نه دے" (آیت ۴۹)۔ ځینو خلقو دلته د کتاب نه مراد قرآن اخستے دے او د آیت مطلب ئے په غلط طرف اړولے دے۔

[۵۷] یعنی نه به د چا خلاف غلط الزام لګولے کیږی چه هغه به په حقیقت کښې هغه کړے نه وی، او نه به د چا داسې نیکی وهلې کیږی چه هغه به په حقیقت کښې د هغې د بدلے مستحق وی، نه به چا ته بې ځایه سزا ورکړے کیږی او نه به څوک د خپل حق نه محرومه کړے کیږی۔

[۵۸] یعنی د دې خبرې نه چه څه هغوی کوی او څه وائی او څه سوچ کوی، دا ټول کښې په یو کتاب کښې ليکلے کیږی او بیا به د هغې حساب کیږی۔

[۵۹] دلته د " مُتۡرَفِيۡنَ " لفظ ترجمه "عیاش" شوی ده۔ " مُتۡرَفِيۡنَ " په اصل کښې هغه خلقو ته وائی چه د دُنیا مال او دولت ورسره وی او مزې کوی او د خدائے او د مخلوق د حقونو نه غافله وی. د دې لفظ صحیح مطلب په لفظ "عیاش" سره ادا کیږی، خو په دې شرط چه یوازې د شهوت رانۍ معنیٰ ترې وانه خستلے شی بلکه د مروجې فراخه معنیٰ ترې واخستلے شی۔

د عذاب نه مراد دلته غالباً چه د آخرت عذاب نه دے بلکه د دنیا عذاب دے چه ظالمان ئې په دې ژوند کښې اوویني۔

[۶۰] په اصل کښې لفظ "جُؤَار" استعمال شوے دے چه د غوئی هغه آواز ته وائی کوم چه هغه د ډیرې سختې په وخت کښې راوباسی. دا لفظ دلته یوازې د شور او فریاد په معنیٰ کښې نه وئیلے کیږی بلکه د هغه سړی د شور او فریاد د پاره وئیلے کیږی چه هغه د هیڅ رحم مستحق نه وی. په دې کښې د سپکاوی او د طنز انداز پټ پروت دے. په دې کښې پټه دا معنیٰ پرته ده چه "ښه، اوس چه کله د خپلو عملونو د مزې څکلو وخت راغے نو رمبارې ئې شروع کړے"

[۶۱] یعنی په هغه وخت به هغوی ته دا وئیلے کیږی۔

تَنْكِصُونَ ﴿٦٦﴾ مُسْتَكْبِرِينَ ۖ بِهِ سَامِرًا تَهْجُرُونَ ﴿٦٧﴾ أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ
أَمْ جَاءَهُمْ مَا لَمْ يَأْتِ آبَاءَهُمُ الْأَوَّلِينَ ﴿٦٨﴾ أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا رَسُولَهُمْ

تښتېدلئ (٦٢) په ځپل غرور کښې به مو هغه هڅو په خيال کښې نه راوستلو، په ځپلو چوپالو کښې به مو په هغه پورې د خندا خبرې (٦٣) کولے او بکواس به مو کولو.

نو آيا دے خلقو چرته په دے کلام باندې غور نه دے کړے (٦٤)؟ يا اوس ته هغه څه داسے خبره راغلې ده چه د دوئ اولنو پلرونو نيکونو ته چرته راغلې نه وه (٦٥)؟ يا دوئ د ځپل رسول نه هسې واقف نه وو چه (د نا آشنا ولي په)

٦٢ يعنې د هغه خبره اورېدل ستاسو خوښ نه وو. د هغه آواز مو په غوږونو اورېدل نه برداشت کول.

٦٣ په اصل کښې لفظ "سَامِرًا" استعمال شوے دے. د سمر معنی ده د شپے خبرې اترې کول، کيسې ښتلے او قيصے وئيل. په بانډو کښې به دا د شپے کوم عام طور په چوپالو کښې کېدل. او دغه دا دستور د مکے د خلقو وو.

٦٤ يعنې آيا د هغوی د نه منلو وجه دا ده چه په دے کلام هغوئ هډو پوهه نه شو ځکه ئے نه مني. ظاهره ده چه دا وجه نه ده. قرآن څه معمه نه ده او نه په يوه داسے ژبه کښې دے چه په هغے څوک پوهېږي نه. او څه داسے خبرې پکښې هم نشته چه هغه د سړي په عقل کښې نه راځي. هغوی د قرآن په يوه يوه خبره ښه پوهېږي او مخالفت ئے په دے وجه کوي چه څه قرآن پيش کوي هغه منل نه غواړي، نه په دے وجه چه هغوی پرې پوهېدو کوشش اوکړو خو پوهه پرې نه شو.

٦٥ يعنې آيا د وی انکار په دے وجه کوي چه هغه يوه داسے نوې خبره پيش کوي چه د انسان غوږونه ورسره بالکل نا آشنا دي؟ ښکاره خبره ده چه دا وجه هم نه ده. د خدائے د طرف نه د پيغمبرانو راتلل، کتابونه د ځان سره راوړل، د توحيد دعوت ورکول، د آخرت د تپوس نه خلق يرول، او ښه اخلاق ښودل، په دے کښې يو څيز هم داسے نشته چه هغه په اول ځل دنيا ته پيش کړے شوے وی او د دے نه مخکښے ئے هډو چا ذکر نه وی اورېدلے. د دوی په څوا وشا کښې په عراق کښې، په شام کښې او په مصر کښې ډير پيغمبران راغلي دي او هم دا خبرې ئے پيش کړې دي او دوئ د هغے نه نا خبره نه دي. بلکه د دوئ په وطن کښې حضرت ابراهيمؑ او حضرت اسماعيلؑ راغلي دي، هود او صالح او شعيب عليهم السلام راغلي دي، د هغوی نومونه تر او سه پورے هغوی ته ياد دي، دوی مني چه هغوی د خدائے استاذي دي، او دا ورته هم معلومه ده چه هغوی مشركان نه وو بلكه خلقو ته ئے د يو خدائے بندگي ښودله. نو په حقيقت کښې د هغوی د انکار دا وجه هم نه ده چه هغوی بالکل يوه داسے نا آشنا خبره اوري چه چرته چا اورېدلې نه وه. (د زياتے تشريح د پاره اوګورئ الفرقان حاشيه ٨٤، السجدة حاشيه ٥، سبا، حاشيه ٣٥).